# نهاية العالم

# د نړۍ پای

**ليکوال**

د عربي نړۍ نامتو عالم
دکتور **محمد بن عبد الرحمن** (العريفي)
استاذ معاصر اديان ومذاهب ملک سعود يونيورستي رياض

**ژباړن**

مولوي **نجم الرحمن** فضلي (پکتياوال)

# کتاب پېژندنه

نوم: (نهاية العالم) **د نړۍ پای**

مؤلف: دکتور محمد بن عبد الرحمن (العريفي)

ژباړن: مولوي نجم الرحمن فضلي (پکتياوال)

کمپوز او ډيزاين: ژباړن په خپله

دويم چاپ: ۱۴۳۴ هق مطابق ۲۰۱۳ ميلادي

د چاپ همکاران: حاجي علي احمد او حاجي جلک خان ځدراڼ

خپرندويه اداره: الفضل خپرندويه ټولنه

مسئول: مولوي نجم الرحمن فضلي (پکتياوال)

د ترلاسه کيدو ځايونه: مکتبه فاروقيه محله جنګی پېښور

مسئول مولوي عبد الباري (منيب) لغماني (۰۳۰۰۹۰۰۷۵۵۰)

مدرسه عمريه ټل بجلی ګهر کيمپ: مولوي شرف الدين (نقره کار) (۰۳۰۱۸۹۹۶۵۱۶)

روحاني بابا کتاب پلورنځی پکتيا ګرديز خوست لين د جامع جومات ترڅنګ: ګرځنده اړيکي شميره: (۰۷۷۵۹۴۷۷۶۴)

انصاف کتاب پلورنځی اسحاق زی مارکيټ لاندنی پوړ جلال اباد اړيکې شميرې ٠٧٩ ـ ٤٠٠٤٠٢٩ ------ ٠٧٧ ـ ٦٧٦٤٤٧٠

فريديه کتب خانه خوست دوسرکه بازار (مسئول مولوي علاء الدين مطمئن) ګرځنده شميره ۰۷۷۶۲۶۳۵۸۹

ت

(۱۱) د دروغژنو مدعیانو ظهور.

(۱۲) د امن او خوشحالي کثرت.

(۱۳) د حجاز له علاقې څخه د یوه لوی اور ظهور.

(۱۴) له ترکو سره جنګ.

(۱۵) د دورو وهونکو ظالمو واکمنو ظهور.

(۱۶) د قتل او خونریزي کثرت.

(۱۷) د دیانتداري خاتمه.

(۱۸) د پخوانیو امتونو د طریقو پیروي. د غلام له خپلې باداري څخه پیدا کیدل.

(۱۹) د غلام له خپلې باداري څخه پیدا کیدل.

(۲۰) د داسې ښځو ظاهریدل کومې به چې د جامو له اغوستلو سره بیا هم لغړې وي.

(۲۱) لوڅ اوسیدل، لغړ بدن. د بزو او میږو څرونکیو تر مینځ د لوړو عمارتونو په جوړولو کې مقابله کول.

(۲۲) خاص خاص خلکو ته سلام کول.

(۲۳) د تجارت ډیر پر مخ تګ.

(۲۴) له میړه سره په تجارت کې د ښځې شراکت.

(۲۵) د ځیني تجارانو په ټول مارکیټ تسلط.

(۲۶) د دروغو ګواهي.

(۲۷) د ریښتوني ګواهي پټیدل

(۲۸) د جهالت خپریدل.

(۲۹) د نویو مرضونو او بخل کثرت.

(۳۰) د صله رحمي له منځه تلل
(۳۱) له همسایه سره بد سلوک
(۳۲) د بې حیایي او فحاشي عام کیدل
(۳۳) امانتدار ته خاین وئیل او بد دیانتو ته د منصوبونو ورسپارل
(۳۴) د معززو خلکو وفات او د رذیلو خلکو کثرت
(۳۵) د مال په حلالوالي او حراموالي کې بې پروائي
(۳۶) د فی مال په اغنیاؤ او رؤساؤ کې تقسیمدل
(۳۷) امانت غنیمت بلل
(۳۸) په خوشحاله زړه د زکاة نه ورکول
(۳۹) د غیرالله لپاره د علم زده کړه
(۴۰) د ښځې تابعداري او د مور نافرماني
(۴۱) د دوستانو نږدې کول او د مور پلار لیری کول
(۴۲) په مساجدو کې د آوازونو پورته کیدل
(۴۳) د قبایلو قیادت د فساقو او فجارو لاس ته ورتلل
(۴۴) کم اصله خلک د قوم سردار جوړیدل
(۴۵) د یوه انسان عزت یواځې د هغه له شر څخه د ځان ساتلو لپاره کول
(۴۶) زنا حلال بلل
(۴۷) نارینه ؤ ته د وریښمو استعمال حلال بلل
(۴۸) شرابو ته حلال وئیل
(۴۹) د سندرو او د موسیقي د آلاتو استعمال جائز بلل
(۵۰) په خلکو کې د مرګ تمنا

(۵۱) د داسې حالاتو پیدا کیدل چې یو کس به سهار مؤمن وي او ماښام کافر.

(۵۲) په مساجدو کې د نقش او نګار کثرت او په هغه فخر کول.

(۵۳) د کورونو بې ځایه ښایست او آرایش.

(۵۴) د آسماني تندرونو کثرت.

(۵۵) د کتابت کثرت او اشاعت.

(۵۶) په دروغ وئیلو سره د مال ګټل او په تکلیفي خبرو باندې فخر کول.

(۵۷) له قرآن څخه پرته د نورو کتابونو په کثرت سره خپریدل او ترویج.

(۵۸) د قاریانو کثرت. د علماؤ او فقهاؤ قلت.

(۵۹) له کم عمرو څخه د علم زده کړه.

(۶۰) د یو ناڅاپه مرګونو زیاتیدل.

(۶۱) د بې وقوفو حکومت.

(۶۲) د زماني نږدې کیدل.

(۶۳) د خلکو د ترجماني په منصب د کم عقلو کامیابیدل.

(۶۴) له کم اصله خلکو سره د دولت کثرت.

(۶۵) له مساجدو څخه ګزرګاه جوړول.

(۶۶) د مهر مقدار اول ډیر زیات او بیا ډیر کمیدل.

(۶۷) د آسونو په قیمت کې اول ډیر اضافه والی او بیا ډیر کموالی راتلل.

(۶۸) د تجارتي مراکزو تر مینځ د فاصلې کموالی.

(۶۹) د عالمي قومونو لخوا په اسلامي امت حمله کول.

(۷۰) د لمانځه له امامت څخه ځان ساتل.

(۷۱) د مؤمن د خوبونو رښتیا ثابت کیدل.

(۷۲) د دروغو ډیروالی.

(۷۳) د خلکو په مینځ کې د نفرت پیدا کیدل.

(۷۴) د زلزلو ډیروالی.

(۷۵) د ښځو ډیروالی.

(۷۶) د سړیو کمیدل.

(۷۷) د فحاشي او عریاني عام کیدل او په ښکاره بې ارتکاب.

(۷۸) د قرآن مجید په تلاوت اجرت اخیستل.

(۷۹) په خلکو کې غټوالی عام کیدل.

(۸۰) بې له غوښتنې ګواهي ته د خلکو تیاریدل.

(۸۱) د داسې خلکو ظاهریدل کوم به چې نذرونه منې مګر هغه به نه پوره کوي.

(۸۲) د طاقتورو لخوا د کمزورو خوړل.

(۸۳) د الله تعالی له لوري په نازل شوي شریعت باندې د فیصلو نه کول.

(۸۴) د رومیانو ډیروالی او د عربو کموالی.

دویم قسم: هغه نښانې کومې چې تر دا مهاله نه دي ښکاره شوې ۲۸

(۸۵) له خلکو سره د مال ډیروالی.

(۸۶) په زمکه کې خښې شوې خزانې د باندې راغورځول.

(۸۷) د خلکو د شکلونو مسخ کیدل.

(۸۸) په ځینې ځایونو کې د زمکې چاودل.

(۸۹) په ځینې خلکو باندې د کاڼو باران وردیدل.

(۹۰) د داسې باران وریدیل له کوم ځخه به چې هیڅ د خټو او ډبرو کوم کور بچ پاتې نشي.

(۹۱) له آسمان ځخه به باران راوریږي. مګر په هغه سره به نباتات نه راپورته کیږي.

(۹۲) د داسې فتنې ظهور کومه به چې ټول عرب هلاک کړي.

(۹۳) د مسلمانانو د مرستې لپاره د ونو خبرې کول.
(۹۴) د مسلمانانو د نصرت لپاره د تيږو (ډبرو) خبرې کول.
(۹۵) د مسلمانانو له يهوديانو سره جنګ کول.
(۹۶) د فرات سيند له مينځ څخه د سرو زرو د غره ظاهريدل.
(۹۷) کوم انسان چې فسق او فجور نه کوي هغه به عاجز بلل کيږي.
(۹۸) په جزيرة العرب کې دوباره د فصلونو او د نهرونو پيدا کيدل
(۹۹) د محبت فتنې ظهور.
(۱۰۰) د خوشحالي فتنې ظهور.
(۱۰۱) دتورې او رندې فتنې ظهور.
(۱۰۲) د داسې زمانې راتلل په کومه کې به چې يوه سجده له دنيا او په دنيا کې له ټولو خزانو څخه بهتره وي.
(۱۰۳) د اولې شپې مياشت به د معمول خلاف لويه تر سترګو کيږي.
(۱۰۴) د شام په لور د هجرت ډيروالى.
(۱۰۵) د مسلمانانو او روميانو تر مينځ د يوه لوى جنګ برپا کيدل.
(۱۰۶) د قسطنطنيه دوباره فتح کيدل.
(۱۰۷) د ميراث مال په ورثه ؤ کې نه تقسيمول.
(۱۰۸) د خلکو په مال غنيمت سره نه خوشحاليدل.
(۱۰۹) د پخوانيو اسلحو او سورليو لور ته د خلکو بيرته راتګ.
(۱۱۰) د بيت المقدس په ابادي کې اضافه والى راتلل.
(۱۱۱) د مدينې بې ابادي او هغه له اوسيدونکو او ذائرينو څخه تشه پاتې کيدل
(۱۱۲) مدينه به د شريرو خلکو داسې ايستنه کوي لکه آهنګر چې له کوزې زنګ ليرې کوي.
(۱۱۳) د غرونو له خپل ځاى څخه بې ځايه کيدل.

ص

مقدمة

بسم الله الرحمن الرحيم

الحمد لله رب العلمين، والصلوة والسلام على سيد الانبياء والمرسلين، نبينا محمد وعلى آله وصحبه اجمعين. افضل الصلوة وازكى التسليم، اما بعد:

په موجوده عصر کې وچ او لامده ټول سره ګډ وډ دي او نوبت تر دې رسيدلای چې په کتابونو او انټرنيټ باندې محض وهم، ګمان او له اندازې څخه د مستقبل هغه واقعات بيانيږي د کومو بنياد چې په هغو آيتونو او حديثونو باندې دی، په کومو کې چې د مستقبل هغو واقعاتو ته اشاره شوې کوم چې له قيامت سره تعلق لري.

څومره چې د اسلام او اسلامي ملت په مشکلاتو کې زياتوالی راځي، په هماغه انداز خلک له همدې نا خوښو حالاتو څخه د وتلو لياري لټوي، کله د ظهور مهدي خبرې اوريدل کيږي. کله د يهودو او نصاری ؤ په مقابل کې د هغه لوی جنګ خبرې کيږي د کوم ذکر چې په احاديثو کې راغلی او کله داسې خبرې کيږي چې په مشرق يا مغرب کې يو شمير خلک په زمکه کې غرق شوي او وغيره.

يو څه موده د مخه اتفاقي يوه افريقايي هيواد ته ولاړم نو ما وليدل چې هلته يو سړی را ښکاره شوی کوم چې دعوه کړې وه چې دی مسيح عيسی ابن مريم عليهما السلام دی او له اسمان څخه را نازل شوی.

ما په هغو حالاتو کې ضرور دا سوچ وکړ چې د قيامت د نښانو سم تعبير او تشريح وشي او خلک د هغه له ریښتوني معنا او مفهوم څخه خبر کړل شي، ستاسو سترګو ته غوړيدلی کتاب په همدې منظور وړاندې کيږي.

زه د هغو حضراتو شکريه اداء کول ضروري ګڼم کومو چې دا کتاب چاپ ته له تلو د مخه په پوره توجه سره مطالعه کړ او په خپلو قيمتي

ملاحضاتو او رایو سره یې ونازا وه، د همدغو حضراتو علماء کرامو په سر کې ډاکتر سلمان بن فهد العوده، شیخ ډاکتر عبد العزیز آل عبد الطیف، محدث عصر عبد العزیز الطریفي حفظه الله او ځینې نور شامل دي، د دې ټولو شخصیاتو له ما سره شفقت او نیکه تګلاره د هیریدو نه ده، زه د الله تعالی په دربار کې دعا کوم چې دا کتاب د نفع باعث وګرځوي، خالص د خپلې رضا لپاره یې قبول کړي او یو داسې نفع بخش علم یې وګرځوي کوم چې په ورځ د قیامت زما په حق کې ګواهي ورکړي –آمین

دکتور محمد بن عبد الرحمن العریفي
استاذ عقیده ومعاصر ادیان ومذاهب ملک سعود یونیورستي، ریاض
رکن اعلی کمیتي برای اسلامي ذرائع ابلاغ
محرم ۱۴۳۱ هجري ۲۰۱۰ میلادي

## مننه

**الحمد لله رب العلمين، والعاقبة للمتقين والصلوة والسلام على خير خلقه محمد وعلى آله واصحابه اجمعين.**

وبعد : يقينا په انسان باندې هر رنګه راتلونکي حالات د لوى متعال خداى ﷻ له لوري يو امتحان او ازمايښت دى، کله غم کله خوشحالي. کله راحت کله تنګي. کله غربت کله شتمني. دا ټول يواځې د دې لپاره وي تر څو انسان وازمويل شي چې څه کوي. آيا په غم کې صبر او په خوشحالي کې شکر وباسي او که نه؟ آيا په راحت او تنګي يو رنګه دى؟ آيا کله چې شتمن شي. دولت يې زيات شي نو له اسلام سره يې مينه او علاقه زياتيږي او که نه؟ دا يو سخت امتحان دى : دومره سخت چې ډير کم شمير خلک په دې امتحان کې کاميابيږي او وروسته په سپين مخ د خداى ﷻ حضور ته ورځي. الله تعالى ﷻ دې مونږ ټولو ته برى را په برخه کړي آمين.

لکه څرنګه چې د کتاب ليکل او ژباړل له صدقې جاريه څخه حسابيږي همدا ډول د کتاب چاپول هم د صدقې جاريه يوه برخه تشکيلوي او چاپ کونکي ته يې پس له مرګه هم اجرونه او ثوابونه رسيږي. له محترمو حاجي صاحبانو هر يو. محترم حاجي صاحب **علي احمد** د مرحوم حاجي صاحب حضرتُ ګل رحمه الله ځوى او محترم حاجي صاحب **دين ولي خان** د حاجي جلک خان ځدراڼ ځوى څخه يو جهان مننه کوم چې د دې کتاب لګښت يې په غاړه واخيست. الله تعالى دې د دوى دا قيمتي او تاريخي خدمت په خپل دربار کې ورته قبول او منظور کړي او الله تعالى دې له دوى څخه د داسې عام المنفعة کارونو سلسله زر تر زره نه پرې کوي.

آمين يارب العلمين

مولوي نجم الرحمن فضلي (پکتياوال)

## د قيامت نښانو په باره کې د تاليف مقصد

کله هم چې د کومې معاملې په باره کې يو انسان خبرې کوي او له تحقيق څخه کار اخلي، نو ضروري ده چې د هغه تحقيق او عمل په نتيجه کې څه ثمرات او فوايد هم حاصل کړي.

**پوښتنه**: آيا د قيامت د نښانو په تحقيق او پيژندنه کې زمونږ په عملي ژوند کې په رښتيا څه فوايد شته؟ يا دا چې محض معلومات دي، کوم چې يو انسان په خپله علمي ذخيره کې د زياتوالي را وستو لپاره جمع کوي او د هغه په روزمره ژوند کې د هغه کوم خاص تاثير نه وي؟

**ځواب**: امر واقع دا دی چې په قرآن مجيد او سنت مطهره (حديثو) کې د قيامت د نښانو ذکر موجود دی او د انسان په عملي ژوند کې د هغه بې شميره فوايد او ثمرات شته، چې يو شمير يې په لاندې ډول دي:

(١) په ايمان بالغيب کې مضبوطوالی، چې د ايماني عقيدې له شپږم رکن څخه دی.

الله تعالی ﷻ فرمايي:

﴿ الَّذِيْنَ يُؤْمِنُوْنَ بِالْغَيْبِ وَ يُقِيْمُوْنَ الصَّلٰوةَ ﴾ [١] هغه خلک کوم چې په غيبو باندې ايمان لري او لمونځ قايموي.

او له حضرت ابو هريرة رضي الله عنه څخه روايت دی چې رسول الله ﷺ فرمايلي:

﴿أمرت أن أقاتل الناس حتى يقولوا لا إله إلا الله فإذا قالوا لا إله إلا الله عصموا منى دماءهم وأموالهم إلا بحقها وحسابهم على الله﴾ ([٢]).

ژباړه: ما له خلکو سره د جنګ کولو حکم ورکړی تر څو چې هغوی ګواهي ورکړي چې له الله تعالی ﷻ پرته بل معبود نشته او په ما باندې او زما

---

[١] - البقرة، آية: ٣.

[٢] - صحيح مسلم، الايمان، حديث: ٢١.

لخوا په راوړل شوي شریعت باندې ایمان راوړي، کله چې هغوی داسې وکړي نو له ما څخه یې خپلې وینې او مال محفوظ کړل پرته د هغوی له حق او د هغوی حساب د الله په ذمه دی.

د ایمان بالغیب معنا دا ده چې په هر هغه شي باندې کامل ایمان او یقین وساتل شي د کومو په باره کې چې الله تعالی یا د هغه رسول ﷺ خبر ورکړی او هغه خبر په سمه توګه له رسول الله ﷺ څخه منقول وي، خوا د هغه مشاهده مونږ کړې وي او که مو نه وي کړې، مونږ ته په دې خبره یقین پکار دی چې دا خبره رښتیا او حق ده او له همدې خبرو څخه د قیامت نښانې هم دي، مثلاً: خروج دجال، نزول عیسی ابن مریم علیهما السلام، د یاجوج ماجوج راوتل، خروج دابه (د یوه عجیب الخلقت ځناور راوتل)، له مغرب څخه د لمر راختل او همدا شان نورې نښانې کومې چې په صحیحو دلایلو ثابتې دي.

(۲) د قیامت د نښانو په باره کې د پوهیدلو یوه لویه فایده دا هم ده چې یو انسان خپل نفس مسلسل د الله تعالی اطاعت ته اماده کړي او د قیامت ورځې لپاره خپل ځان تیار کړي، د هغه له ذکر څخه غافل خلک بیدار او توبې ته اماده شي، دا شی هغوی د دنیا لوري ته نه مایله کوي، امام الانبیاء محمد مصطفی ﷺ په خپل ژوند مبارک کې د قیامت له نښانو چې کله هم کومه نښانه بیانوله نو خپل صحابه یې په هماغه انداز باندې تیار کړي وو، ام المؤمنین زینب بنت جحش رضي الله عنها بیان کوي چې یو ځل رسول الله ﷺ د هغې خوا ته په ویریدونکې حالت کې راغی او وې فرمایل:

﴿وَيْلٌ لِلْعَرَبِ مِنْ شَرٍّ قَدْ اقْتَرَبَ فُتِحَ الْيَوْمَ مِنْ رَدْمِ يَأْجُوجَ وَمَأْجُوجَ مِثْلُ هَذِهِ﴾ (١).

---

١ صحیح البخاري. احادیث الانبیا. حدیث: ۳۳۴۶. وصحیح مسلم. الفتن. حدیث: ۲۸۸۰.

ژباړه: د عربو لپاره له هغه شر او فتنې څخه تباهي ده کومه چې نږدې راتلونکې ده، ياجوج ماجوج په ديوال کې دومره سوری کړی. بيا نبي کريم ﷺ د شهادت او درميانه ګوتې څخه حلقه جوړه کړه.

(۳) د قيامت په نښانو کې ډير شرعي احکام او مسائل هم بيان شوي. د دجال په زمکه کې د ګرځيدلو په واقعه کې بيان شوي چې يوه ورځ به د کال براره وي او يوه ورځ به د مياشتې برابره وي نو صحابه کرامو ﵃ له نبي کريم ﷺ څخه د دجال د دغو اوږدو ورځو په باره کې وپوښتل: اې د الله رسوله! آيا په دې لويو ورځو کې په يوه ورځ کې پنځه لمونځونه کافي دي؟ نبي کريم ﷺ وويل: نه! بلکه تاسو به د وختونو اندازه وکړی او د عامو ورځو مطابق به د لمنځونو لپاره وختونه متعين کړی (١).

مونږ د نبي کريم ﷺ د دغه ارزښتناک فرمان څخه دا معلومه وو چې هغه مسلمانان کوم چې په داسې هيوادونو کې اوسيږي چيرته چې شپه او ورځ په څو مياشتو مشتملې وي، هغوی خپل لمنځونه څنګه اداء کړي؟.

(۴) نبي کريم ﷺ د قيامت د ټولو نښانو په باره کې امت اګاه کړی، سره له دې چې دا ټول امور غيبي دي. هغه په محض ظن او تخمين سره نشي معلوميدلای، همدا شان دا امور د نبي کريم ﷺ د نبوت او رسالت د صداقت دليل هم دي، الله تعالی ﷻ فرمايي.

﴿عٰلِمُ الْغَيْبِ فَلَا يُظْهِرُ عَلٰى غَيْبِهٖٓ اَحَدًا ۝ اِلَّا مَنِ ارْتَضٰى مِنْ رَّسُوْلٍ فَاِنَّهٗ يَسْلُكُ مِنْۢ بَيْنِ يَدَيْهِ وَمِنْ خَلْفِهٖ رَصَدًا ۝﴾ (٢).

ژباړه: (الله) غالب دی پر غائبو (اشياؤ) باندې نو نه خبروي په غيبو خپلو باندې هيڅوک مګر هغه څوک، چې راضي وي ترې (او غوره کړی يې وي په

١ صحيح مسلم. الفتن. حديث: ٢٩٣٧.
٢ الجن. آية: ٢٦ – ٢٧.

اطلاع د غیبیاتو) له رسول خپل څخه نو بیشکه هغه الله روانوي په مخ د هغه (رسول محمد) کې او وروسته له هغه ځینې ساتونکي څوکیداران له هر طرفه له ملائکو.

(٥) د قیامت نښانو په باره کې په معلوماتو حاصلولو کې یوه لویه فایده دا هم ده چې مونږ پوه شو چې له هغو واقعاتو سره د مخامخ کیدو شرعي طریقه څه ده او همدا شان بیا د معاملې د ګډه وډ والي امکان هم نه وي، مثلاً: مونږ ته د دجال په باره کې په تفصیل سره خبر راکړی شي تر دې چې د هغه له سترګو، د هغه له تندي او د هغو شیانو په باره کې هم کوم چې له هغه سره دي مونږ اګاه کړی شو چې هغه څنګه دی تر څو چې مونږ په کومه فتنه کې واقع نشو او دا وپیژنو چې دا دجال دی.

(٦) مونږ به په اینده کې د مختلفو راتلونکو واقعاتو لپاره په ذهني ډول اماده یو، ځکه که یو شی یو ناڅاپه مخته راشي نو انسان په فطري ډول وار خطا کیږي او د تعجب او حیرانتیا ښکار کیږي.

(٧) په دې نښانو باندې په علم حاصلولو سره زمونږ مخته یو روښانه امید دی، ځکه چې د قیامت په نښانو کې دا هم دي چې له قیامت سره په نږدې وخت کې به اسلام غلبه تر لاسه کړي او په ټوله زمکه باندې به خپور شي او د یهودو او نصارئ ؤ دین به ختم شي، نبي کریم ﷺ زیری ورکړی چې اسلام به غلبه تر لاسه کړي او په ټولو دینونو باندې به بر لاسی شي، اګر که کافر هغه نه خوښوي.

(٨) په دې سره د انسان هغه فطري خواهش تسکین پیدا کوي چې هغه هر وخت د پټو شیانو متعلق د انکشافاتو او د اینده واقعاتو او حوادثو په باره کې د پوهیدا خواهش لري. شارع په دې سلسله کې مونږ ته ریښتوني خبرې ذکر کړې دي. اسلام د هغو ټولو دروغژنو دجالانو لار بنده کړې کوم چې په اینده واقعاتو د پوهیدا دعوه کوي، لکه نجومیان، عاملان، کاهنان او د

همداسې نورو خلکو، مونږ د الهي وحې په ذريعه د مستقبل د هغو ډيرو واقعاتو په باره کې ويلای شو کومې چې د قيامت له نښانو څخه دي.

(۹) د قيامت په نښانو باندې په ايمان راړو سره د انسان عقيده مضبوطيږي او په ايمان او ايقان کې زياتوالی راځي، له دې پرته يو شمير نور ثمرات او فوايد هم د قيامت د نښانو په علم کې موجود دي کومې چې زمونږ په عملي ژوندکي باندې ژور اثرات مرتب کوي.

## د قيامت نښانو په باره کې بنيادي اصول

په همدې موضوع باندې پخوانيو او نويو علماء کرامو ډير تصنيفونه کړي او دا سلسله لاپسې جاري او ساري ده، وخت په وخت په تې وي چينلونو، راډيو ګانو او انټرنيټ باندې د قيامت نښانو په باره کې بحث او مباحثه کيږي. مګر په دې باره کې د واردو نصوصو په پيژندلو کې ځينې خلک په اضطراب کې مبتلا دي.

ما په همدې تناظر کې دا ضروري خيال کړی چې دقيامت نښانو او د هغو په باره کې د واردو نصوصو له تعامل سره متعلق يو شمير بنيادي اصول بيان کړم.

(۱) د استدلال لپاره يواځې په قرآني آيتونو او صحيح حديثونو باندې انحصار کيږي. له دې امله چې دا دواړه داسې ذرائع دي په کومو سره چې د غيبي شيانو په باره کې سم خبر تر لاسه کيدلای شي، الله تعالی ﷻ فرمايي:

﴿ قُلْ لَّا يَعْلَمُ مَنْ فِي السَّمٰوٰتِ وَ الْاَرْضِ الْغَيْبَ اِلَّا اللّٰهُ ؕ وَ مَا يَشْعُرُوْنَ اَيَّانَ يُبْعَثُوْنَ ﴿۶۵﴾ ﴾ (۱)

ژباړه: نه پوهيږي هغه څوک چې په اسمانو کې دي (له فرښتو او انسانانو نه په غيبي امورو باندې) مګر (عالم دی په غيبو) الله او نه پوهيږي دغه کفار چې کله بيا دوی ژوندي را پورته کړل شي دوی.

(۱) النمل، آية: ۶۵

همدا شان الله تعالی جلاله فرمايي:

﴿عٰلِمُ الْغَيْبِ فَلَا يُظْهِرُ عَلٰى غَيْبِهٖٓ اَحَدًا ﴿٢٦﴾ اِلَّا مَنِ ارْتَضٰى مِنْ رَّسُوْلٍ﴾ (١).

ژباړه:

(الله) غالب دی پر غائبو (اشیاؤ) باندې نو نه خبروي په غيبو خپلو باندې هیڅوک مګر هغه څوک چې راضي وي ترې (او غوره کړی يې وي په اطلاع د غيبياتو) له رسول خپل څخه.

الله تعالی د ديني مصلحتونو لپاره خپل نبي حضرت محمد ﷺ هم د غيبو له ځينو خبرو څخه خبر کړی، په کومو کې چې اشراط (د قيامت نښانې) هم دي او د هغوی تعلق له مستقبل سره دی.

که چیرته د قيامت نښانو د پيژندلو لپاره له اسرائيلي روايتونو يا له خوبونو کار واخيستل شي يا کوم سياسي واقعات پرته له کوم دليله د قيامت په نښانو کې شمار کړی شي، نو دا طرز العمل بالکل مناسب نه دی

همدا شان دا خبره هم ډيره ضروري ده چې کوم نص تاسو د دليل په توګه وړاندې کوی هغه بايد په صحيح سند سره ثابت وي، خواه هغه نبي کريم ﷺ ته منسوب وي يا د هغه ﷺ په صحابه ؤ ﷺ کې کوم يوه ته منسوب وي.

نن صبا د قيامت نښانو موضوع په خلکو کې د جوش او خروش پيدا کولو، د کتابونو د تجارت کولو او د هغوی په لوستونکو کې د زياتوالي راوستلو په خاطر، غريب، شاذ او په اوهامو بنا خبرې کول رواج ګرځيدلي، د دغه نوعيت يو دلچسپ عبارت کوم چې ما لوستلی: دا دی! د ترکيه د استنبول په يوه کتابخانه (دارالکتب الاسلاميه) کې د دريمې هجري صدۍ په نايابو خطونو کې يو منفرد روايت بيان شوی وو چې حضرت ابو هريرة،

---

(١) - الجن، آية: ٢٦ - ٢٧.

ابن عباس او علي ابن ابی طالب رضي الله عنهم بیان کړی وو او په روایت کې دي چې حضرت ابو هریرة رضي الله عنه د دې خبرې له بیانولو څخه ویریده مګر کله چې د مرګ وخت راغی نو د علم پټولو له ګناه څخه د بچ کیدا په خاطر هغه دا خبره بیان کړه او حاضرینو ته یې وویل: له ما سره په اخره زمانه کې د کیدونکو جنګونو په ځینو واقعاتو باندې بنا یو خبر شته. هغوی وویل: ضرور یې راته بیان کړه الله تعالی دې تا ته جزا خیر درکړي، نو هغه خپلې خبرې داسې شروع کړې!

د (۱۳۰۰ هجري) په پنځمه یا شپږمه عشره کې به په مصر کې یو ناصر نامی واکمن وي، عرب به هغه ته د یوه بهادر انسان خطاب کوي، لیکن الله تعالی به هغه پی در پی په جنګونو کې ذلیل او رسوا کړي او هیڅوک به د هغه مرستې ته را نشي، کله چې الله تعالی د مصر حقیقي مرسته کول وغواړي نو په دې محبوبو میاشتو کې به هغه فتح کړی شي، د مصر اوسیدونکي او عرب به په یوه غنم رنګي سړي باندې راضي شي، د کوم نام به چې سادات وي او د پلار نام به یې انور وي، مګر هغه به په غمزده ښار مسجد اقصی کې له غاصبو سره صلح وکړي.

په عراق کې به یو ظالم واکمن وي، د هغه په یوه سترګه کې به لږ ضعف وي. د هغه نام به صدام وي او هغه به له ده سره هر ټکر کیدونکي سړي ته سخته صدمه رسوي، دنیا به د هغه لپاره په یوه وړه شانته کمین ګاه کې جمع کړی شي، هغه به په دې کې ور داخل شي او د هغه لپاره به یواځې په اسلام کې خیر وي، په هغه کې به خیر او شر دواړه وي او بربادي د هغه چا لپاره ده کوم چې له امانتدار مهدي سره خیانت وکړي.

په (۱۴۲۰ هجري یا ۱۴۳۰ هجري) کې به امانتدار مهدي ظاهر شي، هغه به له ټولې دنیا سره جنګ وکړي. د هغه په مقابله کې به ګمراه، د الهي غضب ښکار او منافقین له جبل مجدون سره نږدې په اسر او معراج زمکه کې جمع شي او د مکر ملکه زانیه به راووځي، د کومې نام چې امریکا ده.

هغه به دنیا په دې زمانه کې د ګمراهي او کفر لوري ته را بولي او یهود به په دې ورځ په اعلی مقام باندې فایز شي. هغه به د ټول بیت المقدس او مقدس ښار مالک شي، د هغوی قبضه به د سختو واورو وریدونکو سیمو او سختې ګرمي لرونکو سیمو بر سیره په هغو تمامو سیمو هم وي کومې چې په بحري یا هوائي لارو باندې راځي. مهدي به ووینې چې ټوله دنیا له بیکاره مکر سره د ده خلاف ده، د هغه به یقین وي چې د الله تدبیر تر ټولو سخت دی، ټول کائنات د الله تعالی دي، د هغه لوري ته د ټولو ور تلل دي، ټوله دنیا د هغه لپاره د یوې ونې په څیر ده او هغه د هغې د جرړ (ولو) او شاخونو مالک دی. الله تعالی به په هغوی بد ترین کاڼي (ډبرې) وو وروي، په هغوی باندې به زمکه، سمندر او آسمان اور شي. آسمان به په هغوی بد ترین باران وو وروي او ټول د زمکې اوسیدونکي به په کفر لعنت وايي: او الله تعالی به د هر رنګه کفر د زوال حکم وکړي (۱).

نوټ: په دې باب کې د ثقه علماء کرامو لور ته رجوع وکړی.

د هر سړي په زړه کې چې د قیامت نښانو په باره کې کوم خیال پیدا شي، د هغه لپاره واجب دي چې هغه د هغه له ښکاره کولو د مخه په دې معامله کې د اهل علمو په خدمت کې حاضر شي، الله تعالی ﷻ فرمایي:

﴿فَسۡـَٔلُوٓاْ أَهۡلَ ٱلذِّكۡرِ إِن كُنتُمۡ لَا تَعۡلَمُونَ ۝﴾ (۲).

ژباړه:

پس پوښتنه وکړئ له خاوندانو د ذکره (د کتابیانو له علماؤ څخه) که یی تاسې چې نه پوهیږی.

همدا شان الله تعالی ﷻ فرمایي:

---

۱ کشف المکنون في الرد علی کتاب هرمجدون: ۵۸. همدا شان وګورئ: المهدي وفقه اشراط الساعة: ۷۳۶.

۲ - الانبیاء، آیة: ۷.

﴿وَلَوْ رَدُّوهُ إِلَى الرَّسُولِ وَإِلَىٰ أُولِي الْأَمْرِ مِنْهُمْ لَعَلِمَهُ الَّذِينَ يَسْتَنبِطُونَهُ مِنْهُمْ ۗ وَلَوْلَا فَضْلُ اللَّهِ عَلَيْكُمْ وَرَحْمَتُهُ لَاتَّبَعْتُمُ الشَّيْطَانَ إِلَّا قَلِيلًا ﴾ (۱).

ژباړه:

او که دوی ور رسولای (او پرېښې وای) دا خبر طرف د رسول د الله ته او طرف د حاکمانو خپلو ته له دوی څخه نو خامخا معلوم به وای (تدبیر) د دې کار هغو کسانو ته چې ایستلی (او بیلولی شي ښه له بدو) له دوی ځینې رسول الله او امراء، نو تحقیق به یې شوی وای او که نه وای فضل د الله پر تاسې (په اسلام) او رحمت د ده (په نزول د قران) نو هرو مرو به متابعت کړی ؤ تاسې د شیطان مګر متابعت به نه وو کړی له تاسې څخه لږو.

د امت د سلف صالحینو طریقه دا وه، د دې تایید له دې حدیث څخه هم کیږي د کوم روایت چې د رسول صحابي حضرت ابو طفیل رضي الله عنه کړي، هغه فرمايي: یو ځل زه په کوفه کې وم چې یو نا ځاپه وویل شول دجال ظاهر شو، زه د حضرت خذیفه بن اسید په خدمت کې هغه وخت حاضر وم کله چې هغه حدیث بیانولو، ما وویل : دجال ظاهر شو، هغه وویل: کینه، زه کیناستم، په دې وخت کې د کومې قبیلې سردار هم راغی، هغه هم وویل : څه مو اوریدلي تاسو خلکو! دجال ظاهر شو او خلک هغه وژني. خذیفه هغه ته هم وویل : کینه، هغه هم کیناست. لږ وروسته دا اعلان وشو چې هیڅ دجال نه دی ظاهر شوی، دا ټول یو رنګ لرونکي دروغ دي. مونږ حضرت خذیفه ته عرض وکړ : ابو سریحه! تا خو مونږ د دې لپاره کینولي یو چې له تا سره د دجال په باره کې علم دی مونږ ته یو څه ووایه؟ هغه وویل : که چیرته دجال دستاسو په دور کې ظاهر شي نو د نن ورځې ماشومان به هغه په ډبرو (تیږو) وولي. دجال په هغه زمانه کې ظاهریږي کله چې د خلکو په خپل مینځ کې

---

۱ النساء، آية: ۸۳.

سره حسد او بغض وي، د هغوی دیني حالت به ډېر کمزوری وي او په خپل مینځ کې به یې اختلاف وي، هغه به په اساني سره تر هرې چینې رسیږي .....الحدیث [۱].

## خلکو ته د هغوی له ذهن سره برابرې خبرې وکړی

د قیامت نښانو په باره کې ځینې خبرې کوونکي خلک د عوام الناس یا د نویو مسلمان شویو په وړاندې داسې خبرې کوي کومې چې د هغوی له ذهن څخه پورته وي.

په دې سلسله کې مشهوره قاعده دا ده چې هره هغه خبر چې دستا په علم کې وي د بیانولو وړ نه ده او نه د هرې صحیح خبرې نشر کولو ته ضرورت شته، له دې امله چې عقلونه په هغې باندې له پوهیدو قاصر دي یا له دې امله چې هغوی له دې شیانو سره مناسبه رویه نه اختیاره وي، یا له دې خبرې څخه کوم غلط مطلب اخلي.

د حضرت علي ﵁ قول دی: خلکو ته هغه خبره وکړی په کومې چې هغوی پوهیږي، آیا تاسو غواړی چې د الله او د هغه د رسول ﷺ تکذیب دې وشي [۲].

د یوه بل روایت الفاظ داسې دي: اې خلکو! ایا تاسو خوښوی چې الله او د هغه رسول ﷺ دروغژن وبلل شي؟ خلکو ته هغه خبر بیان کړی په کومه چې پوهیږي او هغه پریږدی کومه چې هغوی نه پیژني [۳].

---

[۱] المستدرک للحاکم: ۴/ ۵۲۹.

[۲] - صحیح البخاري. العلم. قبل الحدیث: ۱۲۷. امام شاطبي د دغه حدیث د مفهوم بیانولو په وخت کې ویلي: یعنې د علم خپرول د خلکو له فهمونو سره مشروط شوي دي. لکه چې د یوې مسئلې بیانول د یوه قوم لپاره مناسب وي خو دا مسئله بیا د بل قوم لپاره مناسب نه وي

[۳] صحیح مسلم. في مقدمة الصحیح: ۱/ ۷۶.

حضرت عبد الله بن مسعود رضي الله عنه وايي: که چيرته تاسو د يوه قوم په وړاندې داسې يوه خبر ذکر کړی کومه چې د هغوی له ذهني سطحې پورته وي نو دا په هغوی کې د ځينو خلکو لپاره فتنه جوړيږي (١).

## د قيامت نښانو په نصوصو کې په مخته راغليو واقعاتو باندې د تطبيق قواعد

په ماضي قريب او بعيد کې د ديني ضعف په زمانو کې د قيامت نښانو په احاديثو کې په مخته راغليو واقعاتو باندې د تطبيق کولو سعې او کوشش شوی، بلکه په ځينو وختونو کې د ځينو واقعاتو متعلق په پوره وثوق سره ويل شوي چې دا د قيامت له نښانو څخه دي، لهذا ما دامناسب وبلله چې د قيامت نښانو په باره کې په راغليو حديثونو کې په مخته راتلونکيو واقعاتو باندې د تطبيق کولو په باره کې يو شمير اصول او ضوابط بيان کړم.

**لومړۍ قاعده:** له مونږ څخه د شريعت هيڅکله دا غوښتنه نه ده چې د قيامت نښانو په باره کې راغلي حديثونه په مخته راتلونکيو واقعاتو باندې ضرور تطبيق کړو، چونکه هر انسان په فطري ډول د خپلو ورځو او واقعاتو متعلق د ټولو حواسو په ذريعه د مخته راتلونکيو واقعاتو مشاهده کوي، لهذا دا واقعات چې څومره په دې انسان باندې اثر کوي، په نورو يې نه کوي، نور خلک د ماضي واقعات او حالات په خپلو حواسو او شعور کې په هغه ډول نه ساتي، لکه څرنګه يې چې هغه انسان ساتي کوم ته چې متعلقه واقعات مخته راغلي وي، دا چې انسان د نن ورځې واقعات هم پيژني، په همدې بنا د هغه لپاره د نن ورځې مصيبتونه هم د ماضي د دردناکو مصيبتونو په څير دي، لکه چې يو شاعر وايي:

---

(١) صحيح مسلم، المقدمة، باب النهي عن الحديث بكل ما سمع.

## یا زمانا بکیت منه
## فلما صرت في غیره بکیت علیه

ژباړه

زه د زمانې له سختیو څخه ژاړم، لیکن کله چې زه په بله زمانه کې ور داخل شم نو بیا زه د هغې تیرې شوې زمانې په یاد کې ژاړم.

اهل علم، معرفت او تقوه لرونکو ته روا دي چې د قیامت نښانو او د هغو واقعاتو د تطبیق په باره کې اجتهاد وکړي، لکه څرنګه چې حضرت عمر ﷺ د ابن صیاد په باره کې د رسول الله ﷺ په وړاندې په خپل اجتهاد سره وویل چې دا دجال دی او نبي کریم ﷺ د عمر ﷺ په دې خبره هیڅ سوال ونکړ.

که چیرته د اجتهاد په نتیجه کې د امت مسلمه په صفونو کې انتشار او افتراق پیدا کیږي، یا د دغه اجتهاد په مقابل کې واضح شرعي دلایل موجود وي نو نه یواځې دا چې انسان له دې څخه منعه کړی شي بلکه په همدې باره کې زجر او توبیخ هم ورکړی شي، البته که کوم دلیل ور سره وي بیا نه، د مثال په ډول: که چیرته د دغه اجتهاد په نتیجه کې خپل مینځي جنګونه شروع شي، یا کومه فتنه سر راپورته کړي، عزتونه پایمال شي یا د ستاسو اتحاد له منځه ولاړ شي نو داسې اجتهاد پرته له کوم شرعي دلیله جایز نه دی.

د قیامت نښانو په باره کې واردو احادیثو ته کتونکي ځیني حضرات د ماضي او حال د ټولو واقعاتو او حالاتو جایزې اخستلو ته ډیر لیوال دي او هغوی د داسې حدیثونو په کومو کې چې د مستقبل لپاره پیشنګوئي شوې وي له موجوده واقعاتو او حالاتو سره د جوړ راوستلو په کوشش کې دي.

مثلاً کله چې دا حدیث د هغوی له نظر څخه تیریږي ﴿یوشک اهل العراق

ان لايجبى اليهم قفيز (١) ولا درهم﴾ نږدې ده چې د عراق خلکو ته به د عجمو له لوري هيڅ غله او نقدي نه رسيږي (٢).

نو دوی وايي: وګورئ! دا د قيامت له نښانو څخه ده او دا واقع شوې، کله چې په سنه (١٤١٠ هجري مطابق ١٩٩٠ عيسوي) کې امريکه د عجمو له لوري عراق په اقتصادي لحاظ محاصره کړ.

سره له دې چې قوي احتمال شته چې په حديث کې د دغې واقعې لور ته اشاره وي، مګر د حديث په داسې طريقه په وثوق سره په واقعاتو او حالاتو باندې تطبيق کول او بيا يې بالجزم بيانول صحيح نه دي.

له دې لويه غلطي هغه د ځينو اهل علمو له لوري د دنيا د عمر تعينول دي، ځينو ويلي: د دنيا عمر (٩٠٠) کاله باقي پاته دی او ځينو نورو ويلي: د دنيا عمر (١٠٠٠) کاله باقي پاته دی، دا خبرې چې د کومو علماؤ په قول مشهورې دي، په هغوی کې امام سيوطي، امام سخاوي او ځينې نور حضرات شامل دي.

خلاصه د خبرې دا ده چې د کومې نښانې په باره کې له ښکاره شرعي دليل پرته په وثوق او اعتماد سره دا ويل چې دا واقعه د قيامت له نښانو څخه ده يا په فلاني کال کې دا واقع کيدونکې ده جايز نه دي، لکه چې ډيرو خلکو د مهدي احاديث په ځينو مشخصو خلکو باندې تطبيق کړي او

---

١ - قفيز: د پيماني يو قسم دی، کوم چې د عراق خلکو استعمالوه. لکه مونږ چې نن ورځ کلوګرام وغيره استعمالوو.

٢ - له ابو نضره څخه روايت دی چې مونږ له جابر بن عبد الله ﷺ سره وو چې نبي کريم ﷺ وفرمايل: نږدې ده د عراق اوسيدونکو ته به غله او نقدي نه رسيږي. مونږ عرض وکړ دا پابندي به د چا له لوري وي؟ هغه وفرمايل: د دوی لپاره به دا پابندي د عجمو له لوري وي. بيا هغه وفرمايل: نږدې ده د شام اوسيدونکو ته به کومه غله او نقدي نه رسيږي. مونږ عرض وکړ: دا پابندي به د چا له لوري وي؟ هغه په څواب کې وويل: د روميانو له لوري (صحيح مسلم)

په پوره وثوق سره وايي چې فلانی سړی مهدي دی او بيا د دې دعوې په نتيجه کې ډيرې فتنې سر راپورته کړي، وينې توی شي او د واکمنو په مقابل کې بغاوت جوړ شي.

د کتاب (اسرار الساعة) مؤلف ليکي : دجال ته به په ايران کې د مهدي له ظهور وړاندې حکومت وسپارل شي. بيا وايي : دا دجال محمد خاتمي دی (مؤلف ده ته د آيت الله ګورباچوف نام ورکړی) [1].

يو بل مؤلف په خپل کتاب (المسيح الدجال) کې ليکلي : دا خبره په پوره وثوق سره کيدلای شي چې مهدي کوم ته چې امت په انتظار کې دی صدام حسين دی [2].

د کتاب (هرمجدن) مؤلف امين محمد جمال ليکلي : په ځينو حديثونو کې د سفياني نامې شخص ذکر راغلی. له هغه څخه مراد صدام حسين دی.

د کتاب (اشراط الساعة وهجوم الغرب) د مؤلف خيال دا دی چې له سفياني څخه مراد د اردن پخوانی واکمن شاه حسين دی [3].

په دغو دعوو کې په کومه يقين کول او بيا د هغې تعين کول او په پوره وثوق سره يې بيانول درست نه دي، که د مخته راتلونکيو واقعاتو په باره کې کوم ښکاره دلايل او قرائن د هغه څه تصديق وکړي کوم چې په احاديثو کې د قيامت په نښانو کې ذکر شوي، نو هغه واقعات به بيا په مکمل ډول باندې د هغې مطابق وي او د قيامت په نښانه کيدو کې به يې بيا کوم شک او شبه پاتې نه وي او په داسې واقعاتو باندې بيا د قيامت د احاديثو په تطبيق کې کومه مضايقه نشته، سره له دې چې د دې امر امکان هميشه باقي دی چې

---

[1] - کتاب (اسرار الساعة) تاليف: فهد السالم.

[2] - صدام په سنه (۱۴۲۷ هجري د ذوالحجة په ۱۰ مطابق ۲۰۰۷ ميلادي کې ووژل شو) د (المسيح الدجال) د مؤلف نوم سعيد ايوب دی. مؤلف دا خبره د صدام د واکمنۍ پر مهال کړې وه.

[3] - د اردن بادشاه شاه حسين په سنه (۱۴۲۰ هجري مطابق ۱۹۹۹ عيسوي د فروري په ۷ وفات شوی) د (اشراط الساعة وهجوم الغرب) د مؤلف نام فهد سالم دی.

نور واقعات کوم چې له هغه سره مشابه یا له هغه څخه ډیر واضح وي په هغو باندې احادیث تطبیق کړی شي.

د دې ځینې مثالونه.

(۱) امام مسلم رحمه الله روایت کړی چې سیده اسماء بنت ابي بکر رضی الله عنهما زوی عبد الله ابن زبیر رضی الله عنهما چې کله د حجاج بن یوسف ثقفي لښکر وواژه نو هغه د حجازو (کومو چې ابن زبیر شهید کړی وو د لښکر مشر ته) مخاطب شو او وې ویل: رسول الله ﷺ مونږ ته بیان کړی چې په قبیله ثقیف کې به یو کذاب او یو د وینو تویونکی ظالم پیدا شي، کذاب خو مونږ ولید او سفاک قاتل زما په ګمان له تا پرته بل څوک نه دی، حجاج چې دا خبره واوریده نو ولاړ او روان شو او د سیده اسماء خبرې ته یې هیڅ ځواب ورنکړ (۱).

امام نووي رحمه الله فرمایلي: سیده اسماء چې د کوم کذاب د لیدو خبره وکړه: له هغه څخه مراد مختار بن ابی عبید ثقفي دی کوم چې انتهائي دروغژن دی، د هغه بد ترین دروغ دا دي چې هغه دعوه کړې وه چې جبریل هغه ته راځي، د امت علماء په دې امر باندې متفق دي چې له کذاب څخه مراد مختار بن ابی عبید ثقفي دی او له (مبیر) یعنې سفاک قاتل څخه مراد حجاج بن یوسف ثقفي دی (والله اعلم) (۲).

(۲) په صحیح مسلم کې حدیث دی، حضرت ابو هریرة رضی الله عنه یې راوي دی چې رسول الله ﷺ فرمایلي: قیامت تر هغه وخته نه قایمیږي تر څو چې د حجاز له زمکې یو اور را ښکاره نشي په کوم سره به چې په بصری (۳) کې د اوښانو غاړې روښانه کړی شي (۴).

---

۱ صحیح مسلم، الفضائل، حدیث: ۲۵۱۵.

۲ شرح صحیح مسلم للنووي، فضائل الصحابة، حدیث: ۲۵۴۵.

۳ دا حوران ښار دی کوم چې نن ورځ تول د شام ملک یوه برخه ده.

۴ صحیح مسلم، الفتن، حدیث: ۲۹۰۲.

امام ابو شامه د دې واقعې د کیفیت بیانولو په وخت کې ویلي : په سنه (۶۵۴ هجري مطابق ۱۲۵۶ عیسوي د مې میاشتې په ۲۹ د چهارشنبه په شپه) په مدینه منوره کې یو دردناک آواز پورته شو. له هغه وروسته زلزله راغله. په کومې سره چې زمکه، دیوالونه، چتونه او دروازې ولړزیدې او د جمعې شپې پورې وقفه په وقفه روانه وه، بیا یو ناڅاپه د بنو قریضه ؤ سره نږدې د تورو ډبرو (تیږو) لرونکې زمکې څخه یو لوی اور ظاهر شو، کوم چې مونږ په خپلو ښارونو کې په خپلو کورونو کې د ناستې په حالت کې لیده، مونږ دا محسوسوله چې له دې اور څخه ټولې کندې ډکې دي او هغه په وادي شظا کې د اوبو تر تیریدونکې ځایه ورسید، له دغه اور څخه لوی لوی لمبې هم پورته راوتلې (۱).

امام نووي رحمه الله فرمایي : زمونږ په زمانه کې په سنه (۶۵۴ هجري) کې په مدینه منوره کې یو دردناک اور را ووت، د مدینې مشرقي لور ته د تورو ډبرو (تیږو) لرونکې زمکې له شا څخه ظاهریدونکی اور ډیر دردناک وو، د هغه د ظهور خبرې په تواتر سره بیان شوې دي (۲).

حافظ ابن حجر رحمه الله فرمایي : ما ته په ظاهره معلومه ده دا اور هغه دی کوم چې د مدینې شاو خوا ښکاره شوی دی او امام قرطبي او نور علماء کرام هم دا پیژني (۳).

(۳) امام احمد په خپل مسند کې د حضرت ابو هریرة رضي الله عنه روایت نقل کړی چې رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمایلي : قیامت هغه وخت قایمیږي کله چې فتنې ښکاره شي، دروغ زیات شي، بازارونه سره نږدې شي (یعني ډیر شي) زمانه

---

[1] وګورئ د امام قرطبي کتاب (التذکرة. ص: ۵۲۷).
[2] شرح صحیح مسلم للنووي. الفتن. حدیث: ۲۹۰۲.
[3] فتح الباري شرح صحیح البخاري. الفتن. حدیث: ۷۱۱۹.

نږدې شي او هرج ډېر زيات شي، پوښتنه وشوه : اې د الله رسوله ! دا هرج څه شی دی؟ رسول الله ﷺ ووېل : قتل او خونريزي (١).

شيخ ابن باز رحمه الله په فتح الباري باندې په خپل تعليق کې فرمايلي : په حديث کې د مذکور تقارب ډېر مناسب تفسير زمونږ په موجوده زمانه کې دا معلومېږي چې ښارونه او هيوادونه به له يوه بل سره نږدې شي او د هغوی تر مينځ به موجوده مسافه د هوائي جهازونو او موټرو په ذريعه په کمه موده کې طی کېږي (والله اعلم).

**دويمه قاعده** : د قيامت نښانې ډېره موده مخته هم واقع کېدلای شي:

اشراط قيامت هغه نښانې دي : کومې چې په قرب قيامت دلالت کوي، خواه هغه د قيامت له وقوع سره نږدې وي يا لېرې وي، د مثال په ډول د نبي کريم ﷺ فرمان دی:

﴿بعثت انا والساعة كهاتين، وقرن بين السبابة والوسطى﴾ (٢).

ژباړه : زه او قيامت يو ځای داسې را لېږل شوي يو، بيا نبي کريم ﷺ د شهادت او درميانه ګوتې سره ملاقي کړې او صحابه کرامو ﷺ ته يې ور وښودلې.

له دې حديث څخه معلومېږي چې د نبي کريم ﷺ بعثت او وفات د قرب قيامت له نښانو څخه دي، ګويا چې له دې وروسته واقع کېدونکې نښانې له قيامت سره ډېر نږدې تعلق لري.

مونږ د قيامت نښانو زمانه د وقوع په اعتبار په لاندې اقسامو کې تقسيموو:

(١) په هغوی کې يو شمير داسې دي کومې چې په عين هغې طريقې واقع کېږي په کومه طريقه چې نبي کريم ﷺ د هغو په باره کې خبر ورکړی وي،

---

(١) مسند أحمد : ٢ / ٥٢٠.

(٢) صحيح البخاري، الطلاق، حديث: ٥٢٠١، وصحيح مسلم، الفتن، حديث: ٢٩٥١.

مثلاً : لکه د نبي کريم ﷺ بعث، وفات او همدا شان د دروغژنو نبيانو ظهور وغيره.

(۲) ځينې داسې دي چې د هغوی ابتدائي برخه واقع شي او د وخت په تيريدا سره د هغوی پاتې برخه هم واقع شي، لکه د بازارونو له يو بل سره نږدېوالی، د کتابت عام کيدل او د قتل او خونريزي ډيروالی.

(۳) د قيامت يو شمير نښانې داسې دي کومې چې تر دا مهاله نه دي واقع شوې او په وروسته کې به واقع شي، لکه خروج دجال، خروج دابه وغيره.

**دريمه قاعده** : د قيامت نښانو په مخته راتلونکو واقعاتو باندې د غلط تطبيق نقصانات:

(۱) له دليل پرته بې سره او بې پښو خبرې :

کله چې تاسو په وثوق سره ووايی چې د قيامت فلانی نښانه په فلانې صورت کې واقع کيدونکې ده نو دا خبره ښکاره دليل يا شرعي قرينې يا استدلال ته محتاجه ده، حالانکه په دې باره کې هيڅ دليل يا قرينه موجوده نه وي، يوه رښتوني مؤمن ته د تحقيق او پلټنې حکم شوی دی، ښايست دا نه دی چې هغه د شريعت په امورو کې يا په شرعي خبرو کې له علم لرلو پرته خپلې ژبې خلاصې کړي.

(۲) د غير شرعي عمل ارتکاب يا د شرعي عمل پريښودل:

يو شمير خلک د داسې کتابونو مطالعه کوي په کومو کې چې د مهدي ذکر شوی وي او ځينې وخت د همدغو کتابونو مؤلفين په وثوق سره دا خبره کوي چې فلانی سړی مهدي دی نو د کتاب لوستونکي په لوی شدت سره انتظار شروع کړي او خپل روز مره معاملات تر مهدي پورې وتړي، حتی چې ځينې حضرات اسونه او تورې واخلي تر څو چې په راتلونکو ورځو کې له مهدي سره يو ځای شي او د باطل په مقابل کې په جنګ کې شرکت وکړي.

ځينې داسې هم دي چې خپل واده يا د کور تعمير يواځې له دې امله پريږدي چې د خروج دجال زمانه د ده په سر ولاړه ده. لهذا دې شيانو ته څه ضرورت دی.

(۳) د الله تعالی او د هغه د رسول ﷺ تکذيب

که چيرته په حتمي توګه دا وويل شي چې فلانی سړی مهدي دی او په وروسته کې ثابته شي چې دا خبر غلطه ده نو د هغې نقصان دا دی چې خلک به بيا د مهدي په باره کې له واردو احاديثو څخه انکار وکړي، همدا شان د قيامت نورې نښانې هم که له تحقيق پرته په واقعاتو باندې تطبيق کړی شي نو په دې سره هم خلک د هغوی په باره کې له واردو احاديثو انکار کوي.

## د اشراط الساعة؛؛ معنا او مفهوم

**الاشراط** : دا د شرط جمع ده او په معنا د نښانې سره ده، اشراط الساعة مطلب دا چې د قيامت نښانې او د هغه اسباب، يعنې دا هغه نښانې دي له کومو وروسته چې قيامت واقع کيدونکی دی[1].

**الساعة** : له دې څخه مراد هغه وخت دی په کوم کې چې قيامت واقع کيږي، د دغه نام (الساعة) يعنې ګړۍ ځکه ايښودل شوی چې دا ګړۍ به ناڅاپه د خلکو په سر باندې دريږي او ټول مخلوق به د يوه سخت آواز په ذريعه مړ کيږي[2].

---

[1] الصحاح للجوهری. مادة: شرط، والنهاية لابن الاثير. مادة: شرط.

[2] النهاية لابن الاثير مادة، سوع.

## د قیامت نښانو ډولونه

د قیامت نښانې په دوو قسمونو کې تقسیم کړی شوې دي.

**اول قسم**

وړې نښانې او هغه په دوه ډوله دي.

**اول**

د قیامت له وقوع څخه ډیرې لیرې نښانې : دا هغه نښانې دي کومې چې ډیرې مخکې واقع شوې دي او د قیامت له واقع کیدا څخه د ډیر لیرې والې له امله ورته وړې نښانې وئیل کیږي. لکه د نبي کریم ﷺ بعثت، د سپوږمۍ دوه ځایه کیدل او په مدینه کې د یوه دردناک اور ظاهریدل.

**دوم**

**درمیانه نښانې** : دا داسې نښانې دي کومې چې ظاهرې شوې دي مګر تر اوسه لا ختمې شوې نه دي. بلکه په کثرت سره پکې زیاتوالی راځي او دا نښانې ډیرې زیاتې دي. دا علامات صغری. یعنې وړې نښانې دي، د کومو چې ذکر راتلونکی دی، په هغو کې ځینې دا دي. له خپلې مالکې څخه د غلام پیدا کیدل، لوڅ اوسیدل، لوڅ لغړ بدن. د بزو او میګو څرونکیو تر منځ د لویو او لوړو عمارتونو په جوړولو کې له یوه بل څخه د مختنه تلو کوشش کول او د دیرشو دجالي خلکو ظاهریدل چې د نبوت دعوه به یې په دروغو کړې وي.

**دویم قسم**

علامات کبری : دا هغه نښانې دي د کومو له ظاهریدو وروسته چې زر قیامت قایمیږي. دا لس نښانې دي او تر اوسه یې یوه هم نه ده ظاهره شوې. حضرت حذیفة بن اسید ﷺ بیان کړی چې مونږ یوه ورځ په خپل مینځ کې خبرې سره کولې چې نبي کریم ﷺ مونږ ته تشریف راووړ : نبي کریم ﷺ وفرمایل ! تاسو خلک په څه باره کې خبرې سره کوئ؟ مونږ عرض وکړ : د

الله رسوله ! مونږ د قیامت په باره کې خبرې سره کولې. نو رسول الله ﷺ وفرمایل ! واورئ ! قیامت تر هغه نه قایمیږي تر څو چې تاسو لس نښانې ونه وینی. بیا حضور ﷺ د لاندې نښانو ذکر وکړ.

(۱) دود (دخان)

(۲) دجال

(۳) خروج دابه (د عجیب الخلقت ځناور ظهور)

(۴) له مغرب څخه د لمر راختل

(۵) د عیسی علیه السلام نزول

(۶) خروج یاجوج ماجوج او درې ځایه به د زمکې د چاودلو واقعات مخته راځي

(۷) په مشرق کې د زمکې چاودل

(۸) په مغرب کې د زمکې چاودل

(۹) په جزیرة العرب کې د زمکې چاودل

(۱۰) له ټولو څخه په آخیر کې چې کومه نښانه ښکاره کیږي هغه دا ده چې له یمن څخه به یو اور راووځي، هغه به خلک د میدان محشر په لور له شور (غال مغال) سره بیایي [1].

په ځینې نورو احادیثو کې د یو شمیر نورو نښانو ذکر هم راغلی، په هغو کې د مهدي ظاهریدل. د کعبې ورانیدل. د قرآن کریم له زمکې څخه پورته ختل شامل دي. د کوم چې په راتلونکو احادیثو کې ذکر راځي [2].

---

[1] - صحیح المسلم، الفتن، حدیث ۲۹۰۱. د دغو علامو ذکر په راتلونکې برخه (علامات کبری) کې راځي.

[2] - د همدغو علامو تفصیل په راتلونکیو صفحو کې د (علامات صغری) په بیان کې په ۱۲۱، ۱۲۲ او ۱۳۱ نمبر باندې راتلونکی دی.

## علامات صغری

**لومړنی قسم: هغه نښانې کومې چې واقع شوې دي.**

(۱) زمونږ د خواږه پیغمبر حضرت محمد ﷺ بعثت.
(۲) د رسول الله ﷺ وفات.
(۳) د سپوږمۍ دوه ټوټې کیدل.
(۴) د صحابه کرامو رضي الله عنهم د دور ختمیدل.
(۵) د بیت المقدس فتح.
(۶) د بزو په قعاص [۱] مرض د خلکو په کثرت سره مړه کیدل.
(۷) په انواعو او اقسامو سره د فتنو ظهور.
(۸) د ستیلائټ چینلونو ډیروالی.
(۹) د نبي کریم ﷺ د جنګ صفین په باره کې پیشنګوئي.
(۱۰) د خوارجو ظهور.
(۱۱) د دروغژنو مدعیانو ظهور.
(۱۲) د امن او خوشحالي ډیروالی.
(۱۳) د حجاز له علاقې څخه د یوه لوی اور ظهور.
(۱۴) له ترکو سره جنګ.
(۱۵) د دورو وهونکو ظالمو واکمنو ظهور.
(۱۶) د قتل او خونریزي ډیروالی.
(۱۷) د دیانتداري ورکیدل.
(۱۸) د پخوانیو امتونو د طریقو پیروي.
(۱۹) د غلام له خپلې باداري څخه پیدا کیدل.

---

[۱] قعاص د څناورو یو قسم مرض دی د کوم له امله به یې چې پوزه بهیږي او یو ناڅاپه به مړ کیږي (فتح الباری: ۲/ ۳۳۴).

(۲۰) د داسې ښځو ظاهریدل کومې به چې د جامو اغوستلو باوجود لغړې وي.
(۲۱) لوڅ اوسیدل. لغړ بدن. د بزو او میګو څرونکیو تر مینځ د لوړو عمارتونو په جوړولو کې مقابله کول.
(۲۲) خاص خاص خلکو ته سلام کول.
(۲۳) د تجارت ډیر پر مخ تګ.
(۲۴) له میړه سره په تجارت کې د ښځې شراکت.
(۲۵) د ځینې تجارانو په ټول مارکیټ تسلط.
(۲۶) د دروغو ګواهي
(۲۷) د رښتونې ګواهي پټیدل
(۲۸) د جهالت خپریدل.
(۲۹) د نویو مرضونو او بخل ډیروالی.
(۳۰) د صله رحمي له منځه تلل.
(۳۱) له همسایه سره بد سلوک.
(۳۲) د بې حیایي او فحاشي عام کیدل.
(۳۳) امانتدار ته خائن وئیل او بد دیانتو ته د منصوبونو سپارل.
(۳۴) د معززو خلکو وفات او د رذیلو خلکو ډیروالی.
(۳۵) د مال په حلالوالي او حراموالي کې بې پروائي.
(۳۶) د فی مال په اغنیاؤ او رؤساؤ کې تقسمیدل.
(۳۷) امانت غنیمت بلل.
(۳۸) په خوشحاله زړه د زکاة نه ورکول.
(۳۹) د غیر الله لپاره د علم زده کړه.
(۴۰) د ښځې تابعداري او د مور نافرماني.
(۴۱) د دوستانو نږدې کول او د مور پلار لیرې کول
(۴۲) په مساجدو کې د آوازونو پورته کیدل.
(۴۳) د قبایلو قیادت د فساقو او فجارو لاسونو ته ورتلل

(۴۴) کم اصله خلک د قوم سردار جوړیدل.
(۴۵) د یوه انسان عزت یواځې د هغه له شر څخه د ځان ساتلو لپاره کول.
(۴۶) زنا حلال ګڼل.
(۴۷) نارینه ؤ ته د وریښمو استعمال حلال بلل.
(۴۸) شرابو ته حلال وئیل.
(۴۹) د سندرو او د موسیقي د آلاتو استعمال جائز بلل.
(۵۰) په خلکو کې د مرګ تمنا.
(۵۱) د داسې حالاتو پیدا کیدل چې یو کس به سهار مؤمن وي او ماښام کافر.
(۵۲) په مساجدو کې د نقش او نګار ډیروالی او په هغه فخر کول.
(۵۳) د کورونو بې ځایه ښایست او آرایش.
(۵۴) د آسماني تندرونو ډیروالی.
(۵۵) د کتابت کثرت او اشاعت.
(۵۶) په دروغ وئیلو سره د مال ګټل او په تکلیفي خبرو باندې فخر کول.
(۵۷) له قرآن څخه پرته د نورو کتابونو په کثرت سره خپرول او ترویج.
(۵۸) د قاریانو ډیروالی، د علماؤ او فقهاؤ کموالی.
(۵۹) له کم عمرو څخه د علم زده کړه.
(۶۰) د یو ناځاپه مرګونو زیاتیدل.
(۶۱) د بې وقوفو حکومت.
(۶۲) د زمانې نږدې کیدل.
(۶۳) د خلکو د ترجماني په منصب د کم عقلو کامیابیدل.
(۶۴) له کم اصله خلکو سره د دولت ډیروالی.
(۶۵) له مساجدو څخه د ګزرګاه جوړول.
(۶۶) د مهر مقدار اول ډیر زیات او بیا ډیر کمیدل.
(۶۷) د آسونو په قیمت کې اول ډیر زیات زیاتوالی او بیا ډیر کموالی راتلل.
(۶۸) د تجارتي مراکزو تر مینځ د فاصلې کموالی.

(۶۹) د عالمي قومونو لخوا په اسلامي امت حمله کول.
(۷۰) د لمانځه له امامت څخه ځان ساتل.
(۷۱) د مؤمن د خوبونو رښتیا ثابت کیدل.
(۷۲) د دروغو ډیروالی.
(۷۳) د خلکو په مینځ کې د نفرت پیدا کیدل.
(۷۴) د زلزلو ډیروالی.
(۷۵) د ښځو ډیروالی.
(۷۶) د نارینه ؤ کموالی.
(۷۷) د فحاشي او عریاني عام کیدل او په ښکاره یې ارتکاب.
(۷۸) د قرآن مجید په تلاوت د اجرت اخیستل.
(۷۹) په خلکو کې غټوالی عام کیدل.
(۸۰) بې له غوښتنې ګواهي ته د خلکو تیاریدل.
(۸۱) د داسې خلکو ظاهریدل کوم به چې نذرونه مني مګر هغه به نه پوره کوي.
(۸۲) د طاقتورو لخوا د کمزورو خوړل.
(۸۳) د الله تعالی له لوري په نازل شوي شریعت باندې د فیصلو نه کول.
(۸۴) د رومیانو ډیروالی او د عربو کموالی.

**دویم قسم: هغه نښانې کومې چې تر دا مهاله نه دي ښکاره شوې**

(۸۵) له خلکو سره د مال ډیروالی.
(۸۶) په زمکه کې خښې شوې خزانې د باندې راغورځول.
(۸۷) د خلکو د شکلونو مسخ کیدل.
(۸۸) په ځینې ځایونو کې د زمکې چاودل.
(۸۹) په ځینې خلکو باندې د کاڼو باران اوریدل
(۹۰) د داسې باران اوریدل له کوم څخه به چې د خټې او تیږې کوم کور بچ پاتې نشي.

(۹۱) له آسمان څخه به باران راوريږي. مګر په هغه سره به نباتات نه راپورته کيږي.
(۹۲) د داسې فتنې ظهور کومه به چې ټول عرب هلاک کړي.
(۹۳) د مسلمانانو د مرستې لپاره د ونو خبرې کول.
(۹۴) د مسلمانانو د نصرت لپاره د تيږو (ډبرو) خبرې کول.
(۹۵) د مسلمانانو له يهوديانو سره جنګ کول.
(۹۶) د فرات درياب له مينځ څخه د سرو زرو د غره ظاهريدل.
(۹۷) کوم انسان چې فسق او فجور نه کوي هغه به عاجز بلل کيږي.
(۹۸) په جزيرة العرب کې دوباره د فصلونو او د نهرونو پيدا کيدل.
(۹۹) د محبت فتنې ظهور.
(۱۰۰) د خوشحالي فتنې ظهور.
(۱۰۱) د تورې او رندې فتنې ظهور.
(۱۰۲) د داسې زمانې راتلل په کومه کې به چې يوه سجده له دنيا او په دنيا کې له ټولو خزانو څخه بهتره وي.
(۱۰۳) د اولې شپې مياشت به د معمول خلاف لويه تر سترګو کيږي.
(۱۰۴) د شام په لور د هجرت ډيروالی.
(۱۰۵) د مسلمانانو او روميانو تر مينځ د يوه لوی جنګ برپا کيدل.
(۱۰۶) د قسطنطنيه دوباره فتح کيدل.
(۱۰۷) د ميراث مال په ورثه ؤ کې نه تقسيمول.
(۱۰۸) د خلکو په مال غنيمت سره نه خوشحاليدل.
(۱۰۹) د پخوانيو اسلحو او سورليو لور ته د خلکو بيرته راتګ.
(۱۱۰) د بيت المقدس په ابادي کې زياتوالی راتلل.
(۱۱۱) د مدينې بې ابادي او هغه له اوسيدونکو او ذائرينو څخه تشه پاتې کيدل.

(۱۱۲) مدینه به د شریرو خلکو داسې ایستنه کوي لکه آهنګر چې له کوزې څخه زنګ لیرې کوي.
(۱۱۳) د غرونو له خپل ځای څخه بې ځایه کیدل.
(۱۱۴) له قحطان څخه د یوه سړي ظهور د کوم به چې خلک اطاعت کوي.
(۱۱۵) د جهجاه نامي یوه سړي ظهور.
(۱۱۶) د درندګانو او جماداتو خبرې کول.
(۱۱۷) د دورې خبرې کول.
(۱۱۸) د پیزار د تسمو خبرې کول.
(۱۱۹) په کورونو کې د ظروفو خبرې کول. یعنې د کور څښتن ته به د کور حال وایي.
(۱۲۰) له قیامت څخه د مخه د اسلام له دنیا څخه ورکیدل.
(۱۲۱) له صحائفو او د قاریانو له سینو څخه د قرآن مجید پورته تلل.
(۱۲۲) په بیت الله باندې حمله کونکی ټول لښکر په زمکه کې ننوتل.
(۱۲۳) د حج پریښودل.
(۱۲۴) د ځینې قبایلو عربو لخوا دوبارد د بت پرستي اختیارول.
(۱۲۵) د قریش قبیلې په مکمل ډول له منځه تلل.
(۱۲۶) د حبشي د یوه کس په لاس د کعبې ورانیدل.
(۱۲۷) د مؤمنو روحونو د قبضولو لپاره د پاکې هوا چلیدل.
(۱۲۸) د مکې په ښار کې د لوړو عمارتونو دریدل.
(۱۲۹) د امت د آخرې زمانې خلکو لخوا په لومړنیو باندې لعنت ویل.
(۱۳۰) د نویو نویو سپرلیو ایجاد.
(۱۳۱) د امام مهدي تشریف راوړل.

**ضروري خبر**

دا خبر مخکې تيره شوه چې د قيامت نښانې په دوه قسمه دي: علامات صغرى (وړې نښانې) او علامات كبرى (غټې نښانې) او د دواړو په مينځ كې فرق دا دى: كله چې غټې نښانې واقع شي نو سمدستي له هغو وروسته قيامت واقع كيدونكى دى. د همدغو نښانو اثرات به خلک ډير په شدت سره محسوس كړي. تر كومه چې د وړو نښانو تعلق دى نو هغه د قيامت له وقوع څخه كافي زمانه پخوا وقتا فوقتا په مختلفو سيمو كې ښكاره شوې دي. ځيني خلک په هغو خبر دي او ځيني ناخبره.

مونږ د قيامت د وړو نښانو له ذكر څخه خبر شروع كوو او په دې سلسله كې د كتاب الله او سنت دلايل هم ذكر كوو. زمونږ كوشش دا دى چې كوم احاديث دلته ذكر كوو د هغوى په انتخاب كې د دقت او صحت خيال وساتلى شي او همدا شان د صحابهؤ هغه اثار ذكر كوو د كومو چې صحيح سند ثابت دى.

**《۱》 زمونږ د خواږه پيغمبر ﷺ بعثت**

نبي كريم ﷺ خپل امت اګاه كړى چې زما بعثت د قرب قيامت دليل او د قيامت نښانه ده. دا د قيامت په وړو نښانو كې تر ټولو اولينى نښانه ده. حضرت سهل بن سعد ﷺ ويلي دي چې ما نبي كريم ﷺ وليد چې هغه مبارک خپلې د شهادت ګوتې او درميانه ګوتې لور ته اشاره وكړه او وې فرمايل: ﴿بُعِثْتُ وَالسَّاعَةُ كَهَاتَيْنِ﴾ زه او قيامت دا شان سره راليږل شوي يو لكه څنګه چې دا دواړه ګوتې له يوې او بلې سره يو ځاى دي (١).

هغه ﷺ دا هم وفرمايل چې زه د قيامت د اغاز لپاره راليږل شوى يم (٢).

---

[1] صحيح البخارى، التفسير، حديث ۴۹۳۲، وصحيح المسلم، الفتن، حديث: ۲۹۵۱.

[2] همدا سې امام حاكم رحمه الله په الكنى كې روايت كړى. علامه الباني رحمه الله په سلسله صحيحه (حديث ۸۰۸) كې دا حديث صحيح بللى، په دغه حديث كې مذكور الفاظ د (نسم الساعة) معنا د قيامت په شروع كې – د نسيم اصلي معنا د واړه شي ابتدائي برخه ده.

امام قرطبي رحمه الله فرمايلي : د قيامت لومړنی نښانه د نبي کريم ﷺ تشريف راوړل دي. ځکه چې نبي کريم ﷺ آخرالزمان پيغمبر دی او د ده ﷺ او د قيامت تر مينځ هيڅ نبي راتلونکی نه دی [1].

## ﴿۲﴾ د رسول الله ﷺ وفات

د نبي کريم ﷺ وفات د قيامت له ابتدائي نښانو څخه دی. حضرت عوف بن مالک رضي الله عنه بيان کړی : زه د تبوک غزا په موقع د نبي کريم ﷺ په خدمت کې حاضر شوم. هغه ﷺ د څرمنې په يوه خيمه کې تشريف درلود. هغه ﷺ وفرمايل : له قيامت څخه مخکې شپږ نښانې شمار کړی.

(۱) زما وفات.

(۲) د بيت المقدس دوباره فتح.

(۳) بيا هغه قسم زورور مرګ کوم به چې په تاسو کې د بزو د قعاص مرض په شان خپور شي.

(۴) بيا د مال ډېروالی. حتی که يوه سړي ته سل دينار ورکړل شي هغه به بيا هم راضي نه وي. مطلب دا چې له خلکو سره به مال ډير شي او غنيان به شي، تر دې که يوه کس ته تر زرو دينارو کم شی ورکړل شي هغه به نه پرې خوشحاله کيږي.

(۵) بيا د يوې داسې فتنې ظهور کومه به چې د عربو هر کور ته ورداخله شي.

(۶) بيا به د ستاسو او بنواصفر (روم، يورپ او امريکه خلکو) تر مينځ صلح وشي. مګر هغوی به له تاسو سره غداري وکړي او د ستاسو لور ته به تر اتيا بيرغونو لاندې جمع راشي او د هر بيرغ لاندې به دولس زره فوځ وي [2].

---

[1] التذکرة للقرطبي ک۲ : ۳۰۹.

[2] صحيح البخاري. الجزية والموادعة. حديث: ۳۱۷۶.

د رسول الله ﷺ وفات د اهل اسلام لپاره عظيم ترينه سحنه ده. کله چې رسول الله ﷺ وفات شو نو په مدينه منوره کې د صحابه کرامو رضي الله عنهم د سترګو مخته د پريشانيو. بدنصيبي. بې انتظامي. د ظلم او ستم او د مصيبتونو امبارونه پريوتل

د نبي کريم ﷺ په وفات سره له آسمانو څخه د وحې د راتلو سلسله قطع شوه او په امت مسلمه کې د فتنو سلسله شروع شوه. د ځينې قبايلو مرتد کيدل د همدغې سلسلې يوه کړۍ ده.

## ﴿٣﴾ د سپوږمۍ دوه ټوټې کيدل

الله تعالى په خپل مقدس کتاب قران مجيد کې فرمايي ﴿اِقْتَرَبَتِ السَّاعَةُ وَانْشَقَّ الْقَمَرُ ۝ وَاِنْ يَّرَوْا اٰيَةً يُّعْرِضُوْا وَيَقُوْلُوْا سِحْرٌ مُّسْتَمِرٌّ ۝﴾ [١].

ژباړه:

را نږدې شو قيامت او څيرې دوه ټوټې شوه سپوږمۍ. او که ويني دغه (کفار د قريشو) کوم دليل د (قدرت) نو پر څنګ به شي دوی (مخ به واړوي) ترې او وايي به دوی (دغه) سحر کوډې دي قوي چې له پخوا را هسې راځي.

حافظ ابن کثير رحمه الله د دغه آيت کريمه په تفسير کې ويلي چې د (انشقاق قمر) دا واقعه د نبي کريم ﷺ په ژوند مبارک کې مخته راغلې وه. کومه چې په صحيح سند سره ثابته او په متواتر حديث کې د هغې ذکر موجود دی. د امت د علماؤ په دې خبره باندې اتفاق دی چې دا واقعه د نبي کريم ﷺ په ژوند مبارک کې مخته راغلې وه او دا د نبي کريم ﷺ له معجزو څخه يوه حيرانونکې معجزه ده [٢].

---

[١] القمر: ١: ٢

[٢] تفسير ابت كثير. القمر. ١: ٢.

حضرت انس بن مالک ﷺ بیان کوي: چې د مکې خلکو له نبي کریم ﷺ څخه وغوښتل چې هغه ﷺ ورته کومه نښانه ور ښکاره کړي نو نبي کریم ﷺ ورته سپوږمۍ په دوو ټوټو کېدلو سره وروښودله [1].

حضرت عبد الله بن مسعود ﷺ فرمايي: یو ځل مونږ په منا کې له نبي کریم ﷺ سره وو چې یو ناڅاپه سپوږمۍ وچاودله او په دوو ټوټو کې سره تقسیم شوه. یوه ټوټه یې د غره شاته او بله یې مخته وغورځیدله. رسول الله ﷺ مونږ ته وفرمایل: ګواه اوسئ [2].

## ﴿۴﴾ د صحابه کرامو رضي الله عنهم له دنيا څخه تلل

د نبي کريم ﷺ له ذات ګرامي وروسته صحابه کرام رضي الله عنهم د دغه امت افضل ترين خلک دي، د حضرت ابوموسی اشعری ﷺ حدیث دی چې نبي کریم ﷺ وفرمایل: د آسمان ستوري د آسمان لپاره د امن او سلامتي ضمانت دی. کله چې ستوري ختم شي نو هغه قیامت به راځي د کوم چې وعده شوې ده او زه د صحابه کرامو رضي الله عنهم لپاره امن او سلامتي یم. کله چې زه لاړ شم نو په صحابه ؤ رضي الله عنهم باندې به هغه حالت راځي د کوم چې وعده شوې ده او زما صحابه د امت لپاره د امن او سلامتي ضامن دي. کله چې صحابه کرام رضي الله عنهم لاړ شي نو په امت کې به هغه اختلاف او انتشار مخته راشي د کوم چې له هغوی سره وعده شوې ده [3].

له دې حدیث څخه معلومه شوه چې نبي کریم ﷺ د صحابه کرامو رضي الله عنهم له دنیا څخه تلل د قیامت له دوو نښانو سره یو ځای کړل او وې فرمایل: یو د نبي کریم ﷺ وفات او دویم د ستوریو ختمیدل او د شهابونو غورځیدل.

---

[1] صحیح البخاری. لمناقب. حدیث: ۳۶۳۷. وصحیح مسلم. صفات المنافقین. حدیث: ۲۸۰۲.
[2] صحیح البخاري. المناقب. حدیث: ۳۶۳۶. وصحیح مسلم. صفات المنافقین. حدیث: ۲۸۰۰.
[3] صحیح مسلم. فضائل الصحابه. حدیث: ۲۵۳۱.

له احاديثو څخه دا هم ثابته ده چې له دنيا څخه به نيک خلک يو يو ځي او بالاخر به په بدترينو خلکو باندې قيامت قايميږي.

## ﴿۵﴾ د بيت المقدس فتح

کله چې د نبي کريم ﷺ بعثت وشو نو په دې وخت کې په بيت المقدس باندې د سلطنت روم د عيسايانو قبضه وه. سلطنت روم په دې وخت کې ډير طاقتور او با اختياره حکومت ؤ. په هماغو حالاتو کې نبي کريم ﷺ د مسلمانانو په لاس د بيت المقدس د فتح خوشخبري واوروله او هغه يې د قيامت په نښانو کې شمار کړه. لکه څرنګه چې د عوف بن مالک رضي الله عنه په حديث کې راغلي چې نبي کريم ﷺ وفرمايل: شپږ نښاني له قيامت څخه د مخه شمار کړې او په هغوی کې يوه نښانه حضور ﷺ د بيت المقدس فتح بيان کړه (۱).

بيت المقدس د سيدنا حضرت عمر فاروق رضي الله عنه په عهد خلافت کې په سنه (۱۶ هجري مطابق/ ۶۳۷ عيسوي) کې فتح شو. هغه بيت المقدس له کفر څخه پاک کړ او په هغه کې يې يو مسجد جوړ کړ.

بيت المقدس دوه ځلې فتح شوی. يو ځل د حضرت عمر فاروق رضي الله عنه په عهد خلافت کې او دويم ځل د سلطان صلاح الدين ايوبي د حکومت په سنه (۵۸۳ هجري مطابق/ ۱۱۷۸ عيسوي) دور کې او يو ځل به بيا د الله تعالی جل جلاله په حکم سره د يوه مسلمان ټولي په لاسونو فتح کيږي. حتی چې ونې او بوټي به هم خبرې کوي او وايي به اې مسلمانه! اې د الله بنده! دغه يو يهودي زما تر شا پټ شوی. راشه دغه زر قتل کړه (۲).

---

۱- صحيح البخاری. الجزية والموادعة. حديث ۳۱۷۶.

۲- صحيح مسلم. الفتن. حديث: ۲۹۲۱.

په راتلونکو صفحو کې به انشاء الله د بیت المقدس په سلسله کې د مسلمانانو او یهودو تر مینځ د کیدونکو ځینو جنګونو ذکر به راشي (۱).

## ﴿۶﴾ د میګو په قعاص مرض د خلکو په کثرت سره مرګ

دا هم د قیامت له نښانو څخه ده او په دغه حدیث کې موجود یو لفظ (موتان) د مبالغې صیغه ده، د کومې چې معنا ده مرګ به په کثرت سره واقع کیږي. لکه څرنګه چې په وبائي مرضونو کې خلک د سیګړو او زرګونو په شمیر کې د مرګ ښکار کیږي.

وئیل شوي چې دا نښانه به د طاعون عمواس (۲) په صورت کې واقع کیږي، طاعون یو وبائي مرض دی. په دې کې به سوزش د جسم په کومه برخه کې ښکاره شي او له هغه سره به مریض په ډیر شدید درد او تکلیف کې مبتلاء وي. دا مرض ډیر متعدي او مهلک دی.

حضرت عوف بن مالک ﷺ روایت کوي چې نبي کریم ﷺ وفرمایل: له قیامت څخه وړاندې شپږ شیان شمار کړی او هغه ﷺ په هغوی کې د ﴿مُوْتَانٌ كَقُعَاصِ الْغَنَمِ﴾ (۳) یعنې په وبایي امراضو سره د زیاتو مرګونو ذکر یې هم وکړ لکه څرنګه چې د میګو رمه د متعدي امراضو ښکار کیږي همدا شان به د انسانانو مرګ هم وي.

په اسلامي امت کې دا واقعه د حضرت سیدنا عمربن الخطاب ﷺ په عهد خلافت کې د بیت المقدس له فتحې له ۱۶ هجري کال وروسته په ۱۸ هجري کې منځته راغلې وه. کله چې د شام په زمکه

---

۱ - وګورې: په علامات صغری کې ۹۵ نمبر علامه.

۲ - عمواس له بیت المقدس سره نږدې په فلسطین کې د یوه کلي نوم دی. وګورئ: معجم البلدان. مادة. عمواس.

۳ - صحیح البخاری. الجزیة والموادعة. حدیث ۳۱۷۶.

د طاعون مرض خپور شو او د الله تعالی مخلوق یې په لوی شمیر کې د مرګ تر خولې ور تیر کړ چې پنځه ویشت زره مسلمانان هم د دغه وبا ښکار شول.

په دغه وبا کې ډیر جلیل القدر صحابه کرام رضی الله عنهم هم له دې فاني دنیا څخه رخصت شول. په هغوی کې سیدنا معاذ بن جبل. ابو عبیده. شرحبیل بن حسنه. فضل بن عباس بن عبد المطلب رضی الله عنهم او ځینې نور حضرات هم شامل دي.

﴿کَقُعاصِ الْغَنَمِ﴾ یو مرض دی. چې کوم ځناور ونیسي. نو د هغه له پوزې څخه یوه ماده خارجیږي او هغه اناً فاناً مړ کیږي. نبي کریم ﷺ د مرګ کثرت له ﴿کَقُعَاصِ الْغَنَمِ﴾ سره له دې امله مشابه کړ چې په طاعون کې به هم په بدن یو داسې زخم وي. له کوم نه به چې یوه سیال ماده خارجیږي او مریض به د هغې له وجهې د مرګ تر خولې رسیږي.

## ﴿۷﴾ په انواعو او اقسامو سره د فتنو ظهور

دا داسې نښانه ده کومه چې په عصر حاضر کې ښکاره شوې او انسان په ډول ډول فتنو کې بیکاره ژوند تیره وي. په دغو فتنو باندې په یو نظر اچولو سره کوم څه چې مخته راځي په هغوی کې ځینې په لاندې ډول دي.

د بد نظرې فتنه په دې دور کې ښه په زور سره روانه ده. سټلایټ ټي وي چینلونه. فحش میګزین. د انټرنیټ بې حیا ویب سایټونه. ویډیو. د موبایل او کمپیوټري سیډیانو په ذریعه د فحش تصویرونو او فلمونو یوه بل ته لیږل. دا او دا ډول نورې بیشماره فتنې. کوم کس چې د الله تعالی ویره او د هغه تعظیم په ځای راوړي نو هغه دې دا پریږدي او ځان دې ترینه وساتي تر څو چې الله تعالی د ایمان حلوت ورته نصیب کړي.

همدا شان د حرام مال فتنه. سود. رشوت. د نشې خرڅون او د حرام لباس په تجارت سره چې کومې روپۍ ګټل کیږي. دا ټولې د همدې دور

فتنې دي. د حرام مال خوړونکي دعا الله تعالی نه قبلوي او داسې خلکو ته يې ډېر سخت وعيد اورولی دی. همدا شان حرام لباس فتنه ده خواه که په نرانو کې وي او که په ښځو کې. له دې څخه ځان ساتل ډېر ضروري دي. په نني زمانه کې فتنو داسې په کثرت سره زور کړی که چيرته کوم متقي انسان د پاک اوسيدلو کوشش وکړي نو هغه په خلکو کې اجنبي تر سترګو کيږي.

(الفتن) د فتنة جمع ده. په معنا د امتحان او ازمايښت سره ده. د هر مکروه او ناخوښ شي لپاره دا لفظ استعماليدلای شي. نبي کريم ﷺ له ډيرو داسې دردناکو فتنو څخه خبر ورکړی په کومو کې به چې په بوه مسلمان باندې حق ګډ وډ کړی شي. کله چې کومه يوه ظاهره شي نو مؤمن به وايي: دا فتنه زما د هلاکت باعث ده. بيا چې کله دا فتنه ورکه شي نو د هغې په ځای به بله دويمه فتنه راشي.

حضرت ابو هريرة ﵁ بيان کوي چې نبي کريم ﷺ وفرمايل:

﴿قال بادروا بالأعمال فتنا كقطع الليل المظلم يصبح الرجل مؤمنا ويمسي كافرا أو يمسي مؤمنا ويصبح كافرا يبيع دينه بعرض من الدنيا﴾

ژباړه:

د تورې شپې د فتنو له سيلابونو څخه وړاندې نيک اعمال وکړئ. يو سړی به د صبا په وخت کې مؤمن وي مګر له ماښام کيدو مخکې به کافر شي يا به د ماښام په وخت کې مؤمن وي مګر له صبا کيدو مخکې به کافر شي. انسان به د معمولي دنيوي فايدې په عوض کې خپل دين خرڅوي (١).

(١) صحيح مسلم. الايمان. حديث: ١١٨.

**د حدیث معنا:**

په دې حدیث کې ترغیب دی چې د داسې وخت له راتلو مخکې په کوم کې چې نیک عمل کول بې حده ډیر مشکل دي. نیک عمل وکړی. د پیوسته ظاهریدونکو او د مشغولیدونکو فتنو له دور څخه وړاندې کومې چې د تورې تیارې شپې په څیر دي او سپوږمۍ په هغه کې نه تر سترګو کیږي، نیک اعمال په ځای راوړئ.

نبي کریم ﷺ د همدغو فتنو د شدت احساس په دې طریقه بیان کړی چې یو انسان به د ماښام په وخت کې مؤمن وي او له صبا کیدو د مخه به کافر شي. یا دا چې د صبا په وخت کې به مؤمن وي مګر له ماښام کیدو د مخه به کافر شي. دا به له دې امله کیږي چې فتنې به ډیرې غټې او دردناکې وي. د هغوی له امله به په انسان کې په یوه ورځ کې دا بدلونونه ظاهریږي.

## ﴿۸﴾ د سټلایټ چینلونو ډیروالی

نن ورځ کم از کم دیارلس زره سټلایټ چینلونه له فضاء څخه نشریات کوي، کوم چې د فتنو او بدو کارونو د نشرولو ذریعه جوړه شوې. په تیر شوي حدیث کې د همدغو فتنو لور ته عمومي اشاره موجوده ده په کوم کې چې نبي کریم ﷺ فرمایلي ؤ ﴿بادروا بالأعمال فتنا كقطع الليل﴾ لیکن په ځینې نورو احادیثو کې د همدغو چینلونو او د هغوی د بیکاریو لور ته نسبتا واضح اشاره هم پیدا شوې. امام ابن ابی شیبة په خپل مصنف کې په صحیح سند سره له حضرت حذیفة بن یمان ﷺ څخه روایت ذکر کړی چې هغه فرمایلي ﴿ لَيُوشِكَنَّ أَنْ يُصَبَّ عَلَيْكُمَ الشَّرُّ من السَّمَاءِ حَتَّى يَبْلُغَ الْفَيَافِيَ﴾ (۱) له ما سره ویره ده چې پر تاسو باندې له آسمان څخه شر نازل شي کوم به چې

---

(۱) المصنف لابن ابی شیبة: ۱۵/ ۱۱۰.

تر (فیافي) پورې ورسیږي. وی وئیل ابو عبد الله: دا (فیافي) څه شی دی؟ هغه ورته وویل: شاړې او بې خبره زمکې.

د عربو په لغت کې د (السماء) لفظ د هر هغه شي لپاره ویل کیږي کوم چې پر انسان له پاسه وي، د لغت په مشهور کتاب (لسان العرب) کې دي: سماء هر هغه شي ته ویل کیږي کوم چې بلند وي او پر تاسو یې سیوری کړی وي[1].

تې وي د هر هغې فتنې. ناوړه اخلاقو او د لهو لعب استقبال کوي کوم چې له مصنوعي سیارې نه تې وي ته رارسیږي حتی چې نن صبا خو په ځنګلونو او سحراؤ کې خیمې هم له همدغې فتنې څخه محفوظې نه دي.

## ﴿٩﴾ د رسول الله ﷺ د جنګ سفین په باره کې پیشنګوئي

د قیامت په نښانو کې هغه جنګونه او معرکې هم شاملې دي د کومو په باره کې چې نبي کریم ﷺ خبر ورکړی. خواه دغه جنګونه د مسلمانانو او کافرانو تر مینځ وي یا په خپله د مسلمانانو په مینځ کې وي، د مسلمانانو په مینځ کې له جنګونو څخه یو جنګ سفین هم دی. کوم چې د حضرت عثمان ﷺ له شهادت څخه وروسته د حضرت علي او حضرت معاویه ﷺ فوځونو په مینځ کې په سنه (٣٦ هجري) کې وشو.

حضرت ابوهریرة ﷺ بیان کوي چې نبي کریم ﷺ وفرمایل: ﴿لَا تَقُومُ السَّاعَةُ حَتَّى تَقْتَتِلَ فِئَتَانِ عَظِيمَتَانِ يَكُونُ بَيْنَهُمَا مَقْتَلَةٌ عَظِيمَةٌ ودَعْوَتُهُمَا وَاحِدَةٌ﴾.

ژباړه: قیامت تر هغه وخته نه قایمیږي تر څو چې دوه غټې ډلې په خپل مینځ کې جنګ سره ونکړي. د دوی په مینځ کې به د قتل او خونریزي یوه لویه معرکه برپا کیږي. سره له دې چې د دواړو ډلو دعوه به هم یوه وي[2].

---

[1] لسان العرب. مادة: سما.

[2] صحیح البخاری. الفتن. حدیث: ٧١٢١. صحیح مسلم. الفتن. حدیث: ١٥٧. بعد الحدیث: ٢٨٨٨.

**تنبيه**: د صحابه کرامو ﷺ په مينځ کې د پيدا شوې فتنې په باره کې د اهل السنت موقف.

د نبي کريم ﷺ صحابه عام بشر دي. له هغوی ﷺ څخه هم هغه کارونه کېدلای شي کوم چې له عامو انسانانو څخه صادرېږي. هغوی اجتهاد هم کوي. خطائي هم پکې واقع کېږي. د هغوی په مينځ کې تکرار هم کېږي او کله کله خبره تر جنګ هم رسيږي. د ټولو اهل السنت په دې خبره اتفاق دی چې صحابه کرام ﷺ له تمام مخلوق څخه نيک، صالح او د نبي کريم ﷺ سيرت او سنت ته ډېر نږدې دي. د صحابه کرامو ﷺ تر مينځ چې کوم اختلافات واقع شوي. د هغوی په باره کې د اهل السنت متفقه موقف دا دی چې په مشاجرات صحابه ؤ باندې مکمل خاموشي اختيار کړل شي. په هغوی کې د هيڅ کوم صحابي په باره کې بايد څه ونه وئيل شي. د هغوی تر مينځ د جنګونو موضوع بايد د ځانونو لپاره بحث جوړ نه کړل شي. بيا ځې بايد هغوی ته نظر وکړل شي نشر او اشاعت يې ونه شي. د هغوی جنګونه د عوام الناس په مينځ کې د پورته کيدو او د امت په مينځ کې د فتنو د سر راپورته کيدلو باعث جوړيږي او د خلکو په زړونو کې د صحابه کرامو ﷺ په باره کې سوء ظن پيدا کيږي.

د نجات موندونکی ډلې اهل السنت مسلک دا دی چې د صحابه کرامو ﷺ په باره کې ژبې بندې کړل شي او د ټولو احترام وکړل شي.

## ﴿١٠﴾ د خوارجو ظهور

د قيامت له نښانو څخه دا هم ده چې په امت کې به د نبي کريم ﷺ او د صحابه کرامو ﷺ له منهج او طريقو څخه مخالفې څه ډلې (فرقې) به پيدا شي. له هغوی څخه يوه فرقه خوارج هم دي. دا د حضرت علي ﷺ د ډلې خلک دي کوم چې له هغه سره يو ځای په جنګونو کې شريک شوي ؤ. کوم

وخت چې د حضرت علي ﷺ او د حضرت امير معاويه ﷺ تر مينځ د (تحکيم) معامله منځته راغله نو دوی له حضرت علي ﷺ څخه منحرف شول او کوفې ته نږدې په (حروراء) نامي کلي کې اباد شول.

**د هغوی عقايد:**

(١) هغوی هغه خلک چې د کبيره ګناه کوونکي وي لکه زنا کونکي او شراب څښونکي ټول کافر او دائمي جهنميان بولي. د دوی دا عقيده ښکاره ګمراهي ده، ځکه چې حق خبره دا ده که يو مسلمان کبيره ګناه وکړي نو هغه ته کافر نه وئيل کيږي. بلکه هغه ته د دغې ګناه له امله نافرمان او فاسق ويل شوي دي او په هغه باندې لازمي ده چې توبه وکړي او له دا رنګه ګناهونو څخه را وګرځي.

(٢) هغوی حضرت علي ﷺ او حضرت امير معاويه ﷺ دواړه کافر بولي او د هغو صحابه کرامو ﷺ لوی شمير کوم چې د تحکيم په فيصلې راضي ؤ د دوی په نزد هغه ټول کافر دي.

(٣) هغوی له فاسق واکمن سره جنګ کول ضروري بولي، خواه هغه د کفر ارتکاب کړی وي او که نه.

هغوی ځانونه اهل علم بولي، په عباداتو کې ډير سخت مشقت کوي. د هغوی يو لوی شخص (ذوالخويصره) [1] دی د کوم په باره کې چې نبي کريم

[1] - حضرت ابو سعيد خدري ﷺ بيان کوي چې يو ځلې مونږ د نبي کريم ﷺ په خدمت کې حاضر ؤ. نبي کريم ﷺ په خلکو کې مال تقسيمولو. په دې موقع کې له بنو تميم سره تعلق لرونکی يو شخص د کوم نام چې (ذوالخويصره) ده راغی او وی ويل: اې محمد ! دا مال په انصاف سره تقسيم کړه. نبي کريم ﷺ وفرمايل: ته تباه شوی ! دا ووايه که چيرته زه عدل ونه کړم نو بيا به څوک عدل کوي. که چيرته زه د الله رسول يم او عدل ونه کړم نو زه به ناکام او نامراد شم. دا بې چې ولېدل نو سيدنا عمر ﷺ وويل: اې د الله رسول ! ما ته اجازه وکړه چې زه د دغه سړي غاړه والوزوم. نبي کريم ﷺ وفرمايل: دا وپيږنی. د ده يو شمير داسې ملګري دي چې په تاسو کې به يو شخص د هغوی په مقابله کې خپل لمانځه باندې معمولي خيال وکړی او په خپله روژه باندې به د هغوی د روژو په مقابل کې د کم سختي ګومان وکړی. دا خلک د قرآن تلاوت

ﷺ فرمايلي: ﴿يَمْرُقُونَ مِنْ الدِّينِ كَمَا يَمْرُقُ السَّهْمُ مِنْ الرَّمِيَّةِ﴾ دا خلک به له دين څخه داسې وځي لکه څنګه چې يو تيز غيشى له ښکار څخه صاف ستره د باندې ووځي.

**د خوارجو د ظهور اغاز:**

کله چې جنګ سفين ختم شو او اهل شام او اهل عراق دواړو ډلو په تحکيم باندې اتفاق وکړ او حضرت علي ﷺ د کوفې په لور روان شو نو خوارجو په لار کې له هغه څخه جدايي اختيار کړه. په لښکر کې د هغوی شمير اته (٨٠٠٠) زره ؤ او د ځينې روايتونو مطابق د هغوی شمير شپاړس (١٦٠٠٠) زره ؤ. دا خلک په حروراء کې پاتې شول. حضرت علي ﷺ د هغوی د پوهيدو لپاره حضرت عبد الله بن عباس ﷺ وليږه. هغه له دغو منحرفينو سره مناظره وکړه.

---

ډير کوي. مګر قران د دوی له ستوني څخه د دوی زړونو ته ښکته نه ورکوزيږي. دا به له دين څخه داسې ووځي لکه څرنګه چې يو تيز غشى له ښکار څخه د باندې ووځي. د هغه غيشي چې سر وکتل شي نو هيڅ به پرې نه وي. بيا چې د هغه بيخ وکتل شي نو هلته به هم هيڅ نه وي. بيا چې د هغه لرګی وکتل شي هلته به هم هيڅ نه وي. بيا چې د هغه (پرکو) وکتل شي نو هلته به هم هيڅ شی نه وي. هغه به له خوښو او وينو څخه ډير په تيزۍ سره وتلی وي. مطلب دا چې دغو خلکو ته به هيڅ معلومه نشي او دوی به د خپلو سرکشيو له امله له اسلام څخه وتلي (خارج) وي. لکه څرنګه چې يو ښکاري د هوسۍ ښکار کوي او د هغه غشی د ځناور په جسم کې داخل شي او هغه بل لور ته ځينې ووځي. ښکاري داسې ګمان وکړي چې غشی بې په ځناور نه دی لګيدلی. سره له دې چې هغه د ځناور له جسم څخه د باندې وتلی وي. د هغوی نښه يو تور رنګی شخص دی. د هغه د بازو او وليو د مينځ برخه به د ښځو د سينې په څير وي. غوښه به يې د هغې تيوتي په څير وي کومه چې مضطرب او متحرک اوسي. دا ډله هغه وخت ظاهريږي کله چې به خلکو کې اختلاف ظاهره شي. (صحيح البخاري، المناقب، حديث: ٣٦١٠. وصحيح مسلم، الزكاة، حديث: ١٠٦٤.

**مناظره**: ابن عباس ﷺ وايي: کله چې خوارج له لښکر څخه جدا شول نو دوی په يوه کور کې سره جمع شول. د هغوی شمير شپږ زره ؤ. هغوی په خپل مينځ کې مشوره وکړه او په دې خبره سره متفق شول چې دوی به د حضرت علي ﷺ په مقابل کې د جنګ کولو لپاره راووځي.

خلک حضرت علي ﷺ ته مسلسل راتلل او خبر يې ورکاوه چې خوارج د هغه په خلاف د جنګ کولو لپاره تياری کوي.

حضرت علي ﷺ وويل! هغوی پرېږدی. تر څو چې هغوی زما په مقابل کې جنګ شروع نه کړي تر هغه زه هم هغوی ته څه ويل نه غواړم. مګر هغوی به ضرور راووځي او جنګ به کوي. يوه ورځ زه د ماسپښين لمانځه په وخت کې د حضرت علي ﷺ په حضور کې حاضر شوم او عرض مې وکړ: اې اميرالمومنين! نن د ماسپښين لمونځ لږ يخ کړه او په تاخير سره يې اداء کړه. کيدلای شي زه نن د خوارجو لور ته ولاړ شم او د هغوی د پوهيدو کوشش وکړم.

هغه راته وويل: له ما سره انديښنه ده هسې نه چې هغوی تا ته کوم ضرر ورسوي.

ما عرض وکړ: که الله ته خوښه وي نو داسې به هيڅکله نه کوي.

زه چونکه خوش اخلاقه ؤم او هيچا ته مې کوم ضرر نه ؤ رسولی. نو ځکه اميرالمومنين ما ته اجازت راکړ. ما يو بهترين يمني لباس په تن کړ او ځان مې ښه برابر جوړ کړ او د ماسپښين په وخت کې هغوی ته ور ورسيدم.

زه د داسې خلکو لوري ته ورغلم چې ما له دوی څخه ډير عبادت کونکي نه ؤ ليدلي. د هغوی تنديې د سجدو په نښانو ښايسته وي. د زيات عبادت له امله د هغوی لاسونه د اوښ د هغې برخې په څير سخت شوي وو کومه چې پر زمکه باندې د لګولو له امله سخته شوې وي. هغوی صاف ستره قميصونه اغوستي ؤ. د هغوی مخونه د هغوی د شپې تيرولو شاهدان ؤ. ما په هغوی باندې سلام واچاوه.

هغوی وویل : مرحبا . ابن عباس : څنګه راغلې؟

ابن عباس : زه تاسو ته د انصارو او مهاجرینو او د رسول الله ﷺ د تره زوی علی ابن ابی طالب ﷺ له لوري نماینده راغلی یم. واورئ ! د همدغو خلکو په موجودګي کې قرآن نازل شوی او هغوی د هغه په تفسیر او تاویل کې له تاسو څخه ډیر علم لري.

په هغوی کې یوې ډلې وویل : مونږ له قریشو سره جنګ نه کوو . الله تعالی فرمایلي ﴿بَلْ هُمْ قَوْمٌ خَصِمُونَ ﴾ [١] هغه په خپله جګړه مار خلک دي.

په هغوی کې دوو یا دریو کسانو وویل : مونږ له ده سره خبرې کوو.

ابن عباس : تاسو چې د نبي کریم ﷺ د تره په زوی، په مهاجرینو او انصارو چې کوم اعتراضونه لری را وړاندې شئ هغه وړاندې کړی. په هغوی باندې قرآن نازل شوی. په تاسو کې هیڅوک داسې نشته کوم چې له هغوی څخه په قرآن ډیر عالم وي.

خوارج : زمونږ په هغه دری اعتراضونه دي.

ابن عباس : بیان یې کړی؟

خوارج : اولین اعتراض دا دی چې هغه د الله تعالی د حکم په مقابل کې انسانان منصف جوړ کړي. سره له دې چې د الله تعالی فرمان په قرآن کې موجود دی چې ﴿إِنِ الْحُكْمُ إِلَّا لِلَّهِ﴾ [٢] حکم له الله تعالی څخه پرته هیچا لره نشته. اوس نو د الله تعالی له دغه فرمان څخه وروسته انسانانو ته څه حق حاصل دی چې هغه د یو چا لپاره حکم جوړ شي.

ابن عباس دا خو یوه خبره شوه بله کومه یوه دده؟

---

[١] الزخرف. آیة ٥٨

[٢] لانعام. آیة ٥٧

خوارج: هغه له يوې ډلې سره جنګ وکړ. د هغې ډلې څه خلک يې قتل هم کړل. ليکن نه يې څوک بنديان کړل او نه يې غنيمت جمع کړ. که چيرته هغوی مسلمانان وو نو زمونږ لپاره له هغوی سره د جنګ کول څنګه جائز شول او په هغوی کې مو څوک بنديان هم نه کړل؟

ابن عباس: دريمه خبر بيان کړی؟

خوارج: هغه د صلح د معاهدې ليکلو په وخت کې له خپل نامه څخه د اميرالمومنين لفظ رنګ کړ. که چيرته هغه اميرالمؤمنين نه وي نو آيا هغه بيا اميرالکافرين دی؟

ابن عباس: نور څه؟

خوارج: بس همدومره خبرې کافي دي.

ابن عباس: تر کومه ځايه چې د ستاسو دا خبره ده چې هغه د الله تعالی د شريعت په معامله کې انسان حکم جوړ کړ زه به د الله تعالی د کتاب څو آيتونه تلاوت کړم کوم به چې د ستاسو د خبرې ترديد کوي. که چيرته داسې وشول نو آيا تاسو بيا له خپل موقف څخه تيريږی؟

خوارج: هو! بالکل.

ابن عباس: الله تعالی د يوه خرګوش په معامله کې د کوم قيمت چې د درهم له څلورمې برخې څخه زيات نه دی له خپل حکم څخه فيصله اړولې او انسان ته يې سپارلې. ما دغه آية کريمه تلاوت کړ ﴿يَاأَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا لَا تَقْتُلُوا الصَّيْدَ وَأَنْتُمْ حُرُمٌ ۚ وَمَنْ قَتَلَهُ مِنْكُمْ مُتَعَمِّدًا فَجَزَاءٌ مِثْلُ مَا قَتَلَ مِنَ النَّعَمِ يَحْكُمُ بِهِ ذَوَا عَدْلٍ مِنْكُمْ﴾ (١).

ژباړه: اې هغو کسانو چې ايمان يې راوړی دی (يعني اې مؤمنانو) مه وژنئ تاسې ښکار حال دا چې تاسې محرمان اوسئ: او هر هغه څوک چې

---

(١) المآئدة. آية: ٩٥.

ووژني دا (ښکار) له تاسې څخه په قصد سره نو (پرې) بدل دی په مثل د هغه چې وژلی (یې) دی له چارپایانو څخه چې حکم به کوي په هغه سره دوه خاوندان د عدل (انصاف) له تاسې (مسلمانانو) څخې.

د ښځې او سړي په معامله کې د خدای تعالی ﷻ فرمان دی: ﴿وَإِنْ خِفْتُمْ شِقَاقَ بَيْنِهِمَا فَابْعَثُوا حَكَمًا مِنْ أَهْلِهِ وَحَكَمًا مِنْ أَهْلِهَا﴾ (١).

ژباړه:

او که ویرېږئ تاسې له مخالفت څخه په مینځ د مېړه او ښځې کې نو ور ولېږئ (مقرر کړئ تاسې) یو منصف له خپلوانو د دې سړي او بل منصف له خپلوانو د دې ښځې نه.

زه تاسو ته د الله تعالی قسم درکوم او در څخه پوښتم آیا د انسانانو تحکیم د یوه خرګوش په قتل او د یوې ښځې په معامله کې افضل دی یا د مسلمانانو تر مینځ د معاملاتو په درستوالي او د هغوی تر مینځ د خونریزي په بندولو کې افضل دی؟

خوارج: بلکه همدغه افضل دی.

ابن عباس: دا خبره ختمه شوه؟

خوارج: هو! ختمه شوه.

ابن عباس: تر کومه ځایه چې د ستاسو دا وئیل دي چې هغه جنګ وکړ او مخالفین یې بندیان نه کړل او نه یې د غنیمت په مال باندې قبضه وکړه نو تاسو ما ته دا ووایئ آیا تاسو د خپلې مور ام المؤمنین عائشة رضي الله عنها بندي کولو ته تیار یاست؟ په الله تعالی قسم! که چیرته تاسو دا ووایاست چې هغه زمونږ مور نه ده نو تاسو له اسلام څخه وځی او که چیرته تاسو دا ووایاست چې هو! مونږ د هغې بندي کولو ته او له هغې سره د مریې په څېر سلوک

---

(١) النساء، آیة: ٣٥.

کولو ته تیار یو نو بیا هم تاسو له اسلام څخه خارجیږي. تاسي په دواړو صورتونو کې د ګمراهي ښکار کیږي. ځکه چې د الله تعالی فرمان دی:

﴿ اَلنَّبِيُّ اَوْلٰى بِالْمُؤْمِنِيْنَ مِنْ اَنْفُسِهِمْ وَاَزْوَاجُهٗ اُمَّهٰتُهُمْ ﴾ (١).

ژباړه:

(محمد الله) نبي ډیر وړ دی له مؤمنانو سره له نفسونو د دوی (د احکامو په انجام) او ښځې د دغه (نبي الله) میندې د دوی دي (تعظیماً او تحریماً)

ابن عباس: څنګه دا خبره تاسو منئ؟

خوارج: هو! منو یې

ابن عباس: تر کومه ځایه چې د ستاسو د هغې خبرې تعلق دی چې حضرت علي ﷛ له خپل نامه څخه د امیرالمومنین لفظ رنګ کړ نو تاسو ښه پوهیږئ چې د الله تعالی رسول ﷺ چې د حدیبیه په ورځ د مشرکینو له نماینده ګانو ابوسفیان بن حرب او سهیل بن عمرو سره صلح نامه لیکله. نو نبي کریم ﷺ حضرت علي ﷛ ته حکم وکړ چې هغه د صلح شرائط ولیکي، حضرت علي ﷛ ولیکل: د دغه تحریر له مخې محمد رسول الله د مکې له قریشو سره صلح وکړه. مشرکینو وویل: په الله قسم! مونږ نه یو پوهیدلي چې ته د الله رسول یې. که چیرته مونږ پوهیدلي وای چې ته د الله رسول یې نو هیڅکله به مو جنګ نه ؤ کړی. بیا نبي کریم ﷺ وویل. اې الله! ته ښه پوهیږې چې زه رسول الله یم. اې علي! دا رنګ کړه او داسې ولیکه دا هغه معاهده ده د کومې مطابق چې محمد بن عبد الله صلح کړې. په الله قسم! رسول الله ﷺ له حضرت علي ﷛ څخه ډیر زیات افضل او بهتر دی او که چیرته هغه د صلح په خاطر له خپل نام څخه رسول الله رنګ کړی وي نو د حضرت علي ﷛ لپاره د داسې کار کول بیا څنګه ناجائز کیدلای شي؟

---

(١) الاحزاب، آیه: ۶.

د حضرت عبد الله ابن عباس رضي الله عنه له دلايلو څخه لا ځواب شول. دوه زره توبه کونکي شول او باقي نور ټول د جنګ کولو لپاره ووتل. مګر ټول قتل کړی شول (١).

د دغه بحث او مناظرې په نتيجه کې ځينو خوارجو د خليفة المسلمين حضرت علي رضي الله عنه اطاعت دوباره قبول کړ او ځينې نور په خپله ګمراهي باندې قايم پاتې شول. حضرت علي رضي الله عنه د کوفې په مسجد کې هغوی ته خطاب کاوه نو هغوی د مسجد له دربچو څخه وئيل (لاحکم الا لله) هغوی دا هم وئيل: ته د شرک مرتکب شوی يې. ځکه چې تا خلک حکم جوړ کړي. مګر کتاب دې حکم نه دی جوړ کړی.

سيدنا علي رضي الله عنه د هغوی په ځواب کې وويل: زه له تاسو سره د دريو خبرو وعده کوم.

(١) زه تاسو مسجدونو ته له راتلو نه منع کوم.

(٢) زه د فی په مال کې د ستاسو برخه نه ورکوم.

(٣) زه له تاسو سره د جنګ په کولو کې لومړيتوب نه کوم. په دې شرط چې تاسو په خپله شر فساد شروع نه کړی.

له دې وروسته هغوی په يوه ځای کې کمين ګاه جوړه کړه او چې کله به هم کوم مسلمان دوی ته نږدې تيريده نو هغه به يې ونيو او قتل به يې کړ. د دوی دغه لاس اوږدونه دې حد ته را ورسيده چې دوی جليل القدر صحابي حضرت عبد الله بن حباب بن ارت رضي الله عنه هم قتل کړ او د هغه داهليه محترمې خېټه يې ور څيرې کړه. حضرت علي رضي الله عنه هغوی ته پيغام ور وليږه تر څو هغوی ورته ووايي چې دا چا قتل کړل؟ په ځواب کې خوارجو وويل: مونږ ټولو هغه قتل کړ. حضرت علي رضي الله عنه د

---

(١) المصنف لعبدالرزاق: ١٠: ١٥٧. والمستدرک للحاکم: ٢: ١٥٠ او دا امام حاکم د بخاري او مسلم د شرائطو مطابق صحيح بللی

جنګ لپاره تیاری وکړ او د نهروان په مقام کې یې د یوه سخت جنګ په نتیجه کې هغوی ته یو په خلوره بدترین شکست ورکړ.

## ﴿۱۱﴾ د دروغژنو مدعیانو د نبوت ظهور

د قیامت له نښانو څخه د داسې دجالي او دروغژنو خلکو ظهور هم دی کوم چې د نبوت دعوه کوي او د خپلو خرافاتو او باطلو خبرو په ذریعه فتنه پیدا کوي. نبي کریم ﷺ امت ته خبر ورکړی چې د همدغو دروغژنو مدعیانو شمیر دیرش (۳۰) ته نږدې دی. نبي کریم ﷺ فرمایلي:

﴿لَا تَقُومُ السَّاعَةُ حَتَّى يُبْعَثَ دَجَّالُونَ كَذَّابُونَ قَرِيبًا مِنْ ثَلَاثِينَ كُلُّهُمْ يَزْعُمُ أَنَّهُ رَسُولُ اللَّهِ﴾

ژباړه:

قیامت تر هغه وخته نه قایمیږي تر څو چې دیرشو ته نږدې دروغژن دجالان پیدا نشي. په هغوی کې به هر یو دا دعوه کوي چې دی د الله رسول دی (۱).

دا نښانه هم ظاهره شوې، په پخوانۍ او اوسنۍ زمانه کې دنبوت ډیر دروغژن مدعیان مخته راغلي. هیڅ بعیده نه ده چې له لوی دجال (الله تعالی دې مونږ ټول د هغه له شر څخه وساتي) څخه مخکې مخکې د نبوت یو څه دعواداران راشي. رسول الله ﷺ یوه ورځ خطبه وئیله وې فرمایل: په الله قسم! قیامت نه قایمیږي تر څو چې دیرش دروغژن دجال ظاهر نشي، په دې سلسله کې آخیري کړۍ د مسیح دجال ده (۲).

حضرت ثوبان ؓ روایت کوي چې نبي کریم ﷺ وفرمایل: قیامت تر هغه وخته نه قایمیږي تر څو چې زما د امت یو شمیر قبایل دوباره له مشرکینو سره یو ځای نشي او هغوی د بتانو عبادت ونه کړي. زما په امت کې به دیرش

---

۱. صحیح البخاري، المناقب، حدیث [illegible]
۲. مسند احمد: ۵/ ۱۲.

دروغژن ظاهر شي او په هغوی کې به هر یو ګمان کوي چې نبي دی. حلانکه زه خاتم النبیین یم، له ما وروسته هیڅ نبي نشته (۱).

همدا شان په یوه بل حدیث کې نبي کریم ﷺ د اوه ویشتو (۲۷) د نبوت د دروغژنو مدعیانو خبر ورکړی. په هغوی کې به څلور ښځې وي، په هغوی کې به هر یو دعوه کوي چې هغه د الله رسول دی.

سیدنا حذیفة رضي الله عنه بیان کوي چې رسول الله ﷺ وفرمایل: زما په امت کې به اوه ویشت دروغژن دجال. د نبوت مدعیان به پیدا شي. په هغوی کې به څلور ښځې وي، زه خاتم النبیین یم. له ما وروسته هیڅ نبي نشته (۲).

د دغو خلکو لوی شمیر په ماضي کې ظاهر شوی.

(۱) د رسول الله ﷺ د ژوند مبارک په آخیري ورځو کې په یمن کې اسود عنسي له اسلام څخه مرتد شو او د خپل ځان د نبي کیدو اعلان یې وکړ. د ده ارتداد په عهد رسالت کې واقع کیدونکی تر ټولو اولین ارتداد دی. د هغه جنګي منګرو په دریو یا څلورو میاشتو کې پیش قدمي وکړه او د یمن په ټولو سیمو یې قبضه وکړه. نبي کریم ﷺ د یمن مخلصو مسلمانانو ته پیغام ولیږه چې دغه دروغژن دجال قتل کړي، هغوی د نبي کریم ﷺ حکم ته لبیک وویل او د هغه د ښځې په مرسته یې هغه وواژه. د هغه ښځې پر الله تعالی او د هغه پر رسول ﷺ ایمان درلود. اسود د همدغې ښځې میړه قتل کړ او په زور یې له هغې سره واده وکړ. د هغه له قتل سره سم په یمن کې اسلام او اهل اسلام په غلبه کې شول. د یمن مسلمانانو دغه ټول روداد نبي کریم ﷺ ته لیکلي ور ولیږل مګر الله تعالی هغه ته د شپې د وحې په ذریعه خبر ورکړ او نبي کریم ﷺ یې سره له ټولو صحابه ؤ رضي الله عنهم له ټول

---

۱ سنن ابی داؤد، الفتن والملاحم. حدیث: ۴۲۵۲. وجامع الترمذی. الفتن. حدیث: ۲۲۱۹. وهو حدیث صحیح

۲ مسند احمد: ۵/ ۳۹۲. والطبرانی فی المعجم الکبیر: ۳ ۱۷۰.

صورت حال څخه خبر کړل. د دغه دروغژن سړي د نبوت زمانه یوائې دری یا څلور میاشتې وه.

(۲) د نبوت په دروغژنو مدعیانو کې یو طلیحه بن خویلد اسدي هم دی. مسلمانانو له هغه سره ډیر جنګونه وکړل او بالاخر هغه د زړه په صدق سره مسلمان شو او په اسلامي لښکر کې ور داخل شو. وروسته هغه د الله تعالی په لار کې د کفر په مقابل کې په ډیرو جنګونو کې په لویه ځوانمردي برخه واخیسته او بالاخر د نهاوند په جنګ کې د شهادت په مرګ سرفراز شو.

(۳) د همدغو دروغژنو له جملې څخه یو مسیلمه کذاب هم دی. د ده دعوه دا وه چې یوائې د شپې په تیاره کې وحې پرې راځي. اولین خلیفه حضرت ابوبکر صدیق ﷺ د مسیلمه کذاب د سرکوبي لپاره یو لښکر د حضرت خالد بن ولید ﷺ، عکرمه بن ابی جهل ﷺ او د شرحبیل بن حسنه ﷺ تر سرپرستۍ لاندې ولیږه، مسیلمه کذاب له اسلامي لښکر سره د څلویښت زره جنګیالیو په ملتیا مقابله وکړه، د دواړو لښکرو تر مینځ ډیر خونریز جنګونه وشول او بالاخر شکست د مسیلمه کذاب او د هغه د لښکر په برخه شو. مسیلمه کذاب د وحشي بن حرب ﷺ په لاس قتل او د جهنم واصل شو. د حق فتح په نصیب شوه او د توحید بیرغ هسک شو.

(۴) د نبوت په دروغژنو مدعیانو کې یوه ښځه سجاح بنت حارث تغلبیه هم ده. د هغې تعلق د عربو له عیسایانو سره دی. هغې د رسول الله ﷺ له وفات وروسته د نبوت دعوه وکړه، د خپلې قبیلې او د نورو قبیلو په زیات شمیر کې خلک د هغې تابعداران جوړ شول. سجاح د خپل لښکر په ملتیا له شاو خوا قبایلو سره جنګونه وکړل او مسلسل یې پیش قدمي وکړه حتی چې تر یمامه ورسیده. هلته هغې د مسیلمه نبوت ومانه او له هغه سره یې واده هم وکړ. کوم وخت چې مسیلمه واصل جهنم شو نو هغه بیرته د خپل قوم بنوتغلب لوري ته راغله. بیا هغه مسلمانه شوه. بصرې ته ولاړه او هلته وفات شوه.

(٥) د تابعينو په زمانه کې او له هغوی څخه په وروسته زمانه کې چې کوم د نبوت دروغژن دعوه داران منظر عام ته راغلي. په هغوی کې د يوه نام مختار بن عبيد ثقفي دی. هغه د نبوت له اعلان څخه د مخه شيعه مذهب کمزوری کړ او چې کله د شيعه ګانو يو لوی شمير خلک د هغه تابعداران شول نو يې وويل : ما ته جبرئيل له وحې سره راځي. د ده او د مصعب بن زبير رحمه الله عليه د لښکرو تر مينځ ډير جنګونه وشول د کومو په نتيجه کې چې مختار ووژل شو.

(٦) له همدې جملې څخه يو دجال حارث بن سعيد کذاب هم دی، دغه سړي په دمشق کې د عابد او زاهد سړي په صفت شهرت درلود، بيا هغه دعوه وکړه چې دی نبي دی. کله چې ده ته معلومه شوه چې د ده خبر خليفه عبدالملک بن مروان ته ور رسيدلای نو دی پټ شو. په اهل بصره ؤ کې يو سړي د هغه ځای معلوم کړ او ده ته په رسيدلو کې کامياب شو، هغه له حارث سره د ليدو په وخت کې هغه ته داسې وښودله چې ده هم په حارث ايمان راوړی، حارث خپلو نوکرانو ته امر وکړ چې کله هم دا سړی زما لوري ته راځي نو دی به نه منعه کوی. دغه سړي له ټول صورت حال څخه عبدالملک خبر کړ. خليفه د همدغه سړي په رهنمايي کې د فوځ يو کنډک ولیږه. هغوی حارث ونيو او خليفه ته يې وړاندې کړ. عبدالملک ځينې علماؤ او فقهاؤ ته هدايت وکړ تر څو هغوی حارث په دې پوه کړي چې د ده خبرې يو شيطاني وهم دی او هغه دې له دې خپلو فاسدو خيالاتو څخه توبه وکړي. مګر هغه انکار وکړ او په خپله خبره يې ټينګار کاوه. چې بيا خليفه هغه قتل کړ.

(٧) په عصر حاضر کې تقريبا يوه صدی د مخه په هندوستان کې يو سړی را ښکاره شو. د هغه نوم مرزا غلام احمد قادياني دی. ده د نبوت دعوه وکړه او وئيل به يې په ده باندې له آسمان څخه وحي رانازليږي. هغه دا هم وئيل چې الله تعالی ما ته خبر راکړی چې ته به تر اتيا کلونو پورې په دنيا

کې ژوند کوې. يو څه خاص خلک د هغه تابعداران شول. مګر د حق علماؤ هغه تعقيب کړ. د هغه خود ساخته دلائلو ته يې ښه ځوابونه وويل او دا يې واضحه کړه چې دا نبي نه دی. بلکه دجال او کذاب دی. د دغو علماؤ له ډلې کومو چې د مرزا غلام احمد قادياني ترديد وکړ تر ټولو ډير خدمت چې کوم سړي کړی هغه جليل القدر عالم حضرت مولانا ثناء الله امرتسري رحمة الله عليه دی، هغه د مرزا غلام احمد قادياني سخت ناقد او په شا کونکی ؤ.

په سنه (۱۳۲۶ هجري مطابق ۱۹۰۸ عيسوي) کې غلام احمد قادياني مولانا ثناء الله امرتسري ته د مقابلې وړانديز وکړ او دعوه يې وکړه چې که په مونږ دواړو کې هر يو دروغژن وي نو هغه به په رښتونې زندګي کې مړ شي. قادياني دعا وکړه : ياالله ! په مونږ دواړو کې چې هر يو دروغژن وي نو هغه په رښتونې زندګي کې له مرګ سره مخامخ کړه او پر هغه باندې د طاعون داسې مرض مسلط کړه کوم چې د هغه د مرګ سبب شي. له دغې دعا څخه يو کال وروسته قادياني د خپلې بد دعا ښکار شو. د مرزا خسر بيان کوي چې کله د مرزا مرض ډير سخت شو نو هغه زه له خوب څخه رابيدار کړم او زه د هغه لوري ته ورغلم او ومې ليدل چې هغه له تکليف څخه ډير بې تابه دی، هغه زه مخاطب کړم او راته وې ويل ! ما ته دهيضې مرض لګيدلی. دا د هغه آخيري خبره وه او بيا هغه له دې وروسته کوم واضح لفظ په خپله ژبه اداء نکړ او مړ شو (۱).

---

۱- په خپله مولانا ثناء الله رحمة الله عليه وايي : په رد مرزائيت کې ما خپله لومړنۍ رساله (الهامات مرزا) ما په ډير لوی محنت سره وليکله کومه چې دومره زياته مقبوله شوه چې لويو لويو مصنفينو د هغې عبارات په خپلو تصنيفونو کې نقل کړل. د پنجاب پير صاحب (ګولړه) په (سيف چستايي) کې او د حيدر آباد د دکن مولانا انوار الله مرحوم په (افادة الافهام) کې له الهامات مرزا څخه فايده اخيستې. زما د دې خبرې په غبرګون کې مرزا صاحب قادياني هغه د چا خبره چې تنګ آمد بجنګ امد اشتهار ورکړ.
له مولانا ثناء الله صاحب سره آخيري فيصله

بسم الله الرحمن الرحيم. نحمده ونصلی علی رسوله الکريم
( ويستنبئونک احق هو. قل ای وربی انه لحق )
بخدمت مولانا ثناء الله صاحب ( السلام علی من اتبع الهدی ) له ډيرې مودې راهيسې د ستا پرچه په اهل حديث کې زما د تکذيب او تفسيق په سلسله کې جاري ده. هميشه زه تا په خپله پرچه کې د مردود. دجال او د مفسد په نام سره منسوب کړی يم او په دنيا کې دې زه په دې مشهور کړی يم چې دا شخص مفتري. کذاب او دجال دی او د دغه شخص د مسيح موعود دعوه سراسر افتراء ده. ما تا ته ډيره حوصله او صبر وکړ. مګر زه چونکه وينم چې زه د حق په خپرولو باندې مامور يم او ته ډيره افتراء پر ما کوې او دنيا له ما څخه اړوې او ما د تهمتونو په هغو الفاظو سره يادوې په کومو سره چې ډير مضر هم نه يادېږي. که چيرته زه داسې کذاب او مفتري يم لکه څنګه مې چې ته په خپلو پرچو کې اکثر وخت يادوی نو زه به د ستا په ژوند کې هلاک شم. ځکه زه پوهيږمه چې د مفسد او کذاب ډير عمر نه وي او آخير هغه له ذلت او حسرت سره د خپل دښمن په ژوند کې ناکام او مړ کيږي، د هغه هلاکيدل بهتر دي تر څو د خدای تعالی بندګان تباه نه کړي او که چيرته زه کذاب او مفتري نه يم او د خدای تعالی په مکالمه او مخاطبه سره مشرف يم او مسيح موعود يم، نو زه د خدای په فضل سره اميد لرم چې ته به د سنت الله موافق د مکذبينو له سزا څخه نه بچ کيږې. پس که چيرته هغه سزا کومه چې د انسان په لاسو کې نه ده بلکه يواځې د خدای تعالی په لاسونو کې ده لکه طاعون. هيضه او نور مهلک مرضونه که تا ته زما په ژوند کې ونه رسيدل نو زه د خدای تعالی له لوري څخه نه يم. دا د کوم الهام يا وحی په بناء پيش ګويي نه ده بلکه محض د دعا په طور زه له خپل خدای څخه فيصله غواړم او زه خدای تعالی ته سوال کوم اې زما مالکه. بصير. قدير کوم چې عليم او خبير دی. کوم چې زما د زړه له حالاتو څخه خبر دی. که چيرته دغه د مسيح موعود دعوه محض زما د نفس افتراء وي او زه د ستا په نظر کې مفسد او کذاب يم او شپه او ورځ افتراء کول زما کار وي نو اې زما خوږه مالکه زه په عاجزي سره تا جناب ته دعا کوم چې د مولوي ثناء الله صاحب په ژوند کې ما هلاک کړه تر څو زما په مرګ هغه او د هغه ډله خوشحاله شي، آمين. مګر اې زما کامل او صادق خدايه که چيرته مولوي ثناء الله په هغو تهمتونو کې کوم چې پر ما لګوي په حق نه وي نو زه په عاجزي سره تا جناب ته سوال کوم چې هغه زما په ژوند کې نابود کړه. ليکن په انساني لاسونو سره نه بلکه په طاعون. هيضې او نورو مهلکو مرضونو سره مخکې له دې چې هغه زما په وړاندې يا زما د ډلې پر وړاندې له هغو ټولو تهمتونو او بد ژبانيو څخه توبه وکاږي کوم چې هغه فرض کړي او زه يې هميشه وينم، آمين يارب العلمين. زه د هغه د لاسه ډير په تکليف کې يم او صبر کوم مګر اوس زه وينم

چې د هغه بد زباني له حد څخه اوښتې، هغه ما له هغو بد اعمالو او غلو څخه بد تر پيزني کوم چې د دنيا لپاره سخت ضرر رسونکي دي، هغه په تهمتونو او بد زبانيو کې په دغه آيت (ولاتقف ماليس لک علم) باندې هم عمل نه کوي او له ټولې دنيا څخه ما بد تر معرفي کوي او تر ليرې ليرې ملکونو پورې يې زما دا نسبت رسولی چې دا شخص په اصل حقيقت کې مفسد، ټګ، دوکاندار، کذاب، مفتري او ډير بد کاره سړی دی، دا چې داسې کلمات د حق پر غوښتونکو باندې کوم اثر نه کوي نو زه ځکه صبر کوم، مګر زه وينم چې مولوي ثناء الله د خپلو تهمتونو په ذريعه زما سلسله نابود غواړي او د هغه تعمير ړنګول غواړي کوم چې تا زما آقا او زما راليږونکي لپاره په خپلو لاسونو سره جوړ کړی، نو ځکه خو زه د ستا د تقدس او رحمت لمن نيسم او له تا جناب څخه غوښتنه کوم چې زما او د ثناء الله په مابين کې رښتونې فيصله وکړه او کوم چې د ستا په نزد په اصل حقيقت کې مفسد او کذاب وي هغه د صادق په ژوند کې له دنيا څخه ورک کړه او يا يې په کوم بل سخت آفت کې چې د مرګ برابر وي مبتلا کړه، اې زما مالکه ته همداسې وکړه آمين ثم آمين.

(ربنا افتح بيننا وبين قومنا باالحق او انت خيرالفتحين) بالاخر يې له مولوي ثناء الله سره التماس وشو چې هغه د ده دغه مضمون په خپله پارچه کې چاپ کړي او بيا چې څوک څه غواړي هغه دې له دې څخه د لاندې وليکي، اوس فيصله د خدای په لاس کې دی (الراقم عبد الله الصمد مرزا غلام احمد مسيح موعود عافاه الله وايده، مرقومه يکم ربيع الاول ۱۳۲۵ هجري مطابق ۱۵ اپريل ۱۹۰۷ عيسوي)

مولانا ثناء الله صاحب وايي دا ؤ د مرزا صاحب د دعا د آخيری فيصلې د اشتهار نفس مضمون او اوس زه وايم چې د هغه د دعا د قبليدو قرينه څه ده.

مرزا صاحب وبلي: ما بار بار خدای مخاطب کړ چې کله دعا کوم نو له تا يې کوم. (ضميمه نمبر ۵، ترياق القلوب)

همدا شان فرمايي چې د خدای له لوري ما ته الهام کيږي، کله چې هغه ما مخاطب کړي نو راته وايي زه د ستا هره دعا قبلوم مګر د شرکاء په باره کې نه (ترياق القلوب ضميمه نمبر ۵. خزان: ۱۵/ ۳۸۲)

همدا شان د مرزا صاحب الفاظ دي، د ثناء الله په متعلق يې چې کوم ليکلي دي، دا په اصل کې زما له لوري څخه نه دي بلکه د خدای له لوري څخه دي هغه يې بنياد ايښی دی، يو ځل زما توجه د هغه لور ته شوه او په شپه کې راته الهام وشو (اجيب دعوة الداع) د صوفيانو په نزد لوی کرامت د دعا قبليدل دي. باقي نور ټول د هغه شاخونه دي (بدر، ۲۵ اپريل ۱۹۰۷ ع)

د قیامت تر راتلو پورې به همدغسې د نبوت دروغژن دجالان یو په بل پسې ظاهریږي تر څو چې هغه شمیر پوره شي د کوم په باره کې چې صادق او مصدق زمونږ نبي کریم ﷺ خبر ورکړی. حتی چې د دغې سلسلې اخیري کړۍ مسیح دجال دی کوم به چې په آخره زمانه کې ظاهر شي (مونږ د هغه له ازمایښت څخه په الله پناه غواړو) بیا به سیدنا عیسی بن مریم ﷺ تشریف راوړي او هغه به قتل کړي او د هغه فتنې به هم نابودې کړي (۱).

**یوه پوښتنه**

پوښتنه: ځینې خلک د دغې خبرې ښکار دي چې نبي کریم ﷺ خو د نبوت د دروغژنو مدعیانو شمیر دیرش ښودلی او امر واقع او تاریخ د دې خبرې شاهد دی چې د نبوت د مدعیانو شمیر له دې څخه یو څه زیات دی؟

**ځواب**: د دغې پوښتنې ځواب دا دی چې د نبي کریم ﷺ مراد یواځې هغه دي کومو ته به چې حکومت او شهرت نصیب وي، تر کومه ځایه چې د داسې خلکو تعلق دی کوم به چې له همدغو شیانو څخه محروم وي نو هغه نبي کریم ﷺ په بیان کړی شویو دیرشو کې نه دي شمار کړي، والله اعلم.

## ﴿۱۲﴾ د امن او خوشحالي ډیروالی

مسلمانانو په مکه مکرمه او مدینه منوره کې ډیره زمانه له دښمنانو سره په قتال، جنګونو او معرکو کې تیره کړه. د هغې باوجود به نبي کریم ﷺ هغوی ته ویل څومره چې میاشتې او کلونه تیریږي هماغومره قیامت رانږدې کیږي. هومره په امن کې زیاتوالی راځي او خوشحالي عامه کیږي،

---

بالاخر مرزا د خپلې دعا په نتیجه کې د ربیع الاول ۱۳۲۶ هجري موافق ۲۶ می ۱۹۰۸ عیسوي کې د مولانا ثناء الله امرتسري رحمه الله په ژوند کې د هیضې په مرض سره هلاک شو (تحریک ختم نبوت. ډاکتر محمد بهاؤ الدین: ۳/ ۱۰۵-۱۰۸) (خالد سیف)

[1] د مسیح دجال او د مسیح ابن مریم په باره کې خبره په راتلونکیو صفحو کې په علامات کبری کې په علامه نمبر: ۱ او ۲ کې راځي.

د رسالت مآب ارشاد ګرامي دی ﴿لا تقوم الساعة حتى تعود أرض العرب مروجا وأنهارا وحتى يسير الراكب بين العراق ومكة لا يخاف الا ضلال الطريق وحتى يكثر الهرج قالوا وما الهرج يا رسول الله قال القتل﴾.

ژباړه: قيامت تر هغه وخته نه قايمیږي تر څو چې د عربو په زمکه کې دوباره باغونه او نهرونه په کثرت سره زيات نشي: او تر دې پورې چې يو سپور به له عراق څخه مکې مکرمې ته په رسيدو کې د لارې له ورکولو پرته له بل هيڅ شي به څخه نه ويريږي (١) البته هرج به په کثرت سره وي. صحابه کرامو ﷺ عرض وکړ: اې د الله رسول! دا ووايه چې هرج څه شی دی؟ رسول الله ﷺ وفرمايل: قتل او خونريزي (٢).

د دغې خبرې تاييد د نبي کريم ﷺ له هغه حديث څخه هم کيږي په کوم کې چې نبي کريم ﷺ عدي بن حاتم ﷺ ته فرمايلي: اې عدي! آيا تا حيره (٣) ليدلې؟ عدي وويل: يا رسول الله ﷺ ما ليدلې نه ده، البته د هغې په باره کې مې ضرور يو څه اوريدلي، نبي کريم ﷺ وويل: که چيرته له تا سره عمر وفا وکړه نو ته به يې وګورې چې يوه ښځه له (حيره) څخه په خپله سورلۍ باندې کيني او کعبې ته ورسيږي او طواف وکړي، په دغه سفر کې به له الله تعالی ﷻ پرته له بل هيڅ شي څخه ويره نه وي (٤).

---

١ - مطلب دا دی چې د داسې سفر په کولو کې به له غلو او داړه مارانو څخه هيڅ قسم انديښنه نه وي. که کومه ويره وي هغه به دا وي چې هسې نه چې له سمې لارې څخه کوګ شي او په کومه غلطه لار باندې چيرته ولاړ نشي. اما تر کومه ځايه چې د هغه د ځان او د مال خبره ده نو په دې باره کې به بالکل بې فکره وي.

٢ - مسند احمد: ٢/ ٣٧١. وقال الهيثمي: رجاله رجال الصحيح.

٣ - حيره د عراق ښار دی کوم چې له کوفه څخه په درې ميله ليرې فاصله کې موقعيت لري.

٤ - صحيح البخاري، المناقب، حديث: ٣٥٩٥.

که الله تعالی وغواړي نو مال به ډیر په کثرت سره وي. د مهدي او حضرت عیسی علیه السلام په زمانه کې به د ظلم او ستم په ځای به د عدل او انصاف دور دوره وي [١].

## ﴿١٣﴾ له حجاز څخه د یوه لوی اور ظهور

د الله تعالی رسول ﷺ د قیامت له کوم نښانو څخه چې خبر ورکړی، په هغوی کې یوه دا هم ده چې د حجاز په زمکه له مدینې منورې سره نږدې به یو لوی اور ظاهر شي، ځینې علماؤ او مؤرخینو په وثوق سره لیکلي چې دغه اور په (٦٥٤ هجري) کې ظاهر شوی.

علامه ابن کثیر رحمة الله علیه د دغې واقعې په باره کې لیکلي:

د حجاز له زمکې هغه لوی اور ظاهر شوی په کوم سره چې د بصری (د شام ملک د حوران شهر) د اوښانو غاړې روښانه کیږي، لکه څرنګه چې په دې حدیث کې ذکر شوي دي، نبي کریم ﷺ په دې سلسله کې وفرمایل: قیامت تر هغه وخته نه قایمیږي تر څو چې د حجاز له زمکې یو داسې اور ظاهر نشي په کوم سره به چې د بصری د اوښانو غاړې روښانه کیږي [٢].

ویل شوي چې دا اور به تر دریو میاشتو پورې موجود وي او دا اور به دومره شدید وي چې د مدینې ښځې به د هغې په رڼا کې اوښکې توی کړي [٣].

علامه ابو شامه د دغې واقعې تفصیل بیانولو په وخت کې لیکلي: د جماد الاخر ٦٥٤ هجري دریم تاریخ او د چهارشنبې شپه وه، کله چې په مدینه منوره کې یو دردناک آواز واریدل شو، له هغه نه وروسته زلزله راغله. هغې زمکه، دیوالونه، چتونه، لرګي او تر دروازو پورې ولړزول، دا سلسله په مذکوره

---

[١] - د دغه تفصیل به په علامات صغری کې په علامه نمبر ١٣١ باندې او په علامات کبری کې په علامه نمبر ٢ کې راشي.

[٢] - صحيح البخاری، الفتن، حدیث: ٧١١٨.

[٣] - البداية والنهاية: ١٣/ ١٩٩.

میاشت کې د چهارشنبه له شپې څخه شروع شوه او د جمعة المبارک تر ورځې پورې جاري وه. بیا له دې څخه وروسته یو لوی اور د مدینې په حره کې کومه چې بنو قریظه ؤ ته نږدې ده ظاهر شو. دغه اور مونږ ته په مدینه کې په داسې حال کې چې مونږ په خپلو کورونو کې ناست ؤ تر نظره راغی. مونږ دا محسوس کړه چې دا مونږ ته ډیر نږدې موجود دی. د مدینې کندې له دغه اور څخه ډکې شوې. اور په دغو کندو کې د وادي شظا په لور داسې روان ؤ لکه اوبه چې بهیږي. دغه اور په لوړو عمارتونو باندې د اور لګیدو په څیر لوی لوی لمبې وهلې (١).

په همدغه حره کې یو آتش پشان غر دی کوم چې نن صبا خاموش دی. هغه په آخیري وار په سنه (۶۵۴ هجري مطابق ۱۲۵عیسوي) کې په جوش راغی، له دې څخه د مخه د زلزلې د ډیرو جټکو او د سختو دردناکو دربونو آواز واریدل شو، د تاریخ لیکونکو مطابق د آتس فشاني دغه سلسله تقریبا تر ۵۲ ورځو پورې جاري وه. دغه آتشي له خپل مرکز څخه د شمال لور ته تر ۲۳ کلومیتر پورې ورسیده او د هغه اندازه د مدینې د موجوده هوائي میدان تر جنوبي څنډو ورسیده، اول ګرمه هوا په یوه داسې ځای باندې راغله او تیره شوه چې له مدینې منورې سره یې په ۱۲ کلومیتري کې موقعیت درلود. بیا د هغې مخ د شمال لور ته شو او د هغې د پورته والي سطح له سمندر څخه (۹۱۶) میتره رسیده.

---

١ التذکرة، ص: ۵۲۷.


سعودی اثرات ۱۷۶۵ء
سعودی اثرات ۱۸۰۸ء
سعودی اثرات ۱۸۱۵ء
شمال
اردن
بغداد
عراق
کویت
ایران
جوف
تبوک
قطیف
ریاض
القصیم
الدرعیہ
نجد
حجاز
راس الخیمہ
عمان
افریقہ
صنعاء
یمن

## ﴿۱۴﴾ له ترکو سره جنګ

دا خبره مخکې تېره شوه چې د قيامت له نښانو څخه هغه جنګونه او معرکې هم دي د کومو په باره کې چې نبي کريم ﷺ خبر ورکړی او دا جنګونه د مسلمانانو تر مينځ هم کيدلای شي او د نورو قومونو سره هم ! د هغو له جملې څخه د مسلمانانو او ترکو تر مينځ يوه جګړه هم ده (۱).

دا معرکه د صحابه کرامو رضي الله عنهم په عهد کې د بنو اميه د خلافت په اوائلو کې منځته راغلې. په دې کې د اسلام بچيانو نه يواځې ترکو ته شکست ورکړ، بلکه له هغوی څخه يې د غنيمت مال هم ونيو ، حضرت ابو هريرة رضي الله عنه بيان کوي چې رسول الله ﷺ فرمايلي ﴿لَا تَقُومُ السَّاعَةُ حَتَّى تُقَاتِلُوا التُّرْكَ صِغَارَ الْأَعْيُنِ حُمْرَ الْوُجُوهِ ذُلْفَ الْأُنُوفِ كَأَنَّ وُجُوهَهُمْ الْمَجَانُّ الْمُطْرَقَةُ وَلَا تَقُومُ السَّاعَةُ حَتَّى تُقَاتِلُوا قَوْمًا نِعَالُهُمْ الشَّعَرُ﴾.

ژباړه :

قيامت تر هغه وخته نه قايميږي تر څو چې تاسو د وړو سترګو لرونکو ، د سرو مخو لرونکو او د چتو پوزو لرونکو ترکو سره جنګ ونه کړی، د هغوی مخونه به ګويا د هغه ډال په څير وي په کوم چې څرمن لګيدلې وي. قيامت تر هغه نه قايميږي تر څو چې تاسو له يوه داسې قوم سره جنګ ونه کړی د کومو پيزار به چې له پوستکي څخه جوړ وي (۲).

---

۱- د ترکو دوه ويشت قبيلې دي. ذوالقرنين د يو ويشتو قبيلو لپاره ديوال جوړ کړ، مګر يوه قبيله له ديوال څخه بچ پاتې شوه هغې ته ترک ويل کيږي. هغوی ته ترک ځکه ويل کيږي چې هغوی له ديوال څخه د باندې پريښودی شول او له نورو قبيلو سره په ديوال کې دننه بند نه کړی شول ( وګورئ: مرقاة المفاتيح: ۱۵/ ۳۹۲.

۲-صحيح البخاری، الجهاد والسير، حديث: ۲۹۲۸ . وصحيح مسلم، الفتن، حديث: ۲۹۱۲.

په حديث کې له بيان شويو خلکو څخه مراد تاتاري منګول دي کومو چې په سنه (۶۵۶ هجري مطابق ۱۲۵۸عيسوي) کې په ډيرو اسلامي هيوادونو کې تباهي خپره کړه او بې شميره خلک يې په خاورو او وينو کې ناقراره کړل. مګر بالاخر د الهي حکمت تقاضا وه چې دغو خلکو اسلام قبول کړ او د امت مسلمه يوه برخه جوړ شول.

## ﴿۱۵﴾ د دورو ورونکو ظالمو واکمنو ظهور

زمونږ نبي کريم ﷺ د قيامت له کومو نښانو څخه چې خبر ورکړی، له هغوی څخه يوه دا هم ده چې جابر او ظالم واکمنان به په محنتي خلکو داسې دورې وروي کومې به چې د غوا له لکۍ سره ورته والی لري، د همغو دورو مختلف قسمونه دي. کومې چې د څرمنې، د بجلۍ، د ربړ يا پلاستيک او د ونو له شاخونو څخه په جوړو شويو دورو مشتملې دي. حضرت ابو امامه ﷺ بيان کوي چې نبي کريم ﷺ فرمايلي ﴿يخرج رجال من هذه الأمة في آخر الزمان معهم أسياط كأنها أذناب البقر يغدون في سخط الله ويروحون في غضبه﴾

ژباړه:

په آخيره زمانه کې به يو شمير داسې خلک وي له کومو سره به چې د غوا د لکۍ په څير دورې وي، دغه ظالم به د الله تعالی د ناراضګي په حالت کې صبا کړي او د هغه د غضب په حالت کې به بيګا کړي (۱).

له حضرت ابو هريرة ﷺ څخه روايت دی چې رسول الله ﷺ فرمايلي: د جهنميانو دوه قسمه داسې دي کوم چې تر دا مهاله ما نه دي ليدلي. په هغوی کې يو قسم خلک هغه دي له کومو سره به چې د غوا د لکۍ په څير دورې وي او په هغوی باندې به خلک وهي (۲).

---

۱ مسند احمد: ۵/ ۲۵۰.

۲ صحيح مسلم، اللباس والزينة، حديث: ۲۱۲۸.

حضرت ابو هریرة ﷺ بیان کوي چې نبي کریم ﷺ وفرمایل: که چیرته له تا سره عمر وفا وکړه نو ډیره ممکنه ده چې ته به داسې قوم ووینې کوم به چې د الله تعالی د ناراضګي په عالم کې صبا کړي او د هغه د لعنت په حالت کې به بیګا کړي، د هغوی په لاسونو کې به د غوا د لکۍ په څیر دورې وي (١).

په دې حدیث کې د خلکو د وهلو ذکر نشته. لیکن د الله تعالی د ناراضګي او لعنت ذکر د دې خبرې دلیل دی چې هغوی به په خلکو باندې ډیر زیات ظلم او زیاتی کوي.

## ﴿۱۶﴾ د قتل او خونریزي ډیروالی

د رسول الله ﷺ د قیامت په بیان کړل شویو نښانو کې یوه دا هم ده چې قتل او خونریزي به دومره زیاته شي چې داسې یو وخت به راشي چې نه به قتل کونکي ته دا علم وي چې ولې یې قتل وکړ او نه به قتل کړی شوي ته دا علم وي چې په څه قتل کړی شو. حضرت ابوهریرة ﷺ بیان کوي چې رسول الله ﷺ وفرمایل ﴿والذي نفسي بیده لا تذهب الدنیا حتی یأتي علی الناس یوم لا یدري القاتل فیما قتل ولا المقتول فیم قتل فقیل کیف یکون ذلك ؟ قال الهرج القاتل والمقتول في النار﴾

ژباړه: په هغه الله قسم د کوم په لاس کې چې زما روح دی! دا دنیا به تر هغه ختمه نشي تر څو چې یوه داسې ورځ رانشي چې نه به قاتل په دې پوهیږي چې دا انسان یې په څه قتل کړ او نه به مقتول پوهیږي چې ولې قتل کړی شو. ترینه وپوښتل شول: دا به څنګه کیږي؟ رسول الله ﷺ وفرمایل: د قتل او خونریزي د ډیروالي له امله به قاتل او مقتول دواړه په اور کې وي (٢).

---

١- صحیح مسلم، الجنة ونعیمها، حدیث: ۲۸۵۷.

٢- صحیح مسلم، الفتن، حدیث: ۲۹۰۸.

د دغې خونريزي ابتداء د حضرت عثمان غني ﷺ له قتل څخه شوې. په همدې سره د داسې جنګونو شروع وشوه د کومو لپاره چې هيڅ معقول جواز نه ؤ، په دغو جنګونو کې په زرګونو قيمتي انسانان ضايع شول. د ورځو له تيريدا سره سره نوې تباه کونکې اسلحې به هم پيدا شي کومې چې نن صبا په خونړيو جنګونو کې استعماليږي.

په ځينې جنګونو کې د وژل شويو شمير:

(۱) په لومړني جنګ جهاني کې دوه نيم کروړه خلک ووژل شول.
(۲) په دويم جنګ جهاني کې پنځه نيم کروړه خلک له منځه لاړل.
(۳) د ويتنام په جنګ کې ديرش لکه خلک ووژل شول.
(۴) د روس په خانه جنګي کې يو کروړ انسانان قتل کړی شول.
(۵) د سپين په خانه جنګي کې د يو کروړ او شلو لکو انسانانو وينې وبهيدې.
(۶) د عراق او ايران د (خليج په لومړني جنګ) کې لس لکه انسانان له منځه ولاړل
(۷) په عراق باندې د استعماري قبضې په دوران کې لس لکو خلکو له خپل ژوند څخه لاس ونه پريمنځل.

سره له دې چې په دغو جنګونو کې په ځينو باندې د حديث دغه الفاظ (چې نه به قاتل پوهيږي چې ولې يې هغه انسان وواژه او نه به مقتول پوهيږي چې ولې ووژل شو) نه صادقيږي، بلکه د هغوی ذکر دلته د قتل او خونريزي د کثرت بيانولو له امله شوی دی.

## ﴿۱۷﴾ له انساني زړونو څخه د ديانتداري ورکيدل

د مناسب انسان په مناسب ځای باندې ټاکل د امت لپاره بقا، د هيوادونو او د انسانانو لپاره د اصلاح، د تهذيب او تمدن د پورته والي بنياد دی. کله چې امانتونه برباد شي نو پيماني بدلې شي او په خلکو کې هم بدګماني پيدا شي، حتی چې نااهل خلک به په غوره منصبونو باندې قبضه وکړي د کوم له

امله به چې هر لوري ته بد نظمي خپره شي، د دغو امورو په باره کې زمونږ خواږه پیغمبر حضرت محمد ﷺ خبر راکړی.

د امانت د ضایع کیدا سبب په نیتونو کې فساد دی

حضرت حذیفة بن یمان رضي الله عنه بیان کوي چې نبي کریم ﷺ وفرمایل: امانت د خلکو د زړونو په رګونو کې نازل کړل شو. بیا قرآن کریم نازل شو او خلکو ته یې د امانت اهمیت په قران او حدیث سره معلوم کړ.

حضرت حذیفة رضي الله عنه فرمایي: په مونږ باندې داسې یو وخت هم راتلونکی دی په کوم کې به چې مونږ اخستل او خرڅول کوو مګر مونږ به د دې پروا نه کوو مونږ چې له چا څخه خریداري وکړه د هغه دین څه دی، که چیرته هغه مسلمان وي نو زمونږ حق به راکړي او که چیرته عیسایي یا یهودي وي نو بیا به هم د خپل وکیل په ذریعه زمونږ حق به اداء کړي، مګر نن زه له فلان او فلان څخه پرته له بل هیچا سره اخستل او خرڅول نه کوم (١).

کله چې د اکثر خلکو ضمیر خراب شي، معاملې نا اهلو ته وسپارل شي او امانتونه ضایع کړل شي نو قیامت قریب راتلونکی دی.

حضرت ابو هریرة رضي الله عنه بیان کوي چې په یوه مجلس کې نبي کریم ﷺ تشریف فرما ؤ او له صحابه کرامو رضي الله عنهم سره یې خبرې کړلې چې یو اعرابي (کوچی) راغی او هغه وپوښتل: د الله رسوله! قیامت کله قایمیږي؟ رسول الله ﷺ خپلې خبرې جاري وساتلې او د اعرابي لور ته یې توجه ونه کړه، ځینې خلکو ویلې چې نبي کریم ﷺ خو د اعرابي خبره واوریدله مګر د هغه پوښتنه یې خوښه نشوه، ځکه یې هغه ته له ځواب ورکولو احتراز وکړ، نورو ویلې: چې نبي کریم ﷺ خبره نه ده اوریدلې. کله چې نبي کریم ﷺ خپلې خبرې پوره کړې نو وې فرمایل: د قیامت په باره کې پوښتونکی سړی چیرته

---

١- صحیح البخاری، الرقاق، حدیث: ٢۴٩٧، وصحیح مسلم، الایمان، حدیث: ١۴٣.

دی؟ هغه عرض وکړ : یا رسول الله ! زه دلته یم. نبي کریم ﷺ وفرمایل : واوره ! کله چې امانتونه ضایع کړل شي نو د قیامت انتظار کوه، هغه عرض وکړ : امانتونه څنګه ضایع کیږي؟ نو رسول الله ﷺ ورته وفرمایل : کله چې معاملې نا اهلو خلکو ته وسپارل شي نو هغه وخت قیامت ته انتظار کوه (١).

د قیامت دغه نښانه زمونږ په ژوندګي کې نن ورځ پوره ظاهرې شوې ده. تاسو وګورئ چې په وزارتونو کې، په تعلیمي ادارو کې او په ټولنه کې ډیرې مهمې دندې او منصبونه کوم چې براه راست د خلکو له معاملو سره تعلق لري. په هغوی باندې د ډیر باصلاحیته، امانتدار، مناسب او د خلکو په معاملو باندې د ښو پوهیدونکو په ځای هغه څوک راغلي کوم چې د دغو دندو او منصبونو له مشرانو سره شخصي دوستي (خپلولي) لري او یا له کوم مشر سره ګډ مفاد لري، دوی د همدغو مشرانو په سفارش بر سر اقتدار راغلي.

هو ! کله چې معاملات نا اهلو خلکو ته وسپارل شي نو قیامت ته انتظار کوه.

## ﴿١٨﴾ د پخوانیو امتونو د طریقو پیروي

امت مسلمه چې په کومو لویو لویو فتنو کې راګیر دی، په هغوی کې تر ټولو لویه فتنه ړوند تقلید . د یهودو او نصاری ؤ او د نورو کفارو له اخلاقو او عاداتو څخه د نفرت په ځای له هغوی سره د ورته والي اختیارول دي.

نبي کریم ﷺ د دې خبرې خبر ورکړی چې زما د امت یوه ډله به د پخوانیو ګمراه امتونو د یهودو او نصاری ؤ د عادتونو او روایاتو تقلید وکړي. حضرت ابو هریرة ﷺ بیان کوي چې رسول الله ﷺ وفرمایل : قیامت تر هغه وخته نه قایمیږي تر څو چې زما امت د پخوانیو خلکو په لار باندې قدم په قدم ولاړ نشي. پوښتنه ترینه وشوه : یا رسول الله ! آیا له پخوانیو خلکو څخه

---

(١) - صحیح البخاری . العلم . حدیث : ٥٩.

څخه د ستا مراد فارس او روم دی؟ رسول الله ﷺ وفرمايل: بيا نو څوک دي؟ (١).

له کومو شيانو څخه چې د الله تعالى ﷻ نبي ويرونه کړې، په هغو کې اکثر واقع شوي او کوم چې پاته دي هغه هم يقينا واقع کيدونکي دي، لکه چې د ابو سعيد خدري ﷺ په روايت کې راغلي چې رسول الله ﷺ وفرمايل: ﴿لَتَتَّبِعُنَّ سَنَنَ مَنْ قَبْلَكُمْ شِبْرًا بِشِبْرٍ وَذِرَاعًا بِذِرَاعٍ حَتَّى لَوْ سَلَكُوا جُحْرَ ضَبٍّ لَسَلَكْتُمُوهُ قُلْنَا يَا رَسُولَ اللَّهِ الْيَهُودَ وَالنَّصَارَى؟ قَالَ فَمَنْ؟﴾

ژباړه: تاسې خلک به له خپل ځان څخه د مخکنيو خلکو د طريقو داسې پوره پوره پيروي وکړی کومه به چې ولیشت په ولیشت او څنګل په څنګل برابره وي، حتى که چيرته هغوی د ځناور په سوري کې ور داخل شي نو تاسو به ضرور د هغوی پيروي وکړی، مونږ عرض وکړ: يا رسول الله! آيا د ستا مراد يهود او نصارى دي؟ رسول الله ﷺ وفرمايل: بيا نو څوک دي؟ (٢).

قاضي عياض رحمه الله د دغه حديث په شرح کې ويلي چې د ولیشت، څنګلې او د ځناور د سوري تشبيه د هغه قوم د مکمل اقتداء او د ړانده تقليد د واضحه کولو لپاره ورکړې شوې (٣).

د يهودو او نصارى ؤ هغه تقليد له کوم څخه چې په حديث کې منع شوې. په هغه کې هغه شيان نه دي داخل کوم چې زمونږ د دين خلاف نه دي، لکه زمونږ له هغوی سره د معلوماتو او تجرباتو تبادله کول، د هغوی له مفيدو ايجاداتو څخه استفاده کول او د هغوی له نظم او نسق څخه فايده اخيستل، دا په مذموم اقتداء کې نه راځي.

---

١- صحيح البخاری، الاعتصام بالکتاب، حديث: ٧٣١٩.
٢- صحيح البخاری، احاديث الانبياء، حديث: ٣٤٥٦، وصحيح مسلم، العلم، حديث: ٢٦٦٩.
٣- فتح الباری، شرح صحيح البخاری، الاعتصام بالکتاب والسنة، حديث: ٧٣١٩.

له قابل مذمت تقلید څخه مراد دا دی چې د هغوی د لباس، عاداتو او ټولنیز رسم او رواج، لکه د ښځو او نرانو اختلاط. بې پردګي او نورو تقلیدکول. یا د هغوی د داسې اقتصادي نام پیروي وشي کوم چې زمونږ د دین له تعلیماتو څخه مخالف وي، لکه د سود معامله او یا نور معاملات.

## ﴿۱۹﴾ له مینځې څخه د خپل مالک زیږیدل

د قیامت له نښانو څخه دا هم ده چې یوه مملوکه مینځه به داسې هلک وزیږوي کوم به چې بیا د دې آقا (بادار) جوړ شي، دا داسې کیږي کله چې یو آزاد سړی له خپلې مینځې سره جماع وکړي، هغه حامله شي او له هغې څخه هلک پیدا شي او هغه لوی شي او داسې یو آزاد انسان جوړ شي د کوم چې پلار ژوندی وي مګر د هغه مور د پخوا په څیر مینځه وي، نو په دې طریقه به دغه هلک د خپلې مور د مالک حیثیت اختیار کړي.

په حدیث جبرئیل کې دي کله چې هغوی د قیامت د وخت په باره کې له تا پوښتنه کوي نو ورته ووایه : زه تاسو ته د هغو نښانو په باره کې خبر درکوم، کله چې مینځه خپل مالک وزیږوي نو دا د قرب قیامت نښانه ده [۱].

د دې معنا دا هم بیان کړی شوې ده چې بادشاه به د مینځې له خیټې څخه پیدا شي. په دې طریقه به یې زوی بادشاه شي او د هغه مور به په رعیت کې شامله شي.

## ﴿۲۰﴾ د اغوستل شویو کالیو با وجود د لوڅو ښځو ظهور

د ښځو بې پردګي او د ښایست بې ځایه اظهار هم د قیامت له نښانو څخه دی. ښځې چې یو داسې تنګ کالي واغوندي او له کورونو څخه د باندې ووځي د کومو له امله چې د هغوی د بدن اندامونه لیدل کیږي او داسې باریکې او شفاف جامې واغوندي او له کورونو څخه د باندې ووځي د کومو له امله چې د ناستې او تلو په حالت کې د هغې د بدن اعضاء ښکاره تر سترګو

---

[۱] - صحیح البخاري، التفسیر، حدیث: ۴۷۷۷.

کيږي. داسې ښځې په ظاهره په جامو (کاليو) کې ملبوسې دي. مګر په اصل حقيقت کې د تنګو کاليو. د جسماني اعضاؤ د نمايش او د جسم د پر فتن ځايونو د ښکاره کولو له امله هغه لوڅې (لغړې) دي.

حضرت ابو هريرة ﷺ بيان کوي چې رسول الله ﷺ وفرمايل: ﴿صنفان من أهل النار لم أرهما قوم معهم سياط كأذناب البقر يضربون بها الناس ونساء كاسيات عاريات مميلات مائلات رؤسهن كأسنمة البخت المائلة لا يدخلن الجنة ولا يجدن ريحها وإن ريحها ليوجد من مسيرة كذا وكذا﴾

ژباړه:

دوه داسې جهنمي ډلې کومې چې ما تر اوسه پورې نه دي ليدلې، يو هغه (ظالم) د کوم په لاس کې چې د غوا د لکۍ په څير دوره وي او په هغې باندې خلک وهي [۱] دويم هغه ښځې کومې چې د کاليو له اغوستلو سره سره بيا هم لوڅې تر سترګو کيږي او خلک د خپل ځان لور ته مايل کوي او په خپله هم د خلکو لور ته مايله وي، د هغوی د سر ويښتان د بختي اوښ د ويښتانو په څير يوه لور ته مايل وي، دا به نه جنت ته داخليږي او نه به د هغه خوشبو محسوسه کړي، سره له دې چې د هغه خوشبو تر هغې او دغې فاصلې پورې راځي [۲].

د (مائلات) يوه معنا دا هم ده چې دا ښځې به د الله تعالی له اطاعت څخه انحراف کونکې او د الله تعالی په اطاعت باندې به استقامت کونکې نه وي.

د (مميلات) يوه معنا دا هم ده چې نورې ښځې به د فحاشي لور ته رابولي. يعنې په فساد کې مبتلا او د فساد خپرونکې ښځې به وي.

---

[۱] - د دغې نښانې بيان په ۱۵ نمبر علامه کې تير شو.

[۲] - صحيح مسلم. اللباس والزينة. حديث ۲۱۲۸.

(رؤوسهن كاسمنة البخت) يعني هغوی به د سر ويښتان په داسې طريقه بند کړي وي چې ويښتان به يې پورته لور ته وي لکه څنګه چې د اوښ کو له ورايه ښکاره کيږي، د دغو ښځو ويښتان به يوه لور ته په داسې طريقه مايل شوي وي لکه څنګه چې د بختي اوښ کو مايل وي.

## ﴿۲۱﴾ لوڅوالی، د لوڅوالي په حالت کې د ميګو څرونکو خلکو لخوا د لوړو بلډنګونو جوړول

د قيامت هغه نښانې د کومو په باره کې چې نبي کريم ﷺ خبر ورکړی او هغه ظاهرې شوې هم دي، د هغوی له جملې څخه يوه دا هم ده چې داسې خلک کومو چې د لوڅ بدن په حالت ميګې څرولې د لوړو عمارتونو (بلډنګونو) په جوړولو او د کورونو د ښايست او آرايش په کار کې به له يو بل څخه د مخته تلو په کوشش کې وي او پر هغوی باندې به د فخر اظهار کوي.

دا له هغه وخت څخه دی کله چې مسلمانانو په مختلفو هيوادونو کې فتحه ترلاسه کړه، مال او دولت زيات شو او خلک د دنيا په جمع کولو کې له يوه بل څخه د مخته تلو په مقابله کې شول.

له حضرت عمر بن الخطاب ﷺ څخه روايت دی کله چې جبرئيل امين د رسول الله ﷺ په خدمت کې حاضر شو او له نبي کريم ﷺ څخه يې د اسلام، ايمان، احسان او بيا د قيامت په هکله پوښتنه وکړه، نو نبي کريم ﷺ هغه ته د قيامت د نښانو په باره کې په خبر ورکولو سره وفرمايل: ﴿أن تلد الأمة ربتها وأن ترى الحفاة العراة العالة رعاء الشاء يتطاولون في البنيان﴾

ژباړه: دا چې مينځه به خپل مالک وزيږوي او چې ته ووينې لوڅ. لوڅ بدن او لوږې وهلي د ميګو څرونکي (چې داسې به دولتمند شي)

چې د لوړو عمارتونو ( بلډنګونو ) په جوړولو کې به له يوه بل سره مقابله کوي (۱).

کله چې ته لوڅ. وګي او لوږې وهلي خلک سردار جوړيدل ووينې نو ته پوه شه چې دا د قيامت له اثارو او نښانو څخه دي. له رسول الله ﷺ څخه پوښتنه وشوه : يا رسول الله ! دا لوڅ. وګي او د ميګو څرونکي خلک کوم خلک دي؟ رسول الله ﷺ وفرمايل : عرب (۲).

په دې کې شک نشته چې د کور جوړونه. د عمارت جوړونه او تر بلډنګ رسونه کوم حرام کار نه دی. خصوصا کله چې په هغه کې د تجارت فوايد وي او د فخر. غرور او تکبر لپاره هم نه وي.

د عمارتونو تطاول ( لوړوالی ) په دوه رنګه کيدلای شي. يو دا چې هغه تر څو منزلونو پورې لوړ کړی شي او دويم دا چې هغه ډير ښايسته. مضبوط. منقش او لوی کړی شي او په هغه کې لوی لوی مجالس کيدلای شي او مربوطه نور عمارات پکې جوړ کړل شي.

دا ټول په موجوده زمانه کې د امر واقع په څير موجود دي. کله چې دولت زيات شو او په خلکو باندې د دنيا دروازې راخلاصې شوې (۳).

مقصودي خبره دا ده چې د ميګو څرونکي به صحراء پريږدي او د لوړو عمارتونو په جوړولو کې به مبالغه او مقابله بازي کوي. د کورونو. دوکانونو او د پلازو د دغو ټولو تعمير به د فخر. غرور او تکبر لپاره وي. هر څوک به دا غواړي چې د ده بلډنګ د نورو له بلډنګونو څخه لوړ وي. په اوسني وخت کې په عربو او غير عربو کې په تعميرونو مبالغه عام رواج دی. نه يوازې په افرادو کې بلکه حکومتونه هم پکې شامل دي.

---

۱- صحيح مسلم. الايمان. حديث: ۸.

۲- مسند احمد: ۱/ ۳۱۹. وسلسلة الاحاديث الصحيحة: ۳. ۳۳۲. حديث: ۱۳۴۵.

۳- وګورئ ! اتحاف الجماعة بما جاء في الفتن والملاحم واشراط الساعة للشيخ التويجري: ۲/ ۱۲۲.

حکومتونه هم د لوړو عمارتونو، بلډنګونو او د پلازو په جوړولو کې له فخر او غرور سره سره له یوه بل څخه د مختنه تلو په کوشش کې دي.

## ﴿۲۲﴾ خاص خاص خلکو ته سلام کول

الله تعالی ﷻ هر خاص عام ته د سلام کولو حکم د دې لپاره کړی تر څو د خلکو په مینځ کې د محبت او رابطې نښانه جوړه شي. حکم یې کړی چې کوچنی دې غټ ته او غني دې فقیر ته سلام کوي. همدا شان نبي کریم ﷺ هر عرب او عجم، تور او سپین ته حکم کړی چې دوی دې په هر چا سلام ور اچوي که یې پیژني او که نه. د رسول الله ﷺ ارشاد مبارک دی ﴿لا تدخلون الجنة حتى تؤمنوا ولا تؤمنوا حتى تحابوا أولا أدلكم على شيء إذا فعلتموه تحاببتم ؟ أفشوا السلام بينكم﴾

ژباړه: تاسو خلک به جنت ته داخل نشی تر څو چې تاسو ایماندار نشی او تاسو به ایماندار نشی تر څو چې په خپل مینځ کې محبت ونه کړی، آیا زه تاسو ته یو داسې شی در ونه ښیم کله چې تاسو هغه وکړی نو د ستاسو په مینځ کې به محبت پیدا شي؟ په خپل مینځ کې سلام سره اچوی (۱).

د قیامت له نښانو څخه دا هم ده چې خاص خاص خلکو ته به سلام کیږي، هغه داسې چې یو سړی به یو اځې هغه چا ته سلام کوي له کوم سره یې چې شناخت وي او له کوم چا سره یې چې شناخت (اندیوالي) نه وي هغوی ته به سلام نه ور اچوي. سره له دې چې سنت خو دا ده چې هر مسلمان ته سلام ور واچول شي. هغه که تاسو پیژنی او که یې نه پیژنی.

ابو الجعد وایي: له عبد الله بن مسعود ﷺ سره د یوه شخص ملاقات کیدو نو هغه وویل: ابن مسعود! تا ته دې سلام وي. حضرت عبد الله بن مسعود ﷺ وویل: رښتیا ویلي دي الله تعالی ﷻ او د هغه رسول ﷺ. ما د

---

(۱) صحیح مسلم، الایمان، حدیث: ۵۴.

الله تعالی له نبي څخه د ویلو په وخت کې آوریدلي ؛ د قیامت له نښانو څخه دا هم ده چې یو سړی به جومات ته داخل شي مګر هلته به دوه رکعته لمونځ ونه کړي او دا هم چې یو سړی به یواځې پر هغه چا سلام اچوي له کوم چا سره یې چې یو شناخت وي (۱).

په صحیحینو کې یو روایت دی چې یوه سړي له نبي کریم ﷺ څخه پوښتنه وکړه ؛ کوم اسلام بهتر دی؟ نبي کریم ﷺ وفرمایل ﴿ تُطْعِمُ الطَّعَامَ وَتَقْرَأُ السَّلَامَ عَلَى مَنْ عَرَفْتَ وَعَلَى مَنْ لَمْ تَعْرِفْ﴾

ژباړه : د ډوډۍ ورکړه او په هر سړي باندې د سلام ور اچول خواه هغه ته پیژني او که یې نه پیژني (۲).

## ﴿۲۳﴾ ﴿۲۴﴾ ﴿۲۵﴾ د تجارت ډیروالی، له میړه سره په تجارت کې د ښځې شراکت او د ځینو تجارانو په مارکیټ باندې قبضه

د تجارت په کار وبار کې به دومره اسانتیاوې پیدا شي د کومو له امله به چې خلک ډیر پر مختګ وکړي. تر دې چې ښځه به له خپل میړه سره په تجارتي امورو کې شریکه شي. د دغو دواړو نښانو ذکر په یوه حدیث کې راغلی، نبي کریم ﷺ فرمایلي : قیامت ته نږدې به خاص خاص خلکو ته سلام کیږي، تجارت به ډیر زیات شي حتی چې ښځه به له خپل میړه سره د تجارت په کارونو کې مرسته کونکې شي. قطع د صله رحمي به راشي. د دروغو ګواهي به ورکول کیږي. رښتوني ګواهي به پټیږي او د قلمي تحریرونو دور به دوره وي (۳).

حضرت عمر بن تغلب ﷺ بیان کوي چې نبي کریم ﷺ وفرمایل : د قیامت له نښانو څخه دي چې مال به ډیر زیات شي. تجارت به عام شي، د

---

۱. صحیح ابن خزیمة: ۲/ ۲۸۳. وسلسلة الاحاديث الصحيحة: ۲/ ۲۴۸، حديث: ۲۴۸.
۲. صحیح البخاری. الاستئذان. حديث: ۲۲۳۲. وصحيح مسلم. الايمان. حديث: ۳۹
۳. مسند احمد: ۱/ ۴۰۷. شيخ شعيب الارنؤوط دغه ته حسن ويلي.

جهالت دور به دوره وي. یو سړی به مال خرڅوي مګر وايي به: ودریږه! زه د فلانی قبیلې له تجار سره مشوره کوم او بیا به په یوه لویه ابادي کې د لیکلو والا کاتب لټوي مګر هغه به نه پیدا کیږي (۱).

د نبي کریم ﷺ دا خبره چې یو سړی به مال خرڅوي مګر وايي به: ودریږه! زه د فلانی قبیلې له تاجر سره مشوره کوم او په یوه لویه ابادي کې به یو کاتب نه وي. د دې معنا او مفهوم دا دی چې لوی لوی تجاران کوم به چې غالبا د راس المال مالک وي، یا به کوم داسې ایجنټ وي چې د مالونو واردولو او صادرولو لپاره به ټاکل شوی وي. شاید د همدغو خلکو به په بازارونو باندې کنټرول وي او د خپلې خوښې مطابق به نرخونه مقرره وي، واړه تجاران به د همدغو لویو تجارانو له اجازې پرته خرید فروخت نشي کولای.

یا مطلب دا دی چې د سودا کولو په وخت کې به د بیع انعقاد د کوم بل تاجر په رضامندۍ سره مشروط شوی وي.

د نبي کریم ﷺ دا خبره چې په یوه لویه ابادي کې به کاتب نه وي. سره له دې چې نبي کریم ﷺ په یوه حدیث کې خبر ورکړی چې د قرب قیامت په وخت کې به کتابت عام شي. د دې مفهوم دا دی چې په نویو الاتو سره به کتابت عام شي، مثلا لکه کمپیوټر، موبایل تلیفون. داسې آلات کوم چې آواز واوري او هغه په تحریر سره بدل کړي او همدا شان نور الیکترانیک آلات به زیات شي. د دې په نتیجه کې به یو داسې نسل راپیدا شي کوم به چې په لاس لیکل بیخي نه پیژني. یا خو به یې پیژني مګر په ښه طریقه به یې لیکلی نشي.

دا مطلب هم کیدلای شي چې له دې کاتب څخه مراد هغه څوک وي کوم به چې د تجارت معاهدې قلم بند کړې وي او د خرید او فروخت قوانین او

---

(۱) سنن النسائي، البیوع، حدیث: ۴۴۶۱، و سلسلة الاحادیث الصحیحة: ۲، ۲۳۱، حدیث: ۲۷۶۷.

احکام به له یوې آلې څخه معلوموي او هغه به د خلکو په مینځ کې پرته له کومې معاوضې په ضبط او تحریر کې راولي (۱).

## ﴿۲۶﴾ د دروغو ګواهي

د دروغو ګواهي دا ده چې یو انسان به د بل په باره کې په خپل شهادت (ګواهي) کې له دروغو څخه کار اخلي. مثلاً : داسې ګواهي به ورکوي چې د فلاني سړي په فلاني باندې حق دی او دغه ګواهي به د ده په نظر دروغ هم وي او دا له ګناه کبیره څخه دی. نبي کریم ﷺ فرمایلي : ﴿أَلَا أُنَبِّئُكُمْ بِأَكْبَرِ الْكَبَائِرِ ثَلَاثًا قَالُوا بَلَى يَا رَسُولَ اللَّهِ قَالَ الْإِشْرَاكُ بِاللَّهِ وَعُقُوقُ الْوَالِدَيْنِ وَجَلَسَ وَكَانَ مُتَّكِئًا فَقَالَ أَلَا وَقَوْلُ الزُّورِ﴾

ژباړه :

زه تاسو ته په کبیره ګناهونو کې تر ټولو په غټې ګناه خبر در نه کړم؟ دا خبره یې درې ځلې وکړه. صحابه کرامو رضي الله عنهم عرض وکړ : ضرور اې د الله رسوله : وې فرمایل ! له الله تعالی جل جلاله سره شرک او له والدینو څخه نافرماني کول. نبي کریم ﷺ تکیه ووهله. مګر د راتلونکې خبرې د اهمیت په خاطر مخامخ کیناست او وې فرمایل : خبردار ! دروغژنه خبر هم له ګناه کبیره څخه دی (۲).

د خلکو په مینځ کې د دروغو ګواهي عام کیدل او د خلکو په دې باره کې سست کیدل د قیامت له نښانو څخه دي. لکه چې نبي کریم ﷺ په مخکنې حدیث کې وویل : له قیامت څخه د مخه به د دروغو ګواهي عامه شي.

د دروغو ګواهي به یواځې د قاضي او حاکم په وړاندې نه وي. بلکه دا به د زندګي په تمامو معاملاتو کې وي. لکه څنګه چې خلک په خپلو روزمره معاملو کې غلط شهادتونه ورکوي. د ځینې کمپنیو او ادارو ملازمین د خپلې

---

(۱) دا آخیرنی معنا مولانا سندي رحمه الله د سنن نسائي په حاشیه کې ذکر کړی.

(۲) صحیح البخاري. الشهادات. حدیث : ۲۶۵۴ . وصحیح مسلم. الایمان. حدیث : ۸۷.

دندي په حوالي سره په مدارسو او جامعو کې د طالب العلمانو ګواهي او د بچیانو د والدینو په وړاندې ګواهي هم په دې کې شامله ده.

نبي کریم ﷺ د دروغو په ګواهي، د دروغو په قسم او د غلط بیاني په ذریعه د نورو خلکو د حق له تلف کولو څخه سخته ویرونه کړې، نبي کریم ﷺ فرمایلي: کوم سړی چې د دروغو قسم په ذریعه د یوه مسلمان ورور حق تلف کړي نو هغه به د الله تعالی ﷻ په عدالت کې په داسې حال کې وړاندې کیږي چې الله تعالی به له هغه څخه سخت ناراض وي (۱).

بیا نبي کریم ﷺ دغه آیت کریمه تلاوت کړ: ﴿إِنَّ الَّذِينَ يَشْتَرُونَ بِعَهْدِ اللَّهِ وَأَيْمَانِهِمْ ثَمَنًا قَلِيلًا أُولَٰئِكَ لَا خَلَاقَ لَهُمْ فِي الْآخِرَةِ وَلَا يُكَلِّمُهُمُ اللَّهُ وَلَا يَنْظُرُ إِلَيْهِمْ يَوْمَ الْقِيَامَةِ وَلَا يُزَكِّيهِمْ وَلَهُمْ عَذَابٌ أَلِيمٌ ﴿٧٧﴾﴾ (۲).

ژباړه:

بیشکه هغه کسان چې پیري (بدل اخلي) دوی په عهد د الله باندې (چې ایمان په نبي او اداء د امانت ده) او په (دروغو) قسمونو خپلو باندې (ایمان په محمد او نصرت) قیمت لږ (دنیوي د هغه د نه منلو په عوض) دغه کسان نشته هیڅ برخه د دوی دپاره په آخرت کې او نه به خبرې وکړي له دوی سره الله (په خوښۍ) او نه به وګوري دوی ته الله (په رحم سره) په ورځ د قیامت کې او نه به پاک کړي دوی الله (له کفره) او (شته) دوی ته عذاب دردناک (په سبب د دغو بدو افعالو د دوی).

حضرت ابو امامه باهلي ﷺ روایت کوي چې نبي کریم ﷺ وفرمایل: کوم سړي چې په دروغو سره قسم وکړ او د خپل مسلمان ورور حق یې تلف کړ، الله تعالی په هغه باندې جهنم واجب او جنت حرام کړ. یوه کس عرض

---

۱ صحیح البخاري، التوحید، حدیث: ۷۴۴۵.

۲ آل عمران، آیة: ۷۷.

وکړ: اې د الله رسوله! که چیرته هغه معمولي شی وي نو بیا؟ رسول الله ﷺ وفرمایل: هغه دې یو مسواک ولې نه وي (۱).

## ﴿۲۷﴾ د رښتونې ګواهي پټول

الله تعالی ﷻ هر مسلمان ته د دې خبرې حکم کړی چې هغه له خپل مسلمان ورور سره مرسته وکړي. خواه هغه ظالم وي او که مظلوم. که چیرته ظالم وي نو د هغه له ظلم څخه دې ځان وساتي او که چیرته مظلوم وي نو د هغه حق چې تر څو ممکن وي هغه ته دې بیرته ورکړي. الله تعالی ﷻ د رښتونې ګواهي پټول حرام کړي. الله تعالی ﷻ فرمایي: ﴿وَلَا تَكْتُمُوا الشَّهَادَةَ ۚ وَمَنْ يَكْتُمْهَا فَإِنَّهُ آثِمٌ قَلْبُهُ ۗ﴾ (۲).

ژباړه: او مه پټوئ شهادت (اې شاهدانو یا اې مدعیانو! چې ګویا اقرار هم په خپل ځان باندې شاهدي ده) او هر چا چې پټه کړه دا (شاهدي) نو بیشکه دی ګنهګار زړه د ده.

په آخره زمانه کې به خلک د یوه بل حق پټوي او څوک چې په اصل حقیقت خبر وي هغه به چپ اوسي او د طاقت باوجود به له رښتونې ګواهي څخه ځان ساتي. هغه به د خپلو ذاتي مفادو لپاره ګواهي ورکولو ته ور وړاندې کیږي او داسې صورتحال د قیامت له نښانو څخه دی. لکه چې په مخکې حدیث کې نبي کریم ﷺ د قیامت په لومړنیو نښانو کې د رښتونې ګواهي پټولو ذکر هم فرمایلی.

---

۱- صحیح مسلم، الایمان، حدیث: ۱۳۷.

۲- البقرة، آیة: ۲۸۳.

## ﴿۲۸﴾ د جهالت په کثرت سره خپریدل

الله تعالی ﷻ خپل رسول ﷺ ته د علم حاصلولو حکم کړی او فرمایلي يې دي: ﴿وَقُل رَّبِّ زِدْنِي عِلْمًا ﴿١١٤﴾﴾ [1].

ژباړه: او ووایه (اې محمده!) اې ربه زما زیات کړه ما لره علم

نبي کریم ﷺ د جهالت بدي بیان کړې او فرمایلي يې دي:

﴿ان الله يبغض كل جعظري، جواظ، سخاب في الاسواق، جيفة بالليل حمار بالنهار، عالم بامر الدنيا، جاهل بامر الاخرة﴾

ژباړه:

الله تعالی هر بې تمیزه مزاج، سخت طبعیت، ډیر حریص، په کوڅو او بازارونو کې شور شرابه کونکی، په شپه کې د مردار په څیر خوب کونکی، په ورځ کې د احمق په څیر د دنیا په کارونو کې اوسیدونکی، د دنیا له امورو باخبر مګر د آخرت له امورو ناخبره سړی ناخوښ بللی [2].

نبي کریم ﷺ د دې خبرې خبر هم ورکړی چې: قیامت له نښانو دا هم ده چې جهالت به عام شي. نبي کریم ﷺ فرمایلي: له قیامت څخه د مخه به داسې ورځې راشي چې علم به پورته شي او جهالت به په کثرت سره خپور شي [3].

اسلام به داسې ورک شي لکه له رخت څخه چې نقش او نګار ورک شي، تر دې چې هیڅوک به نه پوهیږي چې لمونځ، روژه، عبادت او صدقه څه شی دي [4].

---

[1] طه. آية: ۱۱۴.

[2] صحيح ابن حبان: ۱/ ۲۷۳. وحسنه الحويني في الفتاوى الحديثية. وفي اسناده عبد الله ابن سعيد. وثقه بعض الحفاظ وحديثه مستقيم.

[3] صحيح البخاري. الفتن. حديث: ۷۰۶۳. وصحيح مسلم. العلم. حديث: ۲۶۷۲.

[4] سنن ابن ماجه. الفتن. حديث: ۴۰۴۹.

نبي کريم ﷺ د قيامت نښانو د ذکر کولو په وخت کې دا هم وويل چې جهالت به عام شي (۱).

که چيرته هر څوک نن ورځ د ډيرو اسلامي هيوادنو پر حالاتو غور وکړي نو د هغه په علم کې به دا خبر ضرور راشي چې په هغوی کې اکثر خلک د ژوند په امورو او د خپلو فايدو په باره کې خو پوهيږي، په هغوی کې هر کس ته دا علم شته چې له کمپيوټر څخه کوم کار اخيستل کيږي. له موبايل څخه څنګه استفاده کيدلای شي. کوم ښه موټر دي. ليکن که چيرته تاسو له هغه څخه پوښتنه وکړی چې د (الله الصمد) معنا څه ده؟ د (غاسق اذا وقب) مفهوم څه دی؟ په لمانځه کې چې خطا شي نو سجده سهوه له سلام نه مخکې کيږي او که وروسته؟ نو تاسو به وګوری چې د هغوی زړونه او دماغ له همدغو معلوماتو څخه بالکل خالي دي.

هو! جهالت به په هر ځای کې خپور شي.

نوبت تر دې ځايه ورسيد چې يوه ورځ د هغو دنيادارو له جملې څخه يوه يې له ما څخه وپوښتل: وروره جانه! دا راته ووايه چې له نفلي لمانځه د مخه هم د اودس کول ضروري دي او که اودس يوازې د فرضي لمانځه لپاره کيږي؟ زه د ده پوښتنې ته په تعجب کې شوم. او بيا مې همدغه تعجب عروج ته ورسيد. ځکه ما ته معلومه وه چې نوموړی کس په يوه يونيورستي کې د دريو کالو طالب العلم ؤ.

همدا شان د خلکو اکثريت ته د طلاق. خريد او فروخت او د عباداتو د احکامو او مسائلو په باره کې هيڅ معلومات نشته، سره له دې چې په همدې شيانو باندې علم لرلو ته ډير اشد ضرورت دی. زما په ګمان دغه صورتحال د لهو لعب د وسائلو کثرت. د خلکو په معاشي او اقتصادي

---

(۱) مسند احمد: ۱ / ۴۳۹. وحسنه شعيب الارنؤوط.

معاملاتو کې مشغولیت. په عملي محفلونو کې نه حاضریدل او د دیني کتابونو له نه مطالعې کوْلو څخه پیدا شوی.

(والله المستعان)

## ﴿۲۹﴾ ﴿۳۰﴾ ﴿۳۱﴾ د لالچ او کنجوسي ډیروالی، قطع صله رحمي او له همسایه سره بد چلند

د قیامت له نښانو څخه دا هم ده چې داسې نفسیاتي مریضان به عام شي کوم به چې اسلامي ټولنه ټوټه ټوټه کړي. له هغوی څخه یو له اندازې پورته لالچ هم دی. حضرت ابو هریرة ﷺ فرمایي د قیامت له نښانو څخه یوه دا هم ده چې په حرص او لالچ کې به ډیر زیاتوالی راشي (۱).

حضرت انس ﷺ بیان کوي چې رسول الله ﷺ وفرمایل: نږ څومره اندازې چې قیامت د نږدې کیدا لور ته راځي معاملې له سخت څخه د سخت لوري نه ورځي او د خلکو بخل او حرص د زیاتوالي لوري ته ورځي (۲).

د نبي کریم ﷺ دا ارشاد هم دی: ﴿يَتَقَارَبُ الزَّمَانُ وَيَنْقُصُ الْعَمَلُ وَيُلْقَى الشُّحُّ وَيَكْثُرُ الْهَرْجُ﴾

ژباړه: زمانه به ډیره نږدې شي. عمل به کم کړل شي. د بخل او حرص دور به دوره شي، په قتل کې به ډیر زیاتوالی راشي (۳).

په حدیث کې د (شح) لفظ استعمال شوی. چې معنا یې ده په یوه کس کې د بخل او لالچ (طمعې) په یوه وار جمع کیدل. هر هغه انسان چې په بیکاره کارونو کې مال خرچ کوي او د نیکي یا اطاعت الهي له کارونو څخه منع کوي هغه په (شح) کې داخل دی.

---

۱ - المعجم الاوسط للطبراني: ۱/ ۲۱۸.

۲ - سنن ابن ماجه. الفتن. حدیث: ۴۰۳۹. وسنده ضعیف، وفیه محمد الجندي، وخبره منکر، انکره النسائي وغیره.

۳ - صحیح البخاری. الادب. حدیث: ۲۰۳۷. وصحیح مسلم. العلم. حدیث: ۱۵۷.

د نبي کريم ﷺ د فرمان عالی شان دی : ﴿لا تقوم الساعة حتى يظهر الفحش والتفاحش وقطيعة الرحم وسوء المجاورة﴾

ژباړه :

قيامت تر هغه وخته نه قايميږي تر څو چې فحاشي. بې حيايي. قطع صله رحمي او له همسايه سره بد سلوک کول ښکاره نشي (۱).

حضرت ابو هريرة ﷺ بيان کوي چې رسول الله ﷺ وفرمايل : په هغه ذات قسم د کوم په لاس کې چې د محمد روح دی ! قيامت به تر هغه وخته قايم نشي تر څو چې فحش ( بدکلامي) او بخل ښکاره نشي. امانتدار خائن ونه بلل شي، امانتونه خائنانو ته ونه سپارل شي. (الوعول) له دنيا څخه ولاړ نشي ( التحوت) رانشي. پوښتنه وشوه دا (الوعول) کوم خلک دي او ( التحوت) کوم؟ نبي کريم ﷺ وفرمايل : له (الوعول) څخه مراد معزز او د شريفې طبقې خلک دي او له (التحوت) څخه غير مشهور خلک مراد دي (۲).

نبي کريم ﷺ چې له کوم شي څخه خبر ورکړی هغه واقع شوی. مونږ په ډيرو خلکو کې جنګونه او فساد وينو. همدا شان د هغوی تر مينځ قطع صلحه رحمي او له همسايه ګانو سره بد سلوک هم زمونږ په ليدلو کې راځي. د خلکو په مينځ کې د محبت. صله رحمي او د الفت په ځای بغض. نفرت او عداوت پيدا شوی دی. داسې وخت راغلی چې خلک له خپل همسايه څخه بيخي خبر نه دي. خلک له خپلو رشته دارانو څخه خبر نه دي چې په هغوی کې څومره ژوندي دي او څو مره مړه.

---

۱ - مسند احمد : ۲/ ۱۲۲. والمستدرک للحاکم: ۱/ ۷۵. وصححه.

۲ - المستدرک للحاکم: ۴/ ۵۴۷. وسلسلة الاحاديث الصحيحة: ۷/ ۲۳۹. حديث: ۳۲۱۱.

## ﴿۳۲﴾ د فحاشي عام کېدل

له فحاشي څخه مراد د لوڅ لباس اغوستل او د داسې الفاظو ویل په کومو کې چې بې حیایي له ورایه تر سترګو کېږي. همدا شان یوه بل ته پیغور ورکول او لعن طعن کول هم په بې حیایي کې راځي. د فحاشي عام کیدل هم د قیامت له نښانو څخه دي. امام الانبیاء ﷺ فرمایي:

﴿والذي نفس محمد بيده ! لاتقوم الساعة حتى يظهر الفحش﴾ (۱).

ژباړه: په هغه ذات قسم د کوم په لاس کې چې د محمد روح دی! قیامت تر هغه وخته نه قایمیږي تر څو چې فحاشي عامه نشي.

## ﴿۳۳﴾ امانتدار ته خائن او خائن ته امانتدار ویل

د امانت او دیانت پورته کیدل او د منصبونو نا اهلو خلکو ته سپارل هم د قیامت له نښانو څخه دي. د قیامت له نښانو څخه دا هم ده چې امانتدار سړی به خائن بلل کیږي. د دې معنا دا ده کوم سړی چې واقعي امانتدار وي هغه ته به د شک په سترګه کتل کیږي او د هغه په امانتداري او صداقت باندې به اعتماد نه کیږي او کوم سړی چې په اصل حقیقت کې دروغژن، منافق، د غښې ژبې څښتن او خائن وي هغه به قابل اعتماد بلل کیږي. نبي کریم ﷺ فرمایلي: په هغه ذات قسم د کوم په لاس کې چې د محمد روح دی! قیامت به قایم نشي تر څو چې امین خائن او خائن امین ونه بلل شي (۲).

---

۱ المستدرک للحاکم: ۴/ ۵۴۷. وسلسلة الاحادیث الصحیحة: ۷/ ۲۳۹۰. حدیث: ۳۲۱۱

۲ المستدرک للحاکم: ۴/ ۵۴۷. وسلسلة الاحادیث الصحیحة: ۷/ ۲۳۹۰. حدیث: ۳۲۱۱

## ﴿۳۴﴾ د ښو خلکو پناه کیدل او بدو خلکو ښکاره کیدل

دا هم د قیامت له نښانو څخه ده چې معزز، دانا، عقلمند او علماء کرام به ختم شي، جاهل او بازاري خلک به د هغوی ځای ته راشي. ځکه چې د هغوی لپاره به میدان خالي وي.

نبي کریم ﷺ فرمایلي: په هغه ذات قسم د کوم په لاس کې چې د محمد روح دی! قیامت به تر هغه قایم نشي تر څو چې (وعول) پناه نشي او (تحوت) عام نشي، پوښتنه ترینه وشوه: یا رسول الله! دا (وعول) او (تحوت) څوک دي؟ رسول الله مبارک ﷺ وفرمایل: له (وعول) څخه معزز او نیک خلک مراد دي او له (تحوت) څخه جاهل او غیر مشهور خلک، یعنې کوم چې د خلکو له قدمونو څخه لاندې وي هغوی به منصبونه سمبال کړي (۱).

د لاندې خلکو پورته راتلل هلته چې کله دوی مهم منصبونه ترلاسه کړي او د هغوی لپاره د ابلاغ ذرائع، د میډیا پروپیګنډې او له هغوی څخه ګیر چاپیره ډول وهونکي او دبله ماران ډیر شي، کله چې عقلمند، دانا، مفکرین او د خلکو خیرخواه خلک له نظر څخه ورک شي. د ابلاغ له ذرائعو او همدا شان په میډیا باندې نظر انداز شي.

نن صبا په خلکو کې شهرت هغه څوک ترلاسه کوي کوم چې سندرې کوي، ګډیږي، د ساز، سرود، فحاشي او عریاني اظهار کوي، تر څو پورې چې د عالم، سائنسدان، قابل ډاکټر، انجینئر او د داسې نورو خلکو تعلق دی نو دغه خلک کانه غوږونه اوسیږي.

د قیامت دغه نښانې نن صبا ښکاره مخته راغلې دي، لیکن تر دا مهاله صورتحال ډیر خراب نه دی، اوس هم ډیر خلک دیني پروګرامونه په ډیر شوق سره ګوري، په اکثرو اسلامي هیوادونو کې د عالمانو او د دین د داعیانو ډیر قدر او احترام کیږي، خلک په دیني مجالسو کې په کثرت سره شرکت

---

(۱) المستدرک للحاکم: ۴/ ۵۴۷، وسلسلة الاحادیث الصحیحة: ۷/ ۲۳۹، حدیث: ۳۲۱۱.

کوي او د تي وي په چينلونو باندې د ديني مضامينو له ليدلو سره مينه لري. ورځ په ورځ په دغو چينلونو کې زياتوالی راځي او ليدل کيږي چې ډير غير مسلم خلک هم ديني پروګرامونه ګوري او له هغوی څخه ډيره ګټه اخلي.

## ﴿۳۵﴾ د مال په حلال والي او حرام والي کې بې پروايي

کله چې د مسلمان پرهيزګاري کمه شي نو د هغه په دين کې هم کمې واقع کيږي. کوم وخت چې د هغه په دين کې نقص راشي نو هغه په شبه لرونکو شيانو کې مبتلاء شي. له دې وروسته بيا هغه مرحله راشي چې هغه بيا د حرامو ارتکاب کوي، حتی چې کيفيت يې داسې شي چې هغه بيا د دې خبرې هيڅ پروا نه کوي چې دی کوم څه ګټي هغه حلال دي که حرام. لکه څرنګه چې نبي کريم ﷺ خبر ورکړی. دا شی په موجوده عصر کې په عملي ډول واقع شوی.

حضرت ابو هريرة ﷺ بيان کوي چې رسول الله ﷺ وفرمايل: ﴿لَيَأْتِيَنَّ عَلَى النَّاسِ زَمَانٌ لَا يُبَالِي الْمَرْءُ بِمَا أَخَذَ الْمَالَ أَمِنْ حَلَالٍ أَمْ مِنْ حَرَامٍ﴾

ژباړه: په خلکو باندې به ضرور يوه داسې زمانه راشي چې يو سړی به بالکل د دې خبرې پروا نه کوي کوم څه چې دی ګټي ايا هغه حلال دي که حرام[1].

نن ورځ که چيرته تاسو د خلکو په حالاتو غور وکړی نو تاسو به وګوری د خلکو اکثريت د هر رنګه مال جمع کولو لپاره په کوشش کې دي او هغوی د دې خبرې يوه ذره پروا هم نه کوي چې دا مال حلال دی که حرام.

همدا وجه ده چې نن صبا خلک په حرامو کې دنده اجراء کول او د حرامو شيانو تجارت کول د ځان لپاره پېغور نه بولي. مثلا: د سګريټ، شرابو او د ښځو د غير ساتر لباس تجارت کول. يا د سود کار وبار کول. يا د يوه

[1] صحيح البخاری، البيوع، حديث: ۲۰۸۳.

داسې کار وبار لپاره د دوکان په کرایه ورکول کوم چې حرام وي. الله تعالی ﷻ فرمایي ﴿ كُلُوا مِنَ الطَّيِّبٰتِ ﴾ پاک او حلال شی خوری [۱].

الله تعالی ﷻ پاک دی او پاک شی خوښوي. د هغو غوښو لپاره کومې چې په سود یا په حرامو سره ډیرې شي د هغوی لپاره د جهنم اور ډیر مناسب دی.

کوم سړی چې له پرهیزګاري څخه کار اخلي او د شبه له شیانو څخه د ځان ساتلو کوشش کوي هغه په خلکو کې بیګانه (اجنبي) پیژندل کیږل، بلکه که چیرته رشوت قبول نه کړي نو په ځینې وختونو کې هغه له خپلې دندې څخه هم لاس مینځلی شي. حالانکه د نبي کریم ﷺ ارشاد مبارک دی: ﴿فَمَنْ اتَّقَى الْمُشَبَّهَاتِ اسْتَبْرَأَ لِدِينِهِ وَعِرْضِهِ وَمَنْ وَقَعَ فِي الشُّبُهَاتِ كَرَاعٍ يَرْعَى حَوْلَ الْحِمَى يُوشِكُ أَنْ يُوَاقِعَهُ﴾.

ژباړه:

کوم سړی چې د شبهې له شیانو ځان بچ کړي نو هغه خپل دین او آبرو له نقصان څخه بچ کړل او کوم سړی چې د شبهې په شیانو کې وغورځي نو هغه په حرامو کې مبتلا شو. د هغه شپانه په څیر کوم چې د یو چا د فصل شا او خوا خپل څناور څروي. نږدې ده چې په هماغه فصل کې واقع شي [۲].

---

[۱] - المؤمنون. آیه: ۵۱.

[۲] - صحیح البخاری. الایمان. حدیث: ۵۲. وصحیح مسلم. المساقات. حدیث: ۱۵۹۹.

## ﴿۳۶﴾ په مال فی کې د خوښې تقسیم

له مال فی څخه مراد هغه مال دی کوم چې مجاهدین پرته له جنګ کولو تر لاسه کړي. خواه دښمن د جنګ له میدان څخه تښتیدلی وي. یا دښمن شکست منلی وي او خپلې اسلحې یې په زمکه ایښې وي، یا دښمن په خپله هغه مال مسلمانانو ته ور حواله کړی وي. د دغه مال به داسې تقسیم کیږي لکه څرنګه یې چې الله تعالی حکم کړی الله تعالی ﷻ فرمایي:

﴿مَآ اَفَآءَ اللّٰهُ عَلٰى رَسُوْلِهٖ مِنْ اَهْلِ الْقُرٰى فَلِلّٰهِ وَ لِلرَّسُوْلِ وَ لِذِى الْقُرْبٰى وَ الْيَتٰمٰى وَ الْمَسٰكِيْنِ وَ ابْنِ السَّبِيْلِ كَيْ لَا يَكُوْنَ دُوْلَةًۢ بَيْنَ الْاَغْنِيَآءِ مِنْكُمْ ۭ﴾ (۱).

ژباړه:

هغه چې را ګرځولي دي الله پر رسول خپل باندې له مالو د اهل د قریو (کلیو) (بې له جنګه) نو هغه دي الله لره او رسول د الله لره؛ او دغه اموال دي خپلوانو د رسول د الله لره ؛ او دغه اموال دي یتیمانو لره او مسکینانو لره او مسافرانو لره (مقرر کړی دی الله دا قسمت) لپاره د دې چې ونه ګرځي (دغه اموال) دولت په مینځ د غنیانو کې له تاسې څخه (چې له خپله حقه زیات واخلي او فقراؤ ته لږ ورکړي).

الله تعالی ﷻ د دغه مال د خپل فرمان مطابق د تقسیمولو حکم کړی تر څو غنیان خلک په دغه مال باندې قبضه ونه کړي او فقراء محروم نه کړل شي. په آخره زمانه کې به خلک د الله تعالی ﷻ د بیان کړی شوي فرمان مخالفت کوي. مالدار او لوی خلک به دغه مال په خپلو مینځونو کې سره تقسیموي. د حضرت ابو هریرة ؓ په حدیث کې دا خبره هم راغلې: چې نبي کریم ﷺ

---

(۱) الحشر، آية: ۷.

وفرمايل: کله چې مال فی په خپل مينځ کې تقسيم کړل شي او امانت بوج وبلل شي! د دغه حديث تفصيل مخته راتلونکی دی [۱].

## ﴿۳۷﴾ د امانت مال غنيمت بلل

الله تعالی ﷻ د امانت ساتلو او صحيح سالم خپلو مالکانو ته د بيرته سپارلو حکم کړی: الله تعالی ﷻ فرمايي: ﴿إِنَّ اللَّهَ يَأْمُرُكُمْ أَنْ تُؤَدُّوا الْأَمَانَاتِ إِلَىٰ أَهْلِهَا﴾ [۲].

ژباړه:

بيشکه الله امر کوي په تاسې (اې مؤمنانو!) د دې چې وسپارئ تاسې امانتونه اهل د اماناتو ته.

په آخره زمانه کې به داسې وي چې کوم مال د امانت په ډول د حفاظت لپاره يوه سړي ته ورکړی شي نو هغه به دغه مال غنيمت بولي او د خپل ملکيت تصور به کوي او چې کله مالک د خپل مال بيرته غوښتنه وکړي نو دی به يې له بيرته ورکولو څخه انکار کوي [۳].

## ﴿۳۸﴾ د ښځې فرمانبرداري او د مور نافرماني

دا هم د قيامت له نښانو څخه ده چې يو انسان به د خپلې مور نافرماني کوي. خپله ښځه به ځانته نږدې کوي او په اکثرو حالاتو کې به د مور او پلار په مقابل کې د خپلې ښځې فرمانبرداري کوي، دا خرابي هم نن صبا واقع شوې، مونږ ګورو چې په کورونو کې عموما مور تنها او د کور له افرادو څخه جلا اوسيږي، اولاد د هغې ډير کم

[۱] - وګورئ: علامات صغری نمبر: ۴۵.

[۲] - النساء، آية: ۵۸.

[۳] - دغه نښانه او يو څه نورې نښانې په حديث کې يو ځای ذکر دي، کومې به چې په علامات صغری نمبر ۴۵ کې راشي.

زیارت او ملاقات کوي، سره له دې چې زوی به یې له ښځې او بچیانو سره په آسودګۍ کې ژوند تیروي او په سیر سیاحت کې به مشغول وي.

که چیرته مور او پلار له اولاد سره په کور کې اوسیږي نو د هغوی لپاره عموما هغه انتظام او اهتمام نه کیږي کوم چې د نورو لپاره کیږي، لکه څرنګه چې د ابو هریرة ﷺ په حدیث کې دي چې نبي کریم ﷺ فرمایلي: کله چې د فی مال په خپل مینځ کې تقسیم کړل شي، انسان د خپلې ښځې اطاعت او د مور نافرماني کوي، دوست نږدې او پلار لیرې کوي! مکمل حدیث مخته راتلونکی دی[۱]

## ﴿۳۹﴾ په ښه زړه زکاة نه ورکول

(والزکاة مغرما) او چې کله زکاة جرمانه وبلل شي

له یوه مسلمان څخه مطلوب دا دی چې د هغه زړه د خپل مال، سرو او سپینو څخه د زکاة ورکولو په وخت کې مطمئن او راضي وي، ځکه چې دا زکاة د مال پاکونکی او الله تعالی ﷻ ته د نزدیکت یوه ذریعه ده، دا کوم ټیکس یا جرمانه نه ده.

لیکن په آخره زمانه کې به د مال سخت هوس او بخل د خلکو په زړونو کې جمع شي، ځینې مالدار خلک به د زکاة ورکولو په وخت کې دا ګمان کوي چې دا کومه جرمانه یا ټیکس دی، کوم چې له دوی څخه په زور اخیستل کیږي، داسې خلک خو به زکاة ورکوي مګر له خفه زړه سره، همدا وجه ده چې د ښه نیت نه درلودو له امله به هیڅ ثواب پیدا نه کړي.

---

[۱]- وګورئ! په علامات صغری کې نمبر ۴۵ علامه.

## ﴿۴۰﴾ د غير الله لپاره د علم زده کړه

اصول دا دي چې انسان شرعي علم د الله تعالی ﷻ د عبادت پيژندلو لپاره زده کړي. ور زده يې کړي او خپور يې کړي. نبي کريم ﷺ فرمايلي ﴿ان الله وملئکته واهل السماوات والارضين حتی النملة فی جحرها وحتی الحوت ليصلون علی معلم الناس الخير﴾.

ژباړه:

بيشکه الله تعالی ﷻ او د هغه فرښتې، د آسمانونو او زمکو ټول مخلوق حتی ميږيتون په خپل سوري کې او ماهيان په سمندر کې د هغه انسان لپاره دعا غواړي کوم چې خلکو ته د دين تعليم ورکوي [1].

په آخره زمانه کې به ډير خلک د قرآن، سنت او فقه علم د الله تعالی د رضا لپاره نه، بلکه د ځان ښودنې، شهرت او يا د بل دنيوي مقصد لپاره زده کوي، لکه څرنګه چې د حضرت ابو هريرة ﷺ په حديث کې راغلي چې نبي کريم ﷺ فرمايلي: کله چې مال فی په خپل مينځ کې تقسيم کړل شي او علم له ديني مقاصدو پرته د بل مقصد لپاره زده کړل شي [2].

مخته دا حديث مکمل را روان دی [3]

## ﴿۴۱﴾ له دوستانو سره نږديوالی او له مور پلار څخه ليرې والی

د مور او پلار نا فرماني دا هم ده چې له نورو خلکو سره کښيني، له هغوی سره مينه کوي او ټول کړه وړه يې د دوستانو لپاره وي او مور پلار يې نظر انداز کړي وي.

ځينې وخت زمونږ ځوانان له خپل پلار څخه تښتي. له دوستانو سره مينه او محبت کوي او ټوله ناسته ولاړه يې له هغوی سره وي، خاصکر په هغه

---

[1] - جامع الترمذي، العلم، حديث: ۲۶۵۸، وقال: حديث حسن غريب صحيح.

[2] - جامع الترمذي، الفتن، حديث: ۲۲۱۱، وفی سنده مقال.

[3] - وګورئ ! د علامات صغری علامه نمبر ۴۵.

وخت کې کله يې چې پلار سپين ږيرى شي يا له اولاد سره په روز مره کارونو کې مداخله کول غواړي، سره له دې چې اولاد ته د پلار د حقوقو پيژندل ضروري دي، لکه چې الله تعالی ﷻ فرمايي ﴿وَبِالْوَالِدَيْنِ إِحْسَانًا﴾ (۱).
ژباړه: له والدينو سره احسان (نيکه رويه) اختيار کړئ.

## ﴿۴۲﴾ په مساجدو کې د اوازونو پورته کيدل

د مساجدو په باره کې شرعي اصول دا دي چې په هغوی کې د سکون او وقار په فضا کې برقرار و اوسي، مګر د قيامت له نښانو څخه دا هم ده چې په مساجدو کې به آوازونه پورته کړل شي او هلته به جنګ او جدال کيږي.

## ﴿۴۳﴾ د قبايلو قيادت به د فاسقانو په لاس کې شي

د قيادت او سيادت په باب کې شرعي اصول دا دي چې قيادت به د ډير صالح، د ډير علم لرونکو او موزونو خلکو په لاس کې وي، مګر يوه زمانه به راشي چې د قومونو قيادت او سيادت به د فساقو او فجارو خلکو لاس ته ورشي، د دې لوی سبب دا دی چې له بيکارو خلکو سره به مال او تعلقات ډير شي، يا به د هغوی د جرئت، دليري او نسب له امله قيادت د هغوی لاسونو ته ورشي.

## ﴿۴۴﴾ تر ټولو رذيل سړی به د قوم مشر شي

د قيامت دغه نښانه هم له مخکنی نښانې سره پيوسته ده، يعنې قوم که په سفر کې وي، يا د کوم مهم کار لپاره سره را يو ځای کيږي، يا د کومې معاملې فيصله کول مقصود وي، په هر قسم حال کې به د قوم مشري د کوم نيک او منصف سړي په لاس کې نه وي، بلکه کوم سړی چې تر ټولو بد او رذيل وي دا منصب به د هغه په لاس کې وي.

---

[۱] - بني اسرائيل، آية: ۲۳.

په اصل کې داسې صورتحال د زمانې د بدوالي له امله پیدا کیږي. یا دا چې لوی سبب یې دا دی چې بد او بیکاره خلک به په کثرت سره پیدا شي.

**﴿۴۵﴾ د یوه انسان له شر څخه د ځان ساتلو په خاطر به د هغه عزت کیږي**

دا به د دې لپاره کیږي چې قیادت به د بیکارو او نا اهله خلکو په لاس کې وي او هغوی به په ټولنه کې اکثریت لري، له همدې امله به خلک مجبور وي تر څو د هغو بیکاره خلکو عزت وکړي، هغوی ته یو حیثیت ورکړي. د هغوی احترام وکړي او دا ټول به د هغوی له ظلم، زیاتي، ضرر رسولو او د هغوی له شر څخه د ځان ساتلو له امله وي.

له ۳۶ نمبر نښانې څخه تر دې ځایه چې کومې نښانې ذکر کړی شوی د هغوی ټولو بیان په دې حدیث شریف کې شوی کوم چې حضرت ابو هریرة رضي الله عنه بیان کړی چې رسول الله ﷺ وفرمایل!

﴿إذا اتخذ الفيء دولا والأمانة مغنما والزكاة مغرما وتعلم لغير الدين وأطاع الرجل امرأته وعق أمه وأدنى صديقه وأقصى أباه وظهرت الأصوات في المساجد وساد القبيلة فاسقهم وكان زعيم القوم ارذلهم وأكرم الرجل مخافة شره وظهرت القينات والمعازف وشربت الخمور ولعن آخر هذه الأمة أولها فليرتقبوا عند ريحا حمراء وزلزلة وخسفا وقذفا وآيات تتابع كنظام بال قطع سلكه فتتابع﴾ (۱).

ژباړه: کله چې د فی مال دولت وګڼل شي، د امانت مال غنیمت وبلل شي. د زکاة په ورکولو د جرمانې خیال وکړل شي، علم د غیر دیني مقاصدو لپاره حاصل کړل شي. خلک د خپلې ښځې اطاعت او د مور نا فرماني وکړي، دوستان نږدې کړي او پلرونه لیرې کړي، په جوماتونو کې آوازونه

---

[۱] - جامع الترمذي، الفتن، حديث: ۲۲۱۱، وقال: حديث غريب، والحديث في اسناده رميح الجذامي، لايعرف، وله شاهد عن علي رضى الله عنه، في اسناده الفرج بن فضالة، وآخر عند الطبراني عن عوف بن مالك، وفيه عبدالحميد بن ابراهيم.

پورته کړل شي. فاسق او فاجر خلک د قبیلو مشران شي، رذیل سړی د قوم مشر (سردار) شي، د یوه انسان عزت د هغه د شر له ویرې وشي. د موسیقي آلات او سامان عام شي، د شرابو څښل عام شي او د امت د آخرې زمانې خلک په مخکنیو خلکو باندې لعنت ویل شروع کړي نو په دې وخت کې دې خلک د ګرمو هواګانو. زلزلو. په زمکه کې خسف. د شکلونو مسخ کیدو، د تیږو (ډبرو) باران او داسې نښانو ته انتظار وکړي کومې به چې پیوسته راځي.

## ﴿۴۶﴾ ﴿۴۷﴾ ﴿۴۸﴾ ﴿۴۹﴾ زنا، وریښم، شراب او د موسیقي الات حلال ګڼل

داسې حرام شیان د کومو له حرمت څخه چې هیڅ یو مسلمان نا خبره نه دی. لکه زنا. د شرابو څښل. د موسیقي بېهوده آلات او د نرانو لپاره د وریښمو استعمال. نبي کریم ﷺ خبر ورکړی چې زما په امت کې به یوه ډله په آخره زمانه کې دا حرام شیان حلال ګڼي او دا یې د قرب قیامت په نښانو کې شمار کړي.

د دې حرامو شیانو د حلالیدو دوه ممکن صورتونه دي.

(۱) د دې شیانو په باره کې داسې عقیده لرل چې دا حلال دي نه حرام.

(۲) په خلکو کې به د دغو شیانو استعمال دومره په کثرت سره وي چې هیڅوک به یې په ژبه یا په زړه سره بد نه بولي. خلک به یې بې دریغه استعمالوي او د هغوی د حرمت احساس به هم نه کوي.

له حضرت ابو عامر یا ابو مالک اشعري ﵁ څخه روایت دی چې رسول الله ﷺ فرمایلي:

﴿لَيَكُونَنَّ مِنْ أُمَّتِي أَقْوَامٌ يَسْتَحِلُّونَ الْحِرَ وَالْحَرِيرَ وَالْخَمْرَ وَالْمَعَازِفَ وَلَيَنْزِلَنَّ أَقْوَامٌ إِلَى جَنْبِ عَلَمٍ يَرُوحُ عَلَيْهِمْ بِسَارِحَةٍ لَهُمْ يَأْتِيهِمْ يَعْنِي الْفَقِيرَ لِحَاجَةٍ

فَيَقُولُونَ ارْجِعْ إِلَيْنَا غَدًا فَيُبَيِّتُهُمْ اللَّهُ وَيَضَعُ الْعَلَمَ وَيَمْسَخُ آخَرِينَ قِرَدَةً وَخَنَازِيرَ إِلَى يَوْمِ الْقِيَامَةِ﴾ (۱).

ژباړه:

زما په امت کې به يو شمير خلک داسې هم وي کوم به چې زنا، وريښم، د شرابو څښل او د موسيقي آلات حلال ګڼي: او يو شمير خلک به خپلې بزې له ځان سره روانې کړي او د کوم غره په لمن کې به اوسيږي، په دې وخت کې به يو حاجتمند (يعنې فقير) به ورته راشي او څه به ترينه وغواړي، دی به ورته ووايي: صبا ورځ راشه، مګر په شپه کې به د الله تعالی عذاب هغه ونيسي. غر به له پاسه پرې راشي او يو څه به هلاک شي او څومره چې پاته شي هغه به تر قيامته پورې د بيزو او خنزير په شکل شي.

دا وخت په ډيرو اسلامي هيوادونو کې خلک په زنا او د شرابو په معامله کې د تساهل ښکار دي، زنا او عصمت پروشي ته يې قانوني تحفظ ورکړی. حيا ناکو ښځو ته يې با قاعده په سرکاري سطحه اجازت نامې ورکړې دي

په شراب خانو کې د شرابو خريد او پروخت ښکاره کيږي، په ډيرو عربي او اسلامي هيوادونو کې د شرابو مارکيټونه شته دي او هم پرې دوی اعتراف کوي.

حضرت ابو مالک اشعري ﵁ بيان کوي چې رسول الله ﷺ فرمايلي: زما په امت کې به داسې خلک وي چې شراب به څښي او همدغه شراب به په بل نامه ياده وي. د هغوی په وړاندې به د سندرو ويونکې ښځې د موسيقي له آلاتو سره به ګډيږي. الله تعالی به دوی په زمکه کې خسف کړي او له ځينو څخه به بيزوګان او خنزيران جوړ شي (۲).

---

[1]- صحيح البخاري، الاشربة، حديث: ۵۵۹۰.

[2]- سنن ابن ماجه، الفتن، حديث: ۴۰۲۰، باسناد صحيحه ابن القيم.

په نن زمانه کې تر ټولو لويه ګناه په کومه کې چې د خلکو لوی اکثريت را ګير دی، هغه د موسيقي الاتو بې دريغه استعمال او د سندرو آوريدل دي، د موسيقي او د سندرو آوريدل د زړه مرض پيدا کوي، د الله تعالى له ذکر څخه خلک غافل کوي او د قرآن مجيد د نه آوريدو او له هغه څخه د فايدې نه اخيستو په لیار کې تر ټولو لويه ذريعه ده. الله تعالى فرمايي:

﴿وَمِنَ النَّاسِ مَنْ يَشْتَرِي لَهْوَ الْحَدِيثِ لِيُضِلَّ عَنْ سَبِيلِ اللَّهِ بِغَيْرِ عِلْمٍ وَيَتَّخِذَهَا هُزُوًا أُولَئِكَ لَهُمْ عَذَابٌ مُهِينٌ ﴾ (۱).

ژباړه:

او (ځيني) له خلکو څخه هغه څوک دي چې پيرې (اخلي) عبث خبرې (اړه وونکې له حق څخه) دپاره د دې چې وښويوي (خلک) له لياري د الله نه بې له علمه (په عاقبت د فعل خپل) او چې ونيسي دا لاره (يا آياتونه) په ټوکو مسخرو، دغه (کسان) شته دوی ته عذاب سپکونکی.

د علم خاوندانو د (لهوالحديث) په تفسير کې ويلي چې له دې څخه سندرې او د موسيقي آلات مراد دي.

نبي کريم ﷺ د سندرو آوريدل له زنا او شرابو سره يو ځای ذکر کړل، نبي کريم ﷺ فرمايي: زما په امت کې به يو شمير داسې خلک هم وي کوم به چې زنا، وريښم، شراب او موسيقي جائز ګڼي.

په موجوده زمانه کې د موسيقي رنځ دومره عام شوی چې د آوريدو لپاره يې ځانګړې ټي وي چينلونه جوړ کړی شوي، د کومو کار چې يوازې د رنګ په رنګ سندرو وړاندې کول دي. د ځينو نورو چينلونو کار يوازې دا دی چې ۲۴ ساعته ميوزک او د فحاشي پروګرامونه وړاندې کوي، په هغوی کې د خبرونو او د قرآن کريم د تلاوت لپاره معمولي وقفه هم نه وي، دا

---

۱- لقمن، آية: ۶.

صورت حال د قیامت له نښانو څخه دی او د نبي کریم ﷺ د پیشنګویي د صداقت دلیل دی، هر مسلمان ته له دې څخه د ځان ساتل واجب دي.
حضرت عبد الله بن مسعود رضي الله عنه فرمايي: سندره په زړه کې داسې نفاق پیدا کوي لکه څرنګه چې په اوبو سره فصل را ټوکیږي.

## ﴿۵۰﴾ خلک به د مرګ غوښتنه کوي

نبي کریم ﷺ له دې خبرې هم خبر ورکړی چې داسې یو وخت به راشي په کوم کې به چې ظلم، فتنې او مصیبتونه ډیر شي، تر دې چې یو سړی به د خپل ملګري له قبر سره په خوا کې تیریږي او دا تمنا به کوي: کاشکې په دغه قبر کې د خپل ملګري په ځای دی دفن وای، ځکه له کوم رنګه تکلیفونو، پریشانیو او مصیبتونو سره چې هغه مخامخ وي او کوم چې د هغه مخته را روان وي هغه به له مرګ څخه ډیر تکلیف رسوونکي وي.
حضرت ابو هریرة رضي الله عنه بیان کوي چې نبي کریم ﷺ فرمایلي:
﴿ لَا تَقُومُ السَّاعَةُ حَتَّى يَمُرَّ الرَّجُلُ بِقَبْرِ الرَّجُلِ فَيَقُولُ يَا لَيْتَنِي مَكَانَهُ ﴾ (۱).
ژباړه: قیامت به تر هغه وخته رانشي تر څو چې داسې یو وخت نه وي راغلی چې یو سړی د یو چا له قبر سره په خوا کې تیریږي او داسې آرزو وکړي: کاشکې زه د دغه مړي په ځای په دغه قبر کې دفن وای.
حضرت عبد الله بن مسعود رضي الله عنه فرمايي: په تاسو به داسې یوه زمانه هم راشي که چیرته په تاسو کې کوم کس ته د مرګ اخستل پیدا کیږي نو هغه به یې د اخستلو لپاره تیار وي (۲).

---

۱ - صحيح البخاري، الفتن، حديث: ۷۱۱۵، وصحيح مسلم، الفتن، حديث: ۱۵۷، بعد الحديث ۲۹۰۷.
۲ - السنن الوارده فی الفتن للداني: ۳/ ۵۴۲.

دا حدیث له هغو احادیثو سره معارض نه دی په کومو کې چې د مرګ له تمنا څخه منع راغلې. لکه چې نبي کریم ﷺ فرمایلي: په تاسو کې هیڅوک د مصیبت راتلو په وخت کې باید د مرګ تمنا ونه کړي (۱).

نبي کریم ﷺ چې د کومو خبرو پیشنګویي کړې هغه به په آخره زمانه کې واقع کیږي. هغه د مرګ ښکاره دعا او تمنا نه ده، بلکه دا د یوه سړي له زړه څخه راوتونکی دا خواهش دی چې کاشکې: هغه له دې بدیو، فتنو، تکلیفونو او پریشانیو څخه یو قسم نجات پیدا کړی وای. اګر که د مرګ په ذریعه ولې نه وای.

دا هم ضروري نه ده چې د قیامت له راتګ سره به د مرګ دغه تمنا د هر مسلمان په زړه کې وي. بلکه دا به د مختلفو هیوادونو د حالاتو او واقعاتو مطابق وي، د خلکو ایماني حالت، په مصیبت باندې صبر او تحمل او د تکلیفونو برداشت کولو قوت به په هر وخت او هر ځای کې نه وي.

## «۵۱» داسې وخت به راشي چې یو سړی به سهار مسلمان وي او ماښام کافر

نبي کریم ﷺ خبر ورکړی چې د قیامت راتګ، د فتنو او خواهشاتو ډېروالی او د نیکو خلکو د کموالي له امله به حالات ډېر په تیزي سره بدلیږي. تذبذب او اختلاف به ښکاره شي، تر دې چې یو سړی به د سهار په وخت کې مؤمن وي او ماښام به کافر شي. یعنې په یوه حال به قرار نشي نیولای.

حضرت ابو هریرة رضي الله عنه بیان کوي چې رسول الله ﷺ فرمایلي:

---

(۱) صحیح البخاري، الدعوات، حدیث: ۲۳۵۱، وصحیح مسلم، الذکر والدعا، حدیث: ۲۶۸۰.

﴿بادروا باالاعمال فتنا كقطع الليل المظلم، يصبح الرجل مؤمنا ويمسى كافرا، او يمسى مؤمنا ويصبح كافرا، يبيع دينه بعرض من الدنيا﴾ (۱).

ژباړه:

د تورې شپې د ټوټو په څير د فتنو له راتګ څخه مخکې مخکې نيک اعمال وکړئ، يو سړی به د سهار په وخت کې مؤمن وي، مګر له ماښام کيدو د مخه به کافر شي، يا به د ماښام په وخت کې مؤمن وي. مګر له سهار کيدو د مخه به کافر شي، انسان به د يوې معمولي دنيوي فايدې په عوض کې ايمان خرڅوي.

د حديث معنا دا ده چې له دې وخت څخه مخکې مخکې. په کوم کې به چې د نيکو اعمالو تر سره کول ډير مشکل شي. نيک اعمال وکړه.

نبي کريم ﷺ د دغو فتنو د سنګينۍ او شدت احساس داسې بيان کړی چې يو سړی به د ماښام په وخت کې مؤمن وي او د سهار په وخت کې به کافر شي، يا به د سهار په وخت کې مؤمن وي د ماښام په وخت کې به کافر شي، دا فتنې به دومره غټې او دردناکې وي چې په يوه انسان کې به په يوه ورځ کې دومره لوی بدلون راځي (۲).

دا د هغې زمانې حال دی په کومه کې به چې د خلکو ايمان ډير کمزوری وي، د دين په باره کې به ډير شبهات وي. له دين څخه به قطعاً څوک خبر نه وي، د کوم له امله به چې دوی دين پريږدي يا به د کوم دنيوي مفاد او ذاتي مصلحت له امله د دين په باره کې به د هغه پښې لړزان پيدا کوي. زمونږ موجوده دور هم د همدې حديث مصداق دی.

---

۱ صحيح مسلم. الايمان. حديث: ۱۱۸.

۲. شرح مسلم للنووي.

## ﴿۵۲﴾ د مساجدو ارايش (ډول سينګار) او پر هغه فخر كول

مسجد په اصل كې د عبادت لپاره وي او د الله تعالى كور دى، مسلمانان يې د الله تعالى څخه د اجر او ثواب حاصلولو په نيت جوړوي، مګر په آخره زمانه كې به يو شمير خلك جوماتونه جوړوي او هغه به په نقش او نګار سره ښايسته كوي. هر څوك به د خپل جومات په نقش، نګار او ښايست باندې فخر كوي، په دې سره به د لمونځ كونكو زړونه له عبادت څخه اوړي او هغه ته به متوجه كيږي. حضرت انس ﷺ بيان كوي چې رسول الله ﷺ فرمايلي:

﴿لاتقوم الساعة حتى يتباهى الناس في المساجد﴾ (۱).

ژباړه:

تر هغه وخته به قيامت برپا نشي تر څو چې خلك پر مساجدو (جوماتونو) فخر ونه كړي.

ډيرو صحابه كرامو رضى الله عنهم امت له دې امر څخه خبر كړى چې هيڅكله بايد له ذكر، عبادت او له الهي اطاعت څخه توجه وا نه اړه وي او د مساجدو (جوماتونو) په عمده عمده تعميرونو، د هغو په تزيين او ارايش كې مشغول نشي، حضرت عبد الله بن عباس ﷺ فرمايي:

﴿ لتزخرفنها كما زخرفت اليهود والنصارى﴾ (۲).

ژباړه: تاسو هم د مساجدو (جوماتونو) داسې ارايش او زيبايش كوئ لكه څنګه چې يهود او نصارى د خپلو عبادت ځايونو ارايش كوي.

امام بغوي رحمه الله فرمايي:

---

[۱] - سنن ابى داؤد، الصلوة، حديث: ۴۴۹، وسنن النسائي، المساجد، حديث: ۶۸۰، وسنن ابن ماجه، المساجد والجماعات، حديث: ۷۲۹، وسنده صحيح.

[۲] - سنن ابى داؤد، الصلوة، حديث ۴۴۸، وصحيح البخاري، الصلوة، قبل الحديث: ۴۴۲.

د (تشييد) معنا ده د عمارت پورته کول او لوړول. يهودو او نصارى ؤ هغه وخت خپل عبادت ځايونه په نقش او نګار مزين او ښايسته کړل کله چې دوى په خپلو کتابونو کې تحريف وکړ (۱).

امام خطابي رحمه الله فرمايلي:

يهودو او نصارى ؤ هغه وخت خپل عبادت ځايونه او کليساوې نقش او نګار کړې کله چې دوى آسماني دين تحريف او بدل کړ، کله چې هغوى دين ضايع کړ نو خپله ټوله توجه يې تزيين او ارايش ته کړه (۲).

په ننني عصر کې د مساجدو د نقش او نګار څو انځورونه:

ديوالونه په مختلفو رنګونو رنګول. بيا پرې د مختلفو منظرو جوړول. د رنګا رنګ قيمتي قالينو غوړول، په چت کې د رنګا رنګ پړقيدونکو شيشو لګول. دا ارايشي اخراجات کله تر دې حده ورسيږي که مونږ دغه اخراجات سره را جمع کړو نو څو نور نوي جوماتونه پرې جوړيدلاى شي، مونږ دا نه وايو چې مساجد دې ښايسته نه وي، د هغوى فرش دې ښه نه وي، يا دا چې د مسجد تعمير دې کمزورى وي. بلکه کوم شى چې منعه ده هغه يواځې د مساجدو په تزيين او ارايش کې له مبالغې او اسراف څخه کار اخستل دي، حضرت ابو الدرداء رضي الله عنه فرمايي:

کله چې تاسو د مساجدو په تزيين او ارايش کې مبالغه کوى او د قرآن کريم په نسخو باندې نقش او نګار کوى نو د ستاسو بربادي هيڅوک نشي منعه کولاى (۳).

---

[1] - فتح الباري شرح صحيح البخاري: ۱/ ۲۹۹.

[2] - عمدة القاري شرح صحيح البخاري: ۴/ ۳۰۳.

[3] - المصاحف لابن ابى داؤد: ۲/ ۱۱۰. وصحيح الجامع الصغير للالباني: ۱/ ۱۲۲، حديث: ۵۸۵.

## ﴿۵۳﴾ د کورونو تزیین او ارایش

عیش، اسراف، فخر او تکبر د بدۍ ور دي، الله تعالی ﷻ فرمایي:

﴿وَلَا تُسْرِفُوْا ۚ اِنَّهٗ لَا يُحِبُّ الْمُسْرِفِيْنَ ﴾ (۱).

ژباړه:

اسراف مه کوئ، الله تعالی اسراف کونکي نه خوښوي.

په آخره زمانه کې به خلک د خپلو کورونو په دیوالونو باندې ډېرې قیمتي او ښایسته پردې را ځړوي او پر هغوی به فخر کوي.

له حضرت ابو هريرة رضي الله عنه څخه روایت دی چې رسول الله ﷺ فرمایلي:

﴿لا تقوم الساعة حتى يبين الناس بيوتا يوشونها وشي المراحيل﴾ (۲).

ژباړه: تر هغه وخته به قیامت.را نشي تر څو چې خلک په منقش او ښایسته ځادرونو کورونه ښایسته نه کړي.

د حدیث معنا دا ده چې کورونه به د کپړې په څیر منقش او ښایسته جوړ کړی شي، د دې دا معنا هیڅکله نه ده چې په کورونو کې د پردو لګول حرام دي، بلکه حرام دا دي چې په دې کار کې له اسراف او تبذیر څخه کار واخستل شي او بیا پرې فخر وکړل شي.

## ﴿۵۴﴾ په کثرت سره د تندرونو غورځیدل

د قیامت له نښانو څخه دا هم ده چې خلک به د تندرونو له امله په ډېر شمیر کې د مرګ ښکار شي، له حضرت ابو سعید خدري رضي الله عنه څخه روایت دی چې رسول الله ﷺ فرمایلي:

﴿تكثر الصواعق عند اقتراب الساعة حتى يأتي الرجل القوم فيقول من صعق تلكم الغداة فيقولون صعق فلان وفلان﴾ (۱).

---

[1] - الانعام، آية: ۱۴۱.

[2] - الادب المفرد للبخاري: ۲/ ۴۱۲، وسلسلة الاحاديث الصحيحة: ۱/ ۵۰۲، حديث ۲۷۹.

ژباړه: د قیامت راتلو په وخت کې به تندرونه په کثرت سره را لوېږي، تر دې چې یو سړی به کوم قوم ته ورشي او دا پوښتنه به کوي: نن په تاسو کې څوک څوک د اسماني بجلۍ (تندر) ښکار شوي او مړه شوي؟ هغه به ورته ووایي: فلانکی او فلانکی سړی نن د اسماني بجلۍ (تندر) ښکار شوي او مړه شوي دي.

(صاعقة) هغې آسماني بجلۍ (تندر) ته ویل کیږي کومه چې په ډېر درز او له رڼا سره له آسمان څخه را غورځیږي. الله تعالی د ثمودیانو قوم په همدې سره هلاک کړ، الله تعالی ﷻ فرمایي:

﴿وَأَمَّا ثَمُودُ فَهَدَيْنَاهُمْ فَاسْتَحَبُّوا الْعَمَىٰ عَلَى الْهُدَىٰ فَأَخَذَتْهُمْ صَاعِقَةُ الْعَذَابِ الْهُونِ بِمَا كَانُوا يَكْسِبُونَ﴾ (۲).

ژباړه:

او هر چې ثمودیانو وو پس سمه لیار مو وښودله دوی ته (په لیږلو د رسولانو سره) پس غوره کړ دوی ړوند والی (ضلالت) پر هدایت (او راهنمائي) پس ونیول دوی لره چیغې (د جبریل) او عذاب سپکوونکي په سبب د هغه (شرک او عصیان) چې وو دوی چې کول به یې (چې تکذیب د صالح وو).

همدا شان الله تعالی ﷻ فرمایي:

﴿فَإِنْ أَعْرَضُوا فَقُلْ أَنذَرْتُكُمْ صَاعِقَةً مِّثْلَ صَاعِقَةِ عَادٍ وَثَمُودَ﴾ (۳).

ژباړه: پس که چیرته مخ وګرځاوه (دغو کفارو له حقه) پس ووایه (اې محمده دوی ته) چې ویروم زه تاسې له سخت عذابه په مثل د سخت عذاب د عادیانو (لکه باد د صرصه) او ثمودیانو (لکه چیغه د جبریل).

---

[1] - مسند احمد: ۳/ ۲۴. وفیه محمد بن مصعب ضعیف.

[2] - فصلت، آیة: ۱۷.

[3] - فصلت. آیة: ۱۳.

د دغه درز د قوت او شدت یادونه الله تعالی په (صاغیه) لفظ سره هم کړې، الله تعالی ﷻ فرمایي:

﴿فَأَمَّا ثَمُودُ فَأُهْلِكُوا بِالطَّاغِيَةِ ۝﴾ (١).

ژباړه: پس هر څه چې ثمودیانو وو نو هلاک کړی شول (هغوی) په سخت آواز د (جبریل یا په سبب د سرکشۍ خپلې).

## (۵۵) د کتابت ډیروالی او خپریدل

په پخوانیو زمانو کې کتابت او د کتابونو نشر او اشاعت نه وو، د خلکو اکثریت د ویلو او لیکلو له صلاحیت څخه محروم وو، نبي کریم ﷺ په هغه زمانه کې خبر ورکړی چې د قیامت له نښانو څخه دا هم ده چې قلم، کتابونه او کتابت به ډیر شي، حضرت ابو هریرة ؓ بیان کوي چې رسول الله ﷺ فرمایلي:

﴿ان بین یدي الساعة تسلیم الخاصة وفشو التجارة ختی تعین المرأة زوجها علی التجارة وقطع الأرحام وشهادة الزور وکتمان شهادة الحق وظهور القلم﴾ (٢).

ژباړه: له قیامت څخه د مخه به یو داسې وخت راشي چې یواځې خاصو خلکو ته به سلام کیږي، تجارت به ډیر زیات شي حتی چې ښځه به له خپل میړه سره په تجارت کې د هغه مرسته کوونکې وي، قطع د صله رحمي به راشي. د دروغو ګواهي به ورکول کیږي. رښتوني ګواهي به پټیږي او قلم به ظاهر شي.

د نبي کریم ﷺ په الفاظو کې له ( ظهور القلم) څخه شاید مراد دا وي چې کتابت او کتابونه به ډیر شي او په ډیره وسیع پیمانه به یې نشر او اشاعت کیږي. حتی چې د طباعت. تصویر سازي او د نشر او اشاعت د اسبابو د ډیر

---

[1] - الحاقة، آیة: ٥.

[2] - مسند احمد: ٤٠٧/١. وحسنه الشیخ الارنؤوط فی تحقیقه علی المسند

والي له امله به خلک په اساني سره هغو ته رسيدلای شي. مګر د دې هر څه با وجود به خلک د شريعت په امورو او په ديني مسايلو پوره خبر نه وي.

د دې خبرې تاييد له دې حديث مبارک څخه هم کيږي کوم چې حضرت انس ﷺ له نبي کريم ﷺ څخه بيان کړی. رسول الله ﷺ فرمايلي:

﴿إنّ مِنْ أَشْرَاطِ السَّاعَةِ أَنْ يُرْفَعَ الْعِلْمُ وَيَظْهَرَ الْجَهْلُ وَيُشْرَبَ الْخَمْرُ وَيَظْهَرَ الزِّنَا وَيَقِلَّ الرِّجَالُ وَيَكْثُرَ النِّسَاءُ حَتَّى يَكُونَ لِلْخَمْسِينَ امْرَأَةً الْقَيِّمُ الْوَاحِدُ﴾ (۱).

ژباړه:

د قيامت له نښانو څخه دا هم ده چې علم به پورته شي، جهالت به خپور شي، زنا به عامه شي، شراب به څښل کيږي، سړي به کم شي، ښځې به زياتې شي تر دې چې د پنځوسو ښځو لپاره به يو اځې يو نګران وي.

[1] صحيح البخاري. الحدود. حديث: ۲۸۰۸. وصحيح مسلم. العلم. حديث: ۲۲۷۱. واللفظ له.

## ﴿۵۶﴾ په ژبه مال ګټل او په خبرو باندې فخر کول

سره له دې چې په روا طریقو د مال ګټل یا په شرعي طریقو د دنیا په تر لاسه کولو کې کومه د عیب خبره نشته. د مال ګټلو دا طریقه هم شرعي ده چې یو انسان د بیان. خبرو او دلیل په ذریعه روزي وګټي. لکه څنګه یې چې وکیلان. استاذان او نور ګټي. ځکه چې د دغو حضراتو د روزي زبات اعتماد د دوی په خبرو باندې وي.

په دې سلسله کې چې کوم شی مذموم دی هغه دا دی چې یو سړی په ناروا او دروغو سره دنیا ترلاسه کړي، یا د خرید او پروخت په وخت کې د دروغو قسمونه خوري. یا د نا سم بیان په کولو سره خپل مال خرڅوي. په همدې طریقه د ژبې ناروا استعمال ټولې طریقې ممنوع او ناروا دي.

د عمر بن سعد له خپل پلار حضرت سعد بن ابی وقاص رضي الله عنه سره څه کار وو. دی د خپل پلار په خدمت کې حاضر شو. مګر د خپل مقصد له بیانولو د مخه هغه له فصاحت او بلاغت ډکه خالي په داسې خبرو پیل وکړ لکه څرنګه یې چې خلک د خپل مقصد د ترلاسه کولو لپاره کوي، حضرت سعد بن ابی وقاص له دې د مخه له هغه څخه کله هم داسې خبرې نه وې آوریدلې. زوی چې کله خپلې خبرې خلاصې کړې نو حضرت سعد رضي الله عنه ورته وویل: ښه زویه! تا خپلې خبرې خلاصې کړې؟ هغه ورته وویل: هو. ما چې کوم عرض وکړ، هغه غواړم. حضرت سعد رضي الله عنه ورته وویل: کله چې ما د ستا دا خبرې واوریدلې نو ته له خپل مقصد څخه ډېر لیرې شوې: او زه له تا څخه داسې متنفر شوم چې له دې د مخه کله نه ووم لکه څنګه چې اوس شوم. ما له نبي کریم صلی الله علیه وسلم څخه دا اوریدلي چې ونیل یې

﴿لا تقوم الساعة حتى يخرج قوم يأكلون بألسنتهم كما يأكل البقر بألسنتها﴾ (۱).

---

۱- مسند احمد: ۱/ ۱۸۴.

ژباړه : قیامت به تر هغه وخته قایم نشي تر څو چې یو داسې قوم پیدا نشي کوم به چې په خپلو ژبو باندې داسې خوړل کوي لکه څنګه چې بقر (غوا) په خپلې ژبې سره له زمکې خوړل کوي.

حضرت عبد الله بن عمر ﷺ بیان کوي چې رسول الله ﷺ فرمایلي :

﴿من اقترب الساعة ان ترفع الاشرار وتوضع الاخيار ويفتح القول ويخزن العمل ويقرء بالقوم المثناة، ليس فيهم احد ينكرها، قيل : ومالمثناة؟ قال : ما اكتتبت سوى كتاب الله﴾ (۱).

ژباړه : د قیامت له نښانو څخه دا هم ده چې بد خلک به را ښکاره شي. ښه خلک به پس پاتې شي، خبرې به زیاتې شي، عمل به ورک شي، یعنې عمل به نه وي او خلک به مثناة لولي او هیڅوک به دا بد نه ګڼي، پوښتنه وشوه : مثناة څه شی دی؟ ورته وې ویل : هر هغه څه چې د الله تعالی له کتاب څخه پرته لیکل شوي وي.

## ﴿۵۷﴾ له قران پرته د نورو کتابونو په کثرت سره خپریدل

دا هم د قیامت له نښانو څخه ده چې په خلکو کې به د خدای تعالی له کتاب پرته د نورو کتابونو خریداري زیاته شي. کوم چې په مکتبو کې تیاریږي، خپریږي او خرڅیږي.

د دې خبرې تایید مخکنی حدیث هم کوي، په هغه کې دا خبره د توجه وړ ده چې خلک به مثناة لولي. پوښتنه وشوه : چې مثناة څه شی دی؟ ورته وویل شول : هر هغه څه چې د الله تعالی له کتاب پرته لیکل شوي وي.

---

۱ - المستدرک للحاکم: ۴/ ۵۴۴.

## ﴿۵۸﴾ د قاریانو ډیروالی، د فقهاؤ او علماؤ کموالی

نبي کریم ﷺ خبر ورکړی چې د قیامت له نښانو څخه دا هم ده چې د قاریانو شمیر به زیات شي او د شریعت علماء به کم شي. حضرت ابو هریرة رضي الله عنه بیان کوي چې رسول الله ﷺ فرمایلي:

﴿سیاتی علی امتی زمان تکثر فیه القراء وتقل الفقهاء ویقبض العلم ویکثر الهرج، قال : وماالهرج؟ قال : القتل بینکم، ثم یاتی بعد ذلک زمان یقرء القرآن رجال لایجاوز تراقیهم، ثم یاتی بعد ذلک زمان یجادل المنافقون الکافر المشرک بالله المؤمن بمثل ما یقول﴾ (۱).

ژباړه: یوه زمانه به داسې راشي په کومه کې به چې قاریان زیات شي او فقهاء به کم شي. علم به پورته شي او هرج به ډیر شي، پوښتنه وشوه یا رسول الله! دا هرج څه شی دی؟ هغه ﷺ وفرمایل: د ستاسو تر مینځ د وینو تویول. بیا به له دې وروسته یو داسې وخت راشي چې یو شمیر خلک خو به قرآن لولي مګر قرآن به د هغوی له ستوني ښکته نه کوزیږي. بیا به بله یوه داسې زمانه راشي کله چې یو منافق، کافر او مشرک له مؤمن سره بحث او جدال کوي نو به د مؤمن خبرو ته هماغه شان ځواب ورکوي څنګه یې چې ورته وایي.

معامله په هغه وخت کې ډیره خرابیږي کله چې له دنیا څخه د علماؤ په تلو سره علم رخصت شي. هر کله چې کوم رباني عالم بچ پاتې نشي نو به خلک جاهلان خپل پیشوایان جوړ کړي. له هغوی څخه چې کله د دیني مسایلو پوښتنه کوي نو هغوی به له علم پرته فتوا ورکوي. چې په دې سره هغوی په خپله هم ګمراهان کیږي او نور خلک هم ګمراه کوي.

۱. المستدرک للحاکم: ۴/ ۴۵۷.

د حضرت عبد الله بن عمر ﷺ بیان دی چې رسول الله ﷺ فرمایلي:
﴿إِنَّ اللَّهَ لَا يَقْبِضُ الْعِلْمَ انْتِزَاعًا يَنْتَزِعُهُ مِنْ الْعِبَادِ وَلَكِنْ يَقْبِضُ الْعِلْمَ بِقَبْضِ الْعُلَمَاءِ حَتَّى إِذَا لَمْ يُبْقِ عَالِمًا اتَّخَذَ النَّاسُ رُءُوسًا جُهَّالًا فَسُئِلُوا فَأَفْتَوْا بِغَيْرِ عِلْمٍ فَضَلُّوا وَأَضَلُّوا﴾ (۱).

ژباړه:

الله تعالی یو نا څاپه علم نه پورته کوي چې له خلکو څخه یې واخلي. بلکه علم د علماؤ د وفات له امله ختمیږي، تر دې چې کله په دنیا کې کوم عالم ژوندی پاتې نشي نو خلک به جاهلان خپل پیشوایان جوړ کړي. له هغوی څخه چې کله د دیني مسایلو پوښتنه وکړي نو هغوی به پرته له علمه دوی ته فتوا ورکوي، چې په دې سره دوی په خپله هم ګمراه کیږي او نور خلک هم ګمراه کوي.

په مخکني حدیث کې د علم د پورته کیدا چې کوم ذکر شوی د هغه مطلب دا نه دی چې دفعتاً به د خلکو له سینو څخه علم پورته کړی شي او علم به له دنیا څخه ورک شي، بلکه مطلب یې دا دی چې د علم حاملین به کرار کرار له دنیا څخه ولاړ شي او خلک به د هغوی پر ځای جاهلان خپل مفتیان جوړ کړي. هغوی به د خپل جهالت په بنیاد فیصلې کوي. هغه به په خپله هم ګمراه کیږي او نور خلک به هم ګمراه کوي. په تیرو لسو کلونو کې د امت مسلمه ډیر داسې علماء کرام وفات شوي کومو چې خلکو ته د دین په ور ښودلو کې لوی کردار اداء کاوه. شیخ عبد العزیز بن عبد الله بن باز (رئیس علماء کبار کونسل سعودي عرب) په سنه (۱۴۲۰ هجري مطابق ۱۹۹۹عیسوي) کې وفات شو. په همدغه کال کې محدث علامه محمد ناصر الدین الباني هم په سنه (۱۴۲۰ هجري مطابق ۱۹۹۹ عیسوي) کې

---
۱- صحیح البخاری، العلم، حدیث: ۱۰۰. وصحیح مسلم. العلم. حدیث: ۲۶۷۳.

وفات شو او شيخ علامه محمد بن صالح العثيمين په سنه (۱۴۲۱ هجري مطابق ۲۰۰۰ عيسوي) کې له دې فاني دنيا څخه رخصت شو. له دې پرته په همدې لسو کلونو کې د امت مسلمه نور ډير جليل القدر علماؤ له دې فاني دنيا څخه سترګې پټې کړې.

که يو څوک نن ورځ د امت مسلمه په حال غور وکړي نو وبه ګوري چې ډير شمير خلک د قرآن مجيد تلاوت په ډير ښه آواز کې کوي، په دغه ترتيل او زړه راښکونکي تلاوت کولو کې له يوه بل څخه د مخته کيدا په کوشش کې دي. ليکن د شرعي علم طلب او د ديني احکامو د زده کولو سلسله دريدلې، که چيرته په دغو قاريانو کې له کوم يوه څخه د سجدې سهوې په باره کې پوښتنه وکړی شي نو هغوی پرې هيڅ علم نلري.

## ﴿۵۹﴾ له کم علمه (وړو) خلکو څخه د علم حاصلول

د نبوت په زمانه کې به خلکو له لويو لويو علماؤ او فقهاؤ څخه علم حاصله وو. مګر داسې يو وخت به راشي چې کم فهمه، کم علمه او واړه خلک به په دغه منصب باندې قبضه وکړي. خلک به له دوی څخه فتوا غواړي او دوی به فتوا ورکوي. په مخکني حديث کې تير شول چې د قيامت له نښانو څخه دا هم ده چې قاريان به زيات شي او علماء به کم شي، تر دې چې له وړو او جاهلو خلکو څخه به علم حاصليږي. هغوی به فتوا ګانې ورکوي. په خپله به هم ګمراه کيږي او نور به هم ګمراه کوي.

حضرت ابو اميه جمحي ﷺ بيان کوي چې رسول الله ﷺ فرمايلي:

﴿ان من اشراط الساعة ان يلتمس العلم عند الاصاغر﴾ (۱).

ژباړه: د قيامت له نښانو څخه دا هم ده چې له اصاغرو (وړو) خلکو څخه به علم حاصليږي.

---

کتاب الزهد لابن المبارک ۲۰. بسند صحيح

له امام عبد الله بن مبارک څخه پوښتنه وشوه: دا اصاغر څه شی دی؟ هغه ځواب ورکړ: دا هغه خلک دي کوم چې په خپله رایه فتوا ورکوي. یعنې چې د هغوی علم مضبوط نه وي او نه د فتوا په ورکولو کې تحقیق کوي او نه په شرعي دلایلو سره استدلال کوي. داسې هم ویل شوي چې له اصاغر څخه مراد اهل بدعت دي.

له حضرت عبد الله بن مسعود ﷺ څخه روایت دی:

خلک به تر هغه وخته په خیر وي تر څو چې دوی ته علم د صحابه کرامو او لویو علماء کرامو په ذریعه راځي. البته کله چې علم د وړو خلکو په ذریعه راتلل شروع کړي نو بیا خلک تباه او برباد کیږي (۱).

الحمد لله په دې وخت کې تر دا مهاله علم او اهل علم په خیریت کې دي، اګر که د فکر خاوندانو ته معلومه ده چې نن ورځ ابلاغي ذرایعو یو څو داسې واړه طالب العلمان ډېر فعال او مشهور کړي کوم چې د اسلام عمومي معلومات لري، یعنې یواځې مشهور مسایل یې زده وي. په اصل کې نه علماء او نه فقهاء وي، مګر مشهور وي او خلک له هغوی څخه فتواګانې غواړي او علم ترې حاصلوي، که چیرته د دوی پر ځای جید علماء کرام په ابلاغي ذرایعو، ستیلایټ چینلونو. راډیو او انټرنیټ باندې راشي او خلک دوی وپیژني نو بیا به خلک له دوی څخه فتوا غواړي او د دوی لور ته به متوجه شي.

دا خبره هم باید په پام کې ونیول شي چې ډېر عمر د ښه علمیت نښه نه ده او نه باید محض د کم عمر له امله یو چا ته جاهل وویل شي. علي بن مدیني رحمه الله وایي: علم د ډېر عمر نوم نه دی (۲).

---

[1] - کتاب الزهد لابن المبارک. حدیث: ۸۱۵.

[2] - طبقات الحنابلة: ۱/ ۲۲۷.

له حضرت عمر بن خطاب رضي الله عنه څخه دا قول نقل شوی : چې د علم تعلق له واړه یا لوی عمر سره نه دی. بلکه الله تعالی چې چا ته وغواړي هغه ته علم ورکوي (۱).

لهذا دا ضروري ده چې کوم خلک په ټولنه کې د عالم په صفت مشهور شي هغه باید خپل ځان له وړو خلکو څخه وباسي او د یوه لوی انسان جوړیدو کوشش وکړي، دا هغه وخت ممکنه ده کله چې هغه ډیر علم حاصل کړي. د کتاب او سنت فهم پیدا کړي. خپل علم پوخ کړي او له لویو علماء کرامو سره رابطه وکړي.

## ﴿۶۰﴾ د نا څاپي مرګونو ډیروالی

زمونږ په دې زمانه کې د قیامت چې کومې نښانې ښکاره شوې دي په هغوی کې یوه دا هم ده چې نا څاپي مرګونه ډیر شوي، یعنې داسې مرګونه کوم چې یو نا څاپه د زړه له دورې څخه منځته راځي، یا د وینې له بندیدو، د موټر د ټکر کیدو او جهاز (طیارې) له ښکته راغوځیدو څخه پېښیږي.

حضرت انس بن مالک رضي الله عنه بیان کوي چې رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمایلي :

﴿ان من اقترب الساعة ان یظهر موت الفجاة﴾ (۲).

د قیامت له نښانو څخه دا هم ده چې یو نا څاپه مرګونه به ډیر واقع کیږي.

په تیره زمانه کې به یوه انسان ځینې نښانې محسوس کولې او یو څه موده به ناجوړه وو او پوه به شو چې دا مرض الموت دی. نو وصیت به یې ولیکه. له خپل اهل او عیال سره به یې خدای په اماني وکړه. خپل اولاد ته به یې څه نصیحتونه وکړل، د خپل رب لور ته به یې رجوع وکړه. له هغه څخه به یې د ګناهونو معافي وغوښته او د کلمې طیبې ورد به یې شروع کړ تر دې چې د کلمې طیبې ویلو په وخت کې به مړ شو.

---

۱ المصنف لعبد الرزاق: ۱۱/ ۴۴۰، حدیث: ۲۰۹۴۲.

۲ المعجم للطبراني: ۲/ حدیث ۱۱۳۲

مګر په اوسنۍ زمانه کې مونږ وینو چې يو سړی روغ جوړ او صحتمند وي، هيڅ تکليف او نا جوړتيا نلري. ليکن يو نا څاپه د زړه دوره پرې راشي، يا يې په رګونو کې وينه بنده شي. يا ديته ورته د نورو حوادثو او عوارضو له امله مونږ د هغه د وفات خبر واورو. د يوه عقلمند انسان لپاره لازمه ده چې هر وخت بيدار او هوښيار و اوسي. له مرګ او الله تعالی سره د مخامخ کيدا لپاره تل د الله تعالی په اطاعت کې و اوسي.

اغتنم فی الفراغ فضل رکوع ۞ فعسی ان یکون موتک بغتة

کم من صحیح رائیت من غیر سقم ۞ ذهبت نفسه الصحیحة فلتة

د صحت او فراغت په وخت کې د الله تعالی په مخکې سر ښکته کول غنيمت وګڼه. ممکن ده چې د ستا مرګ يو نا څاپه راشي.

ما ډير صحتمند خلک ليدلي دي. چې پرته له کومې ناجوړتيا يو نا څاپه له دې فاني دنيا څخه تللي دي [۱].

## «۶۱» د بې وقوفو واکمني

د عامو خلکو اصلاح د هغوی د واکمنو تر اصلاح او د عامو خلکو بيکارتوب د هغوی د واکمنو تر بيکارتوب پورې اړه لري، نبي کريم ﷺ خبر ورکړی چې د قيامت له نښانو څخه دا هم ده چې حکومت او قيادت به د کم فهمو او بې وقوفو خلکو لاسته ورشي. کوم به چې نه د کتاب او سنت په رڼا کې ژوند تيروي او نه به د نورو نصيحت مني.

له حضرت جابر بن عبد الله رضي الله عنه څخه روايت دی چې رسول الله ﷺ خپل صحابي حضرت کعب بن عجره رضي الله عنه ته وفرمايل:

اې کعب! الله دې تا د بې وقوفو له واکمنې څخه وساتي. هغه عرض وکړ يا رسول الله! د بې وقوفو د واکمنې مطلب څه دی؟ نبي کريم ﷺ وفرمايل

---

[۱] - دا د امام بخاري رحمه الله اشعار دي. وګورئ هدي الساري مقدمة فتح الباري لابن حجر العسقلاني رحمه الله. ص: ۲۷۴. (سيف).

له ما وروسته به داسې واکمن وي کوم به چې زما له سنتو څخه رڼا نه حاصلوي او نه به زما په سنتو عمل کوي. کوم خلک چې د هغوی د دروغو تصديق وکړي او په ظلم او ستم کې له هغوی سره ملګري شي نه هغوی له ما څخه دي او نه زه له هغوی څخه يم او نه به زما حوض کوثر ته راځي. البته هغه خلک چې د هغوی د دروغو تصديق ونه کړي او په ظلم او ستم کې د هغوی ملګرتيا ونه کړي هغه له ما څخه دي او زه له هغوی څخه يم او دا خلک به زما حوض کوثر ته هم راځي.

اې کعب! روژه ډال دی. صدقه ګناهونه محوه کوي. لمونځ قرباني ده. يا نبي کريم ﷺ دا وفرمايل چې لمونځ دليل دی. اې کعب! هغه غوښه چې له حرامې غذا څخه پيدا شي هغه به جنت ته نه داخليږي. د هغې لپاره د جهنم اور ډير مناسب دی. اې کعب! خلک له کورونو څخه وځي او د خپل ځان سودا کوي. څوک خپل ځان له الهي عذاب څخه آزاد کړي او څوک يې په هلاکت او بربادۍ کې وغورځوي (١).

د (سفيه) معنا ده: داسې سړی کوم چې کم عقل او کم تدبيره وي، کوم خلک چې د نورو مسايل نه پيژني د خپل ځان مسايل به څنګه وپيژني، د (سفاهت) معنا ده: کم عقلي. په يوه بل حديث کې راغلي:

قيامت به تر هغه وخته قايم نشي تر څو چې د هرې قبيلې قيادت د منافقينو لاسته ور نشي.

له منافقينو څخه مراد څخه خلک دي د کومو چې ايمان کم وي. د الله تعالى له خوف او ويرې څخه خالي وي. په کثرت سره دروغ وايي او پوره جاهل وي.

هر کله چې د خلکو پادشاهان، قادين او ټولواکان همداسې خلک شي نو هر شی درهم برهم کيږي. د دروغو به تصديق او د رښتياوو به تکذيب

(١) مسند احمد: ٣/ ٣٢١، وصحيح ابن حبان: ١٠/ ٣٧٢.

کيږي. امانتونه به بد ديانتو ته سپارل کيږي او امانتدار ته به د شک په سترګه کتل کيږي. جاهل به خبرې کوي او عالم به په چپ کيناستلو باندې مجبوريږي.

امام شعبي رحمه الله فرمايي:

قيامت تر وختنه نه قايميږي تر څو چې علم جهل او جهل علم ونه ګڼل شي (۱).

د حقايقو بدلون او د ټولو معاملاتو درهم برهم کيدل دا ټول صورتحال به په آخره زمانه کې ښکاره شي. حضرت عبد الله بن عمرو رضي الله عنه بيان کوي چې رسول الله ﷺ فرمايلي:

﴿ان من اشراط الساعة ان يوضع الاخيار، ويرفع الاشرار﴾ (۲).

ژباړه: د قيامت له نښانو څخه دا هم ده چې ښه خلک به شاته کړل شي او بد خلک به مخته کړل شي.

## ﴿۶۲﴾ زمانې به نږدې شي

نبي کريم ﷺ خبر ورکړی چې د قيامت له نښانو څخه دا هم ده چې زمانې به نږدې شي، حضرت ابو هريرة رضي الله عنه بيان کوي چې نبي کريم ﷺ فرمايلي:

﴿يَتَقَارَبُ الزَّمَانُ وَيَنْقُصُ الْعَمَلُ وَيُلْقَى الشُّحُّ وَتَظْهَرُ الْفِتَنُ وَيَكْثُرُ الْهَرْجُ قَالُوا يا رَسُولَ اللَّهِ أَيُّمَ هُوَ قَالَ الْقَتْلُ الْقَتْلُ﴾ (۳).

ژباړه: زمانې به نږدې شي. عمل به کم شي. فتنې به ښکاره شي. د بخل او حرص دوره به شي. هرج به زيات شي. عرض يې وکړ: يا رسول الله! هرج څه شی دی؟ رسول الله ﷺ وفرمايل: قتل او خونريزي.

---

۱ مصنف لابن ابی شيبة: ۱۵ /۱۷۵. حديث: ۳۸۵۸۳.

۲ مصنف لابن ابی شيبة: ۱۵ /۳۸۵۴۵. وسلسلة الاحاديث الصحيحة ۲/ حديث ۲۸۲۱.

۳ صحيح البخاري، الفتن، حديث: ۷۰۶۱. وصحيح مسلم، العلم، حديث: ۱۵۷. عدد الحديث: ۲۶۷۲.

**د زمانې په نږدیوالي کې د علماء کرامو اقوال.**

(۱) له دې څخه مراد په زمانې کې د برکت کم والی دی. هغه په دې ډول چې د پخوا زمانې خلکو به چې کوم کار په یوه ساعت کې کاوه د وروسته زمانې خلک به هغه کار په څو ساعتونو کې هم نشي کولای.

حافظ ابن حجر رحمه الله فرمايي: دا صورتحال زمونږ په زمانه کې واقع شوی. مونږ وينو چې شپه او ورځ ډير په تيزي سره تيريږي او په پخوا زمانه کې داسې نه وو (۱).

(۲) د دې يو مطلب دا هم دی چې د زمانې اهل به د ابلاغي ذرايعو، د زميني او هوايي سپرليو د کثرت له امله له يوه بل سره نږدې شي.

(۳) د دې يوه معنا دا هم ده چې زمانه به په اصل حيقيت کې ډيره په تيزي سره تيريږي. څکه الله تعالی چې څنګه وغواړي شپې او ورځې اوږدولای او لنډولای شي. د دې تاييد له هغه حديث څخه هم کيږي په کوم کې د دجال زمانې د ورځو د اوږدوالي خبر ورکړل شوی دی چې هلته به يوه ورځ د کال برابره وي. دويمه به د مياشتې برابره وي او دريمه به د هفتې برابره وي. ورځې چې څنګه اوږديدلای شي همدا رنګه لنډيدلای هم شي. مګر دا نښانه تر دا مهاله نه ده ښکاره شوې.

حضرت ابو هريرة رضي الله عنه بيان کوي چې رسول الله صلی الله عليه وسلم فرمايلي

﴿لا تقوم الساعة حتى يتقارب الزمان فتكون السنة كالشهر والشهر كالجمعة تكون الجمعة كاليوم ويكون اليوم كالساعة وتكون الساعة كالضرمة بالنار﴾ (۲).

ژباړه: قيامت تر هغه وخته نه قايميږي تر څو چې زمانه قريبه نشي. په دې وخت کې به کال د يوې مياشتې برابر وي. مياشت به د جمعې برابره وي. جمعه

---

[1] فتح الباري شرح صحيح الباري: ۱۳/ ۲۲.

[2] جامع الترمذي. الزهد. حديث: ۲۳۳۲. و مسند احمد: ۲/ ۵۳۸.

به د ورځې برابره وي. ورځ به د يوه ساعت برابره وي او يو ساعت به داسې وي لکه د اور شغله چې بله شي او مړه شي.

(۴) په تقارب زمان کې يو قول دا هم دی چې له دې څخه مراد د انسان د عمر کم والی دی. يعني له قيامت سره په نږدې زمانه کې به د پخوانيو زمانو په خلاف عمرونه به ډير کم وي.

## ﴿۶۳﴾ کم عقل خلک به د نورو ترجماني کوي

د ترجماني په سلسله کې اصول دا دي چې يو عقلمند، دانا او فصيح سړی به ترجمان وي. ليکن د قيامت له راتلو د مخه به يوه داسې زمانه راشي په کومه کې به چې خلک خراب شي او د هغوی ترجمانان به کم عقل او بيکاره خلک وي. حضرت ابو هريرة ﷺ بيان کوي چې نبي کريم ﷺ فرمايلي:

﴿انها ستأتي على الناس سنون خداعة يصدق فيها الكاذب ويكذب فيها الصادق ويؤتمن فيها الخائن ويخون فيها الأمين وينطق فيها الرويبضة قيل وما الرويبضة قال السفيه يتكلم في أمر العامة﴾ (۱).

ژباړه:

په خلکو به يو څه دوکه کونکي (چل کونکي) کلونه راشي. په دې کې به دروغ رښتيا ګڼل کيږي. رښتيا به دروغ ګڼل کيږي. په خاين به د امانتدار ګمان کيږي، په امانتدار به د خاين شک کيږي او د خلکو په معاملاتو کې به رويبضة خبرې کوي. عرض وشو يا رسول الله! رويبضة څه شی دی؟ رسول الله ﷺ وفرمايل: بې وقوف انسان کوم به چې د عامو خلکو په معاملاتو کې خبرې کوي.

---

(۱) مسند احمد: ۲۹۱/۲، و سلسلة الاحاديث الصحيحة: ۴ ۵۰۸، حديث: ۱۸۸۷.

دا نښانې زمونږ په دور کې ښکاره او عامې شوې دي. ځکه چې په ټولنه کې بیکاره خلک له بهترینو خلکو څخه ډیر معزز دي او د عامو خلکو د معاملاتو واک د بیکاره خلکو لاسته ورغلی دی.

واجب ده چې اهل علم، عقلمند او تجربه کار خلک د خلکو په معاملاتو او سیاست کې مخته کړی شي. کوم سړی چې نن ورځ د خلکو په حالاتو غور وکړي نو وبه ویني چې خلک د خپلو خواهشاتو او مصلحتونو لور ته مایل دي. اګر که په هغه کې د دوی دین او ایمان ضایع ولې نشي. همدا وجه ده چې دوی فساق او فجار خپل قائدین او راهنما جوړ کړیدي.

## ﴿۶۴﴾ احمق او جاهل به له ټولو زیات خوشحال وي

د قیامت له نښانو څخه دا هم ده چې یوه داسې زمانه به راشي په کومه کې به چې رښتیا دروغ او دروغ به رښتیا ګڼل کیږي، په خاین به د امانتدار ګمان کیږي، په امانتدار به د خاین شک کیږي، د خلکو قیادت به بې وقوف انسان کوي او ټولې ذمه وارۍ به نا اهلو ته وسپارل شي.

له حضرت انس بن مالک ﷛ څخه روایت دی چې رسول الله ﷺ فرمایلي:

﴿لاتقوم الساعة حتى يكون أسعد الناس بالدنيا لكع ابن لكع﴾ (۱).

ژباړه:

قیامت تر هغه وخته نه راځي تر څو چې امیر ترین سړی هغه څوک جوړ نشي کوم چې احمق ابن احمق او جاهل ابن جاهل نه وي.

نبي کریم ﷺ دا هم فرمایلي:

﴿يوشك ان يغلب على الدنيا لكع بن لكع﴾ (۲).

ژباړه: نږدې ده چې په دنیا باندې جاهل او احمقان غلبه وکړي.

نبي کریم ﷺ دا هم فرمایلي:

---

[۱] - جامع الترمذي، الفتن، حديث: ۲۲۰۹. وصححه الالباني.

[۲] - مسند احمد: ۵/ ۳۴۰.

﴿لاتذهب الدنيا حتى تصير للكع ابن لكع﴾ (۱).

ژباړه:

دنیا نه ختمیږي ترڅو چې دا ټولنه د احمقو خلکو په ملکیت کې نشي

لکع ابن لکع: دا هغه څوک دي چې د بد اخلاقي له امله هیڅوک د هغه صفت نه کوي، د عربو په نزد یې معنا ده بد غلام. د لکع لفظ په حماقت او جهالت کې استعمالیږي او په عربي ژبه کې سړي ته لکع او ښځې ته لکاع ویل کیږي.

د قرب قیامت په زمانه کې به داسې خلک تر ټولو ډیر زیات خوشحال وي، له هغوی سره به ډیر مال، موټرې او لوی لوی (وسیع) کورونه وي، له هغوی سره به دومره ډیر دولت له دې امله وي چې دوی به تر ټولو ډیر احمق او جاهلان وي او په هره روا او ناروا طریقه به مال ګټي او جمعه کوي، دوی به د خلکو د خواهشاتو مطابق له هغوی سره معاملې کوي او دنیا (پیسې) به ګټي.

## ﴿۶۵﴾ مساجد (جوماتونه) به د لارو په څیر استعمالیږي

د دې معنا دا ده چې یو سړی به له یوه لوري څخه بل لوري ته مسجد (جومات) د لارې په توګه استعمالوي، د هغه تعلق به له لمانځه او جومات سره نه وي، یعنې په آخره زمانه کې به جوماتونه له لمانځه څخه زیات د لارو په توګه استعمالیږي.

---

۱- مسند احمد: ۲/ ۳۵۸.

## ﴿۶۶﴾ ﴿۶۷﴾ په حق مهر او د اسونو په قیمت کې به لومړی ډیر زیاتوالی او بیا به ډیر کم والی راشي

خارجه بن صلت برجمي ویلي:

زه او حضرت عبد الله بن مسعود ﷺ یو ځای د هغه له کور څخه ووتلو کله چې خلک د رکوع په حالت کې وو. مونږ په لیرې فاصله کې د رکوع په حالت کې وو او په دې حالت کې ولاړو او په صف کې ودریدو. کله چې له لمانځه څخه فارغ شوو نو یو سړی راغی او وې ویل: اې ابو عبد الرحمن! په تا سلام. حضرت عبد الله بن مسعود ﷺ وویل: الله اکبر! الله او د هغه رسول ربښتیا ویلي. ما د لمانځه له اداء کولو وروسته ورته وویل: ابو عبد الرحمن! آیا د هغه سړي سلام ته پریشانه کړې؟ هغه راته وویل: هو، د نبي کریم ﷺ په زمانه کې دا ویل کیدل چې د قیامت له نښانو څخه دا هم ده چې له مساجدو (جوماتونو) څخه به ګزرګاه جوړه کړی شي، یو انسان به یو اخې شناخته سړي ته سلام کوي. ښځه او سړی به یو ځای تجارت کوي، د ښځو حق مهر او د آسونو قیمت به اول ډیر زیات شي، بیا به ډیر کم شي او له دې وروسته به بیا بیخي زیات نشي (۱).

## ﴿۶۸﴾ د بازارونو نږدې والی

نبي کریم ﷺ زمونږ له دغې زمانې څخه خبر ورکړی چې په دې زمانه کې به مسافې نږدې شي. نن صبا له یوه مارکیټ څخه بل ته تګ ډیر آسان او په ډیر کم وخت کې ممکن دي. یو انسان په ډیر کم وخت کې په مختلفو عالمي منډیانو کې ګرځیدلای شي او د مارکیټونو او منډیانو نرخ معلومولای شي. دا ټول له دې امله ممکن دي چې په زمکه کې اوسیدونکو خلکو ته تیز ترین د حمل او نقل وسایل میسر دي. هغوی د موټرو، ریل ګاډو او د هوائي جهازونو (طیارو) له امله له یوه بل سره ډیر

(۱) المستدرک للحاکم: ۴/ ۵۲۴.

نږدې دي. همدا شان د ابلاغي مواصلاتو لکه تليفون، ټي وي چينلونه او انټرنيټ وغيره هم د دوی په نزديکت کې مهم کردار اداء کړی.
حضرت ابو هريرة رضي الله عنه بيان کوي چې رسول الله ﷺ فرمايلي:
﴿لاتقوم الساعة حتى تظهر الفتن ويكثر الكذب ويتقارب الاسواق﴾ (۱).
ژباړه: قيامت تر هغه وخته نه قايميږي تر څو چې فتنې ظاهرې نشي، دروغ زيات نشي او بازارونه په خپل مينځ کې سره نږدې نشي.
د بازارونو د نږدې والي درې ممکن صورتونه دي:
✿ اول صورت: دا دی چې په مارکيټونو کې به د نرخ په کم والي يا ډير والي خلک ډير زر خبريږي.
✿ دويم صورت: دا دی چې له يوه مارکيټ څخه به بل مارکيټ ته خلک ډير زر رسيږي، اګر که تر مينځ يې مسافه ډيره ولې نه وي.
✿ دريم صورت: دا دی چې په مختلفو مارکيټونو کې به د شيانو نرخونه يو شانته وي او د نرخونو په کم والي او زيات والي کې به په يوه او بل پسې اقتداء کوي، والله اعلم.
امام العصر علامه ابن باز رحمه الله د حضرت ابو هريرة رضي الله عنه په حديث کې د مذکور تقارب تشريح داسې کړې:
په حديث کې چې د کوم تقارب ذکر شوی د هغه مناسبه تشريح دا ده چې په موجوده عصر کې د هوائي جهازونو (طيارو) موټرو او د مواصلاتي ذرايعو په سبب د ښارونو او ملکونو (هيوادونو) فاصله کمه شوې او هغوی له يوه بل سره ډير نږدې شوي دي.

---
۱- مسند احمد: ۲/ ۵۱۹. وسلسلة الاحاديث الصحيحة: ۲/ ۲۳۹. حديث: ۲۷۷۲.

## ﴿۶۹﴾ د عالمي قومونو لخوا په اسلامي امت یرغل

د قیامت هغه نښانې کومې چې په آخره زمانه کې ظاهریدونکې دي. له هغوی څخه یوه دا هم ده چې عالمي قومونه به په اسلامي امت یرغلونه وکړي. لیکن الله تعالی به د دغه امت حفاظت په خپله وکړي.

د تاریخ لوستونکو ته معلومه ده چې اسلامي امت لوی دردناک جنګونه کړي دي، په پخوانیو زمانو کې پر هغوی د مصائبو بارانونه شوي دي، مګر الله تعالی په هره موقع د هغوی حفاظت کړی. عیسایان سره جمع شوي او د مسلمانانو په مقابل کې یې د صلیبي جنګونو بازار ګرم کړی، لیکن الله تعالی د اسلامي امت مرسته کړې او عیسایانو ته یې اجتماعي شکست ورکړی. بیا تاتار یانو په اسلامي هیوادونو یرغل کړی، مګر الله تعالی د هغوی مکر هم چپه کړی. په دې موجوده زمانه کې یهود او عیسایان سره یو شوي دي او اسلامي امت ته د نقصان رسولو په کوشش کې مصروف دي. مګر مونږ د الله تعالی له دربار څخه قوي امید لرو چې مسلمانان به د یهودو او عیسایانو دین ته نه ورمایل کیږي، بلکه مسلمانانو ته به دا ځل هم الله فتح او نصرت ور په برخه کوي. الله تعالی ﷻ فرمایي:

﴿وَلَيَنصُرَنَّ اللَّهُ مَن يَنصُرُهُ ۗ إِنَّ اللَّهَ لَقَوِيٌّ عَزِيزٌ ﴾ (۱).

ژباړه: او خامخا مرسته به وکړي هرو مرو الله له هغه چا سره چې مرسته ورکوي دین د دغه (الله) ته: بیشکه چې الله خامخا قوي (د خپلو احکامو په تنیذ کې) ډیر زور والا دی (په هر چا) (دغه مهاجر مظلومان).

همدا شان الله تعالی ﷻ فرمایي:

﴿كَتَبَ اللَّهُ لَأَغْلِبَنَّ أَنَا وَرُسُلِي ۚ إِنَّ اللَّهَ قَوِيٌّ عَزِيزٌ ﴾ (۲).

---

[1] الحج، آیة: ۴۰.
[2] المجادلة، آیة: ۲۱.

ژباړه: لیکلي دي الله (په لوح محفوظ کې) چې خامخا به غلبه برى وکړم هرو مرو زه او رسولان زما بیشکه الله ډیر قوي دی ښه غالب دی.
حضرت ثوبان ﷛ بیان کوي چې رسول الله ﷺ فرمایلي:
﴿یوشك الأمم أن تداعى علیكم كما تداعى الأكلة إلى قصعتها " فقال قائل ومن قلة نحن یومئذ ؟ قال " بل أنتم یومئذ كثیر ولكنكم غثاء ( ما یحمله السیل من وسخ ) كغثاء السیل ولینزعن الله من صدور عدوكم المهابة منكم ولیقذفن الله في قلوبكم الوهن " فقال قائل یارسول الله وما الوهن ؟ قال " حب الدنیا وكراهیة الموت﴾ (۱).
ژباړه:
نږدې ده چې په تاسو به عالمي قومونه داسې حمله وکړي لکه څرنګه چې یو وږی پر ډوډۍ حمله کوي، پوښتونکي پوښتنه وکړه: اې د الله رسوله! آیا په دې وخت کې به زمونږ شمیر کم وي؟ رسول الله ﷺ وویل: نه! بلکه تاسو به په دې وخت کې ډیر یاست، مګر د ستاسو حیثیت به د سیلاب له خس او خاشاکو څخه زیات نه وي، الله تعالی به د ستاسو د دښمن له زړونو څخه د ستاسو هیبت ایستلی وي او د ستاسو په زړونو کې به یې (وهن) اچولی وي، عرض یې وکړ. یا رسول الله: وهن څه شی دی؟ رسول الله ﷺ ورته وفرمایل: د دنیا محبت او له مرګ څخه نفرت.

(قصعة) هغه لوښي ته ویل کیږي په کوم کې چې د خوراک شی اچول کیږي او ترینه خوړل کیږي. د نبي ﷺ په زمانه کې به عموماً دا له لرګي څخه جوړیده. (الغثاء) هغه خس، خاشاک او نورو شیانو ته ویل کیږي کوم چې د

---

۱ - سنن ابی داؤد. الملاحم. حدیث: ۴۲۹۷. ومسند احمد :۵/ ۲۷۸. وسلسلة الاحادیث الصحیحة:۲/ ۶۸۴. حدیث: ۹۵۸.

سیلاب په اوبو. له پاسه روان وي او د (الوهن) تشریح د الله تعالی رسول ﷺ په خپله وکړه، چې دا له دنیا سره محبت کول او له مرګ څخه د نفرت کولو نوم دی.

دا حدیث د رسول الله ﷺ د نبوت د صداقت دلیل او د قیامت له علامو څخه دی. نن ورځ عالمي قومونه په اسلامي امت باندې داسې حمله کونکي دي لکه څرنګه چې اوږي د خوراک په لوښي باندې حملې کوي، د دغه ذلت او رسوائي سبب د مسلمانانو کموالی نه دی. مسلمان په کثرت کې دي، مګر سره له دې له خس او خاشاک څخه زیات حیثیت نلري، دوی د هغه ځګ په څیر دي کوم چې د سیلاب د اوبو پر سر روان وي او د هغه هیڅ وزن نه وي، نن ورځ د مسلمانانو دا حال دی. مسلمانان نن ورځ له یو زر میلیون څخه زیات دي، مګر دا کثرت د کمیت په اعتبار خو ضرور شته البته د کیفیت په اعتبار سره هیڅ کله نشته.

نن ورځ د دښمنانو له زړونو څخه د مسلمانانو رعب وتلی او د مسلمانانو په مقابل کې جنګ کولو ته تیاریږي او پر مسلمانانو باندې حملې کوي، دا هر څه په هغه وخت کې کېدلای شي کوم وخت چې د مسلمانانو په زړونو کې وهن وغورځیږي. یعنې چې مسلمانان د دنیا په محبت کې او له مرګ څخه په نفرت کې مبتلا شي.

## ﴿۷۰﴾ خلک به د امامت له کولو تیښته کوي

د قیامت له نښانو څخه دا هم ده چې په خلکو کې به جهالت ډېر خپور شي تر دې چې خلکو ته به د امامت ورکولو لپاره هیڅ امام نه پیدا کیږي، یوه او بل ته به د امامت کولو لپاره دیکې (تېلې) ورکوي. ځکه چې هغوی به د شریعت له احکامو خبر نه وي او نه به د قرآن مجید تلاوت په سمه طریقه کولای شي.

سیده سلامة بنت حر رضی الله عنها بیان کوي چې رسول الله ﷺ فرمایلي:

﴿إن من أشراط الساعة أن يتدافع أهل المسجد لا يجدون إماما يصلي بهم﴾ (١).

ژباړه:

د قیامت له نښانو څخه دا هم ده چې په جوماتونو کې به د امامت کولو لپاره یوه او بل ته دیکې (ټیلې) ورکول کیږي او په خپل مینځ کې به داسې څوک نشي پیدا کولای چې هغه امامت وکړي.

دا زمانه شاید تر دا مهاله نه وي راغلې. الحمد لله! د علم او علماؤ حلقې په هر ځای کې موجودې دي او جوماتونه له علماؤ، طالبانو او له ښو ښو قاریانو څخه ډک دي.

له حضرت عبد الله بن عمرو ﷺ څخه روایت دی: هغه فرمایلي:

﴿یاتون علی الناس زمان یجتمعون فیه ویصلون فی المساجد ولیس فیهم مؤمن﴾ (٢).

ژباړه: په خلکو باندې به داسې زمانه هم راشي چې خلک به جمع کیږي او په جوماتونو کې به لمونځ هم کوي، مګر په هغوی کې به یو هم کامل او حقیقي مؤمن نه وي.

---

١- ابی داؤد، الصلوة، حدیث: ٥٨١.

٢- دغه حدیث امام حاکم روایت کړی او ویلي یې دي چې دا صحیح الاسناد دی او د امام بخاري او مسلم د شرط مطابق دی. مګر هغوی دا حدیث نه دی بیان کړی. امام ذهبي رحمه الله هم په تلخیص کې د امام حاکم تایید کړی. یاد لرئ چې دا حدیث د مرفوع په حکم کې دی، ځکه دا ډول خبرې له خپلې رایې څخه نشي کیدلای. دا رنګه خبرې له رسول الله ﷺ څخه آوریدلی شوي دي.

## ﴿۷۱﴾ د مؤمن خوب رښتیا کېدل

د خوب په حالت کې چې انسان څه ویني د هغه لپاره یو څه معناوې او احکام شته دي. ځینې خوبونه بالکل د صبا راختو په څیر رښتیا وي. ځینې دروغ هم وي او ځینې بیا یواځې د پریشانۍ سبب وي د کومو لپاره چې خاص تعبیر نشته. نبي کریم ﷺ د خوبونو په باره کې ځینې داسې خبرې کړې دي کومې د قیامت تر نښانو او اثارو پورې تعلق لري.

رښتونی خوب د نبوت شپږ څلویښتمه برخه ده. ام المؤمنین حضرت عائشة رضی الله عنها بیان کوي چې رسول الله ﷺ فرمایلي:

﴿لا يبقى بعدي من النبوة شيء الا المبشرات قالوا يا رسول الله وما المبشرات قال الرؤيا الصالحة يراها الرجل أو ترى له﴾ (۱).

ژباړه:

زما له نبوت وروسته به هیڅ شی باقي پاته نشي پرته له مبشرات. صحابه کرامو رضی الله عنهم عرض وکړ: یا رسول الله! مبشرات څه شی دی؟ رسول الله ﷺ ورته وویل: ښه خوب چې یو مسلمان یې ویني، یا یې بل څوک د هغه لپاره ویني.

د خوب رښتیا کېدل او د مؤمن لپاره زیری کېدل د قیامت د نږدې والي او د کائناتو د خاتمې نښانه ده. د مؤمن خوب به له قیامت سره په نږدې زمانه کې ډېر رښتیا او له نفس الامر سره به برابر وي. مؤمن به په خلکو کې ډېر بېګانه وي. په دې وختونو کې به رښتونی خوب له مؤمن څخه تنهایي او اجنبیت لیرې کوي او هغه به انیس او غمخور جوړوي او د هغه خوب به کم دروغ کېږي.

رسول الله ﷺ فرمایلي:

---

(۱) مسند احمد: ۲/ ۱۲۹، وصحیح البخاري، التفسیر، حدیث: ۲۹۹۰.

کله چې د قیامت زمانه را نږدې شي نو د مسلمان خوب به کم دروغ کیږي. کوم خوب چې رښتونی وي هغه به هم په هغه خبره کې ډیر رښتونی وي، د مؤمن خوب د نبوت سپږ څلویښتمه برخه ده. خوب په دری ډوله دی:

(۱) یو رښتونی خوب کوم چې د الله تعالی له لوري خوشخبري وي:

(۲) دویم غمجن خوب کوم چې د شیطان له لوري وي:

(۳) دریم هغه خوب دی په کوم کې چې انسان له خپل ځان سره خبرې کوي:

که چیرته تاسو بیکاره خوب وویني نو تاسو پورته شئ: لمونځ وکړئ او نورو خلکو ته دا خوب مه بیانوئ. زه په خوب کې بیړۍ خوښوم او طوق نه خوښوم، ځکه چې په خوب کې د بیړۍ تعبیر پر دین باندې استقامت او ثابت قدمي ده (۱).

حافظ ابن حجر رحمه الله له ابن ابی جمره رحمه الله څخه نقل کړي:

نبي کریم ﷺ دا فرمایلي: په آخره زمانه کې به د مؤمن خوب نه دروغ کیږي، د دې مطلب دا دی چې د مؤمن خوب به داسې واضح وي چې هیڅ کوم دلیل ته به ضرورت نلري، لهذا په هغه کې دروغو لره ځای نشته. دا خوب به رښتونی وي او له دروغو څخه به خالي وي، ځکه چې دا به، له نفس الامر سره عین مطابق وي، برعکس د کومو خوبونو تعبیر چې مخفي پټ وي، تعبیر کوونکو یې تعبیر کړی وي. مګر هغه واقع نه وي. نو دا رنګه خوبونه دروغ دي. رښتیا نه دي.

د دې خبرې په آخره زمانه پورې په خاص کولو کې حکمت دا دی چې مؤمن به په هغه وخت کې اجنبي وي. لکه څرنګه چې په حدیث شریف کې راغلي: اسلام په اجنبیت کې شروع شوی او په آخره زمانه کې به هم غریب او مانوس شي. په دې وختونو کې به یو مؤمن مانوس او غریب وي نو الله تعالی به

---

۱- مسند احمد: ۲/ ۵۰۷. وصحیح مسلم. الرؤیا. حدیث: ۲۲۶۳.

ورته د رښتوني خوب په سبب عزت ورکړي. کوم به هغه په حق باندې ثابت قدم کوي او دا به د هغه لپاره د زيرې باعث وي (۱).

د مؤمن د رښتوني خوب د زمانې په تعين کې دوه احتماله

(۱) دا به هغه زمانه وي کله چې علم له دنيا څخه پورته کړل شي، د فتنو او جنګونو له امله به د شريعت نښانې غائبې (ورکې) به شي. په دې وخت کې به يو مؤمن د خلکو په مينځ کې بالکل د مانوس او اجنبي شخص په څير شي، په دې سختو حالاتو کې به الله تعالی د رښتوني خوب په ذريعه د مؤمن نصرت کوي. حافظ ابن حجر رحمه الله د دې خبرې لور ته اشاره کړې (۲).

**(۲) دا واقعات به د حضرت عيسی عليه السلام په زمانه کې وي، ځکه چې د هغه د نزول زمانه په امت کې له صحابه کرامو وروسته بهترينه، د اقوالو او احوالو په اعتبار سره تر ټولو ښه زمانه ده او په دې زمانه کې به د مؤمن خوب ډير کم دروغ کيږي (۳).**

---

۱ - فتح الباري شرح صحيح البخاري: ۱۲/ ۵۰۷ و ۱۹/ ۴۵۱.

۲ - فتح الباري شرح صحيح البخاري: ۱۲/ ۵۰۷.

۳ - فتح الباري شرح صحيح البخاري: ۱۲/ ۵۰۷.

## ﴿۷۲﴾ د دروغو ډېروالی

دروغ يو ډير بد عادت دی. د قيامت له نښانو څخه دا هم ده چې په خلکو کې به دروغ خپاره شي، يو سړی به د خپلو خبرو کولو په وخت کې له دروغو څخه د ځان ساتنې هيڅ کوشش نه کوي او نه به نورو خلکو ته د خبرې له رسولو د مخه کوم تحقيق کوي.

حضرت ابو هريرة ﷺ بيان کوي چې رسول الله ﷺ فرمايلي:

﴿يكون في آخر الزمان دجالون كذابون يأتونكم من الأحاديث بما لم تسمعوا أنتم ولا آباؤكم فإياكم وإياهم لا يضلونكم ولا يفتنونكم﴾ (۱).

ژباړه:

په آخره زمانه کې به داسې دجال او کذاب ښکاره شي کوم به چې تاسو ته داسې حديثونه بيانوي چې نه به تاسو آوريدلي وي او نه به دستاسو پلرونه او اجداد په هغوی خبر وي، تاسو له هغوی څخه ځان وساتئ، تر څو چې تاسو گمراه نه کړي، يا مو په کومه فتنه کې مبتلا نه کړي.

حضرت جابر بن سمره ﷺ بيان کوي چې رسول الله ﷺ فرمايلي:

﴿ان بين يدی الساعة كذّابين فاحذروهم﴾ (۲).

ژباړه:

له قيامت څخه د مخه به يو شمير دروغژن خلک ښکاره شي. له هغو ځان وژغورئ.

په موجوده زمانه کې خلک له دروغو څخه د ځان نه ساتلو له امله دروغژنې خبرې، عجيبه او نا اشنا قيصې ډيرې زياتې کوي. همدا وجه ده چې رسول الله ﷺ د هرې اوريدونکې خبرې تصديق کول او د هغې له مخته وړو څخه منع کړې. لهذا دا ډيره ضروري ده چې مونږ کومه خبره واورو له مخته وړو

---

۱ - مقدمة صحيح مسلم، حديث: ۷.

۲ - صحيح مسلم، الامارة، حديث: ۱۸۲۲.

څخه د مخه بې باید پوره تحقیق وکړو تر څو چې مونږ هم په دروغژنو کې شمار نشو او په کومه ګناه او خطا کې مبتلا نشو.
نن ورځ د افواهاتو بازار چې ډېر ګرم دی. په خبرو کې تحقیق کول رواج نه دي او د حالاتو او واقعاتو په بیانولو کې چې کوم کمی او زیاتی تر سترګو کیږي دا ټول د هغو دروغو اقسام دي له کومو څخه چې نبي کریم ﷺ منع کړې او حرام یې ورته ویلي.

## ﴿۷۳﴾ د زلزلو کثرت (ډیروالی)

له قیامت څخه د مخه د زلزلو د کثرت معنا دا ده چې په یوه پراخه (وسیعه) علاقه کې به لوی مسلسلې زلزلې راشي، دا زلزلې به د امت لپاره یا رحمت او یا د ګناهونو کفاره وي، لکه چې د حضرت ابو موسی اشعري ﷺ په حدیث کې دي چې رسول الله ﷺ فرمایلي:
﴿ان أمتي أمة مرحومة ليس عليها في الآخرة عذاب إنما عذابها في الدنيا القتل والبلابل والزلازل قال أبو النضر بالزلازل والقتل والفتن﴾ (۱).
ژباړه:
زما په امت به رحم کیږي. د هغوی لپاره په آخرت کې هیڅ عذاب نشته. بلکه الله تعالی هغوی ته په دنیا کې د قتل، زلزلو او فتنو په شکل کې عذاب مقرر کړی.
یا دا زلزلې د خلکو لپاره سزا ده. چیرته چې فتنې او فساد زیات شي هلته د هغې زمانې د خلکو لپاره د عذاب او سزا په ډول زلزلې را لیږل کیږي.
حضرت ابو هریرة ﷺ بیان کوي چې رسول الله ﷺ فرمایلي:
قیامت تر هغه وخته نه قایمیږي تر څو چې علم پورته نه کړل شي او زلزلې زیاتې نشي (۲).

---

۱ مسند احمد: ۴/ ۴۱۰، والمستدرک للحاکم: ۴/ ۴۴۴، وصححه واللفظ له.
۲ صحیح البخاري، الاستسقاء، حدیث: ۱۰۳۶.

حضرت عبد الله بن حواله ازدي ﷺ بیان کوي چې رسول الله ﷺ فرمایلي:
ابن حواله ! کله چې ته ووینې چې خلافت د شام له زمکې څخه نقل کړی شي نو پوه شه چې د زلزلو، مصیبتونو او د لویو پریشانیو دور راتلونکی دی، په دې وخت کې به قیامت خلکو ته دومره نږدې وي لکه څومره چې زما دغه لاس دستا سر ته نږدې دی (۱).

## ﴿۷۴﴾ د خلکو له یوه بل سره نه پیژندګلوي

کله چې فتنې او مصیبتونه زیات شي نو خلک به له یوه بل سره د تعلقاتو په ساتلو کې کمزوري شي، تر دې چې نوبت به تر اجنبیت ورسیږي، په دې وخت کې به خلک یواځې د دنیوي مصلحتونو په خاطر له یوه بل سره شناخت کوي.
حضرت حذیفة بن یمان ﷺ بیان کوي چې له رسول الله ﷺ څخه د قیامت په هکله پوښتنه وشوه نو هغه ﷺ وفرمایل:
قیامت کله واقع کیږي؟ د هغه علم زما له رب سره دی او هغه به یې په خپل وخت سره ظاهر کړي، البته زه تاسو ته د قیامت له نښانو او له هغه څخه د مخه د راتلونکو حالاتو خبر درکوم، له قیامت څخه د مخه به فتنې او هرج وي، صحابه کرامو رضی الله عنهم پوښتنه وکړه : فتنه خو پیژنو دا هرج څه شی دی؟ رسول الله ﷺ ورته وویل: دا د حبشي ژبې لفظ دی او په معنا د قتل او خونریزي سره دی. له قیامت سره په نږدې زمانه کې به د خلکو په مینځ کې اجنبیت وغورځي. یو څوک به ډیر کم خلک پیژني (۲).

---

۱ سنن ابی داؤد، الجهاد، حدیث: ۲۵۳۵.
۲ مسند احمد: ۵/ ۳۸۹.

دا حدیث نن ورځ د خلکو له واقعاتو او حالاتو سره مطابق دی. نن ورځ د خلکو اکثریت داسې دی چې خپل رشته دار هم نه پیژني، نوبت تر دې رسیدلای چې ځیني خلک له خپلو نږدې دوستانو سره له کور څخه د باندې په پارکونو کې ملاویږي او په دې نه پوهیږي چې دا یې رشته دار دی، د دې وجه دا ده چې نن ورځ زیاتره تعلقات د شخصي او ذاتي ګټو په بنا دي. په دنیوي مصلحتونو بنا دغه کمزوري تعلقات چې څومره په تیزي سره وده کوي هومره په تیزي سره له منځه هم ځي. ځکه چې دا د ایمان بالله او ورولۍ لپاره نه دي، بلکه د شخصي مفادو لپاره دي، که یو انسان خپل دنیوي مصلحت ویني او له یو چا سره په تعلق ساتلو کې د ده دغه دنیوي مصلحت تر سره کیږي نو تعلقات ور سره قایموي. که نه نو ډیر زر یې پریږدي.

## ﴿۷۵﴾ ﴿۷۶﴾ د ښځو ډیروالی او د سړیو کموالی

د قیامت له نښانو څخه دا هم ده چې په آخره زمانه کې به د ښځو شمیره زیاته شي او د نرانو شمیر به کم شي، د علم خاوندانو ویلي چې په هغه زمانه کې به د ښځو د کثرت سبب هغه فتنې او جنګونه وي په کومو کې به چې یو لوی شمیر نران قتل کړی شي او ښځې به بېچ پاتې شي. ځکه چې جنګ کول د ښځو کار نه دی او د دې کار لپاره سړي په کار راځي.

په دغه سلسله کې دویم قول دا دی چې د فتوحاتو د کثرت له امله به د مینځو په شمیر کې زیاتوالی راشي او یو سړی به څو څو مینځې په خپله قبضه کې واخلي.

علامه ابن حجر رحمه الله فرمایي:

ظاهراً دا معلومیږي چې د ښځو ډیروالی او د نرانو کموالی به د کوم ظاهري سبب له امله نه وي. بلکه دا به د الله تعالی د تقدیر او د هغه د

حکمت تقاضا به وي چې په آخره زمانه کې به هلکان کم پیدا کیږي او انجونې به ډیرې پیدا کیږي (۱).

حضرت انس بن مالک رضي الله عنه بیان کوي چې رسول الله ﷺ فرمایلي:

د قیامت له نښانو څخه دي چې علم به پورته کړل شي، جهالت به خپور شي، زنا به زیاته شي، شراب به څښل کیږي، سړي به ځي او ښځې به باقي پاته کیږي، تر دې چې د پنځوسو ښځو د پالنې لپاره به یو سړی وي (۲).

د یوه بل روایت الفاظ داسې دي:

زنا به عامه شي، سړي به کم شي او ښځې به زیاتې شي (۳).

که چیرته په دنیا کې د پیدا کیدونکو هلکانو او انجونو په شمیر کې غور وکړی شي او د عالمي مصدقه رپوټونو جایزه واخستل شي په کوم کې چې د هلکانو او انجونو د شمیر فرق ښودل شوی نو سړی دې نتیجې ته رسیږي چې دغه نښانه زمونږ په دور کې ښکاره شوې او مخ په ترقي روانه ده.

## ﴿۷۷﴾ د فشاحي او عریاني ظهور او په ښکاره یې ارتکاب

نبي کریم ﷺ په آخره زمانه کې چې د کومو بدیو د ډیروالي او د شهوتونو د انتشار پیشنګویي کړې، په هغه وخت کې یې دا هم فرمایلي چې د قیامت له نښانو څخه دا هم ده چې زنا به ډیره عامه شي: او نوبت به تر دې ورسیږي چې یو سړی به په لار کې د ټولو خلکو تر مخ له کومې ښځې سره زنا کوي.

دا دوه نښانې دي: یوه دا چې زنا به عامه شي، دویم دا چې زنا به ښکاره کیږي او د منع کولو کوشش به یې هیڅوک نه کوي.

---

۱ فتح الباري شرح صحیح البخاري: ۱/ ۲۳۲.

۲ صحیح مسلم، العلم، حدیث: (۹) - ۲۶۷۱.

۳ صحیح البخاري، العلم، حدیث: ۸۱.

**حضرت ابو هريرة رضي الله عنه بيان کوي چې رسول الله ﷺ فرمايلي:**

﴿لا تقوم الساعة حتى لا يبقى على وجه الأرض أحد لله فيه حاجة وحتى توجد المرأة نهارا جهارا تنكح وسط الطريق لا ينكر ذلك أحد ولا يغيره فيكون أمثلهم يومئذ الذي يقول : لو نحيتها عن الطريق قليلا فذاك فيهم مثل أبي بكر وعمر فيكم﴾ [١].

ژباړه:

**قيامت به تر هغه وخته قايم نشي تر څو چې داسې صورتحال پيدا نشي چې په زمکه کې به هيڅ يو داسې څوک نه اوسيږي کوم ته چې د الله تعالى ضرورت وي. نوبت به دې ته ورسيږي چې په زنا ورځ په ښکاره به د لارې په مينځ کې له يوې ښځې سره زنا کيږي او هيڅوک به په هغې اعتراض نه کوي او نه به هيڅوک د هغې د منع کولو کوشش کوي. په دغه وخت کې به په ټولنه کې بهترين سړى هغه څوک وي کوم چې زاني ته ووايي: که تاسو ليږ له دې لارې څنګته شى، د دې خبرې کونکى به په هغه زمانه کې داسې حيثيت لري لکه نن ورځ چې زمونږ په مينځ کې ابوبکر او عمر دي.**

**د دغه حديث تاييد د رسول الله ﷺ دغه فرمان هم کوي: جهالت به خپور شي، زنا به عامه شي او شراب به څښل کيږي [٢].**

**د يوه بل روايت الفاظ داسې دي:**

**زنا به عامه شي. سړي به کم شي او ښځې به زياتې شي [٣].**

**دا دواړه نښانې زمونږ په زمانه کې ښکاره شوې دي. ځينې تيي وي چينلونه چې کوم قسم فحاشي خپره وي. په انټرنيټ باندې چې کوم قسم عکسونه او ويډيو نشر کيږي د مؤمن سترګې ورته له کتو شرميږي.**

---

[١] - المستدرک للحاکم: ۴/ ۵۴۱، وصححه. وسلسلة الاحاديث الضعيفة: ۳/ ۴۱۰، حديث: ۱۲۵۴.

[٢] - صحيح مسلم، العلم، حديث: (۹) – ۲۶۷۱.

[٣] - صحيح البخاري، العلم، حديث: ۸۱.

مؤمنو ښځو او سړیو ته پکار دي چې د خپل نفس ساتنه وکړي. خپل نظرونه وساتي. د شرمګاوو حفاظت وکړي. له فاسقانو او فاجرانو څخه ځانونه بچ وساتي او له الله تعالی څخه هر وخت د پاک لمنۍ دعا وکړي.

## ﴿۷۸﴾ د قران مجید په تلاوت باندې اجرت اخستل

د قرآن مجید تلاوت او عبادت د الهي قربت ذریعه ده. په دغه سلسله کې اصولي خبره دا ده چې عبادت د دنیا طلبي لپاره نه کیږي، بلکه خالص د اخروي کامیابي او د الله تعالی د رضا لپاره یې کول پکار دي.

دا د قیامت له نښانو څخه ده چې یو شمیر داسې خلک به پیدا شي کوم به چې د تعزیت په مجالسو یا په نورو مجالسو کې د قرآن مجید تلاوت په خوش آوازي سره یواځې د دې لپاره کوي چې په هغه سره مال او دولت تر لاسه کړي.

حضرت عمران بن حصین ﷺ روایت کړی چې هغه له یوه داسې سړي سره په خوا کې تیر شو کوم چې د خلکو په مخکې د قرآن مجید تلاوت کاوه، کله یې چې تلاوت ختم کړ نو په هغه سره یې روپۍ وغوښتلې.

حضرت عمران ﷺ چې دا صورتحال ولید نو وې ویل (انا لله وانا الیه راجعون) ما له نبي کریم ﷺ دا اوریدلي چې فرمایل یې:

﴿من قرأ القرآن فليسأل الله تبارك وتعالى به فإنه سيجئ قوم يقرؤون القرآن يسألون الناس به﴾ (۱)

ژباړه: څوک چې تلاوت وکړي هغه ته پکار دي چې له الله تعالی څخه د خپلو حاجتونو غوښتنه وکړي. یو قوم داسې هم راتلونکی دی کوم به چې قرآن تلاوت کوي او بیا به له خلکو څخه سوال کوي.

حضرت جابر بن عبد الله ﷺ بیان کوي:

---

[1] - مسند احمد: ۴۳۲/۴، وحسنه الارنوؤط فی تعلیقه علی المسند.

يو ځل رسول الله ﷺ له مونږ سره هغه وخت تشريف فرما وو چې مونږ د قرآن مجيد تلاوت کاوه، په مونږ کې څه بدو (کوچي) او څه عجمي خلک هم وو، زمونږ قرئت يې واوريد نبي ﷺ وفرمايل:

ووايا ست: د ستاسو ټولو تلاوت ښه دی. نږدې ده چې داسې خلک به راشي کوم به چې د قران د تير په څير د سمولو کوشش کوي (۱).

هغوی به په دې سره دنيوي فايده تر لاسه کول غواړي او د اخروي اجر او ثواب خواهشمند به نه وي (۲).

دا خلک به د قرآن مجيد معاوضه سمدستي غواړي او تر آخرت پورې به صبر او انتظار نه کوي.

## ﴿۷۹﴾ په خلکو کې د غټوالي زياتوالی

حضرت عمران بن حصين رضي الله عنه بيان کوي چې رسول الله ﷺ فرمايلي:

﴿خَيْرُكُمْ قَرْنِي ثُمَّ الَّذِينَ يَلُونَهُمْ ثُمَّ الَّذِينَ يَلُونَهُمْ قَالَ عِمْرَانُ فَمَا أَدْرِي قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَعْدَ قَوْلِهِ مَرَّتَيْنِ أَوْ ثَلَاثًا ثُمَّ يَكُونُ بَعْدَهُمْ قَوْمٌ يَشْهَدُونَ وَلَا يُسْتَشْهَدُونَ وَيَخُونُونَ وَلَا يُؤْتَمَنُونَ وَيَنْذُرُونَ وَلَا يَفُونَ وَيَظْهَرُ فِيهِمْ السِّمَنُ﴾ (۳).

ژباړه: زما زمانه تر ټولو بهتره ده، بيا د هغو خلکو زمانه غوره ده کوم چې له دې وروسته راځي، بيا د هغو کوم چې له دوی وروسته راځي، بيا به داسې خلک ښکاره شي کوم به چې ګواهي ته له غوښتلو پرته د ګواهي ورکولو ته به تيار وي، هغوی به خيانت کوي او پر هغوی به اعتماد نه کيږي، هغوی به نذرونه مني مګر هغه به نه پوره کوي او په هغوی کې به چاغوالی (غټوالی) ښکاره شي.

---

[۱] - د دې معنا دا ده چې هغه به د ريا کارۍ او شهرت لپاره د قرئت په عمل کې له مبالغې څخه کار اخلي او تکلفي قرئت به کوي.

[۲] - سنن ابی داؤد، الصلوة، حديث: ۸۳۰، وسلسلة الاحاديث الصحيحة: ۱/ ۴۲۴، حديث: ۲۵۹.

[۳] - صحيح البخاري، الرقاق، حديث: ۲۴۲۸، وصحيح مسلم، فضائل الصحابة، حديث: ۲۵۳۵.

غالباً په آخره زمانه کې به د چاغوالي وجه مالي خوشحالي، آرام ژوند. په هوټلونو او میلمستونو کې د خوندورو خوړو ډیروالی وي. زمونږ په دې دور کې د خلکو جسماني حرکت بیخي کمزوری دی. د انسان د هرې نوعې خدمت لپاره مشینونه او آلات موجود دي. خلک پیاده نه ګرځي. نتیجه یې دا ده چې لوی او واړه ټول د چاغوالي ښکار دي. صورتحال تر دې حده خراب دی چې د عالمي شمیر مطابق د دنیا د آبادي تقریباً ځلورمه برخه خلک د وزن د زیاتوالي په مسئله کې راګیر دي.

دا وجه ده چې نن داسې دواګانې ډیرې زیاتې دي کومې چې د وزن په کموالي. د چاغوالي په علاج او د معدې په کار کردګي کې له یوه انسان سره ډیره مرسته کولای شي.

## ﴿۸۰﴾ ﴿۸۱﴾ د داسې خلکو ظهور کوم به چې له غوښتلو پرته ګواهي ورکوي او نذرونه به نه پوره کوي

دا دواړه نښانې په مخکني حدیث کې ذکر دي، بیا به داسې خلک ښکاره شي کوم به چې ګواهي ته له غوښتلو پرته د ګواهي ورکولو ته به تیار وي، **هغوی به خیانت کوي او امین به نه بلل کیږي، هغوی به نذرونه** منې مګر پوره کوي به یې نه (۱).

د تساهل دغه دواړه خویونه، یعنې د نورو په خلاف له علم او غوښتلو پرته ګواهي ورکول او په کثرت سره د نذرونو منل او د هغو نه پوره کول د خلکو د دین په کمزوري، د ایمان په ضعف او په زړونو کې د الله تعالی د تعظیم په نه جذبه دلالت کوي.

---

(۱) صحیح البخاري، الرقاق، حدیث: ۲۴۲۸.

## ﴿۸۲﴾ طاقتور به کمزوري خوري

ام المؤمنين حضرت عاشة رضی الله عنها بيان کوي چې يوه ورځ رسول الله ﷺ زما خواته تشريف راووړ نو هغه ﷺ وفرمايل : اې عائشة ! له دنيا څخه زما له تلو وروسته به تر ټولو اول ما دستا قوم (عرب) پيدا کړي. حضرت عائشة رضی الله عنها فرمايي: کله چې هغه کيناست نو ما ورته وويل: زه له تا قربان شم. کله چې ته د ننه راغلې نو تا يوه داسې خبره وکړه کومې چې زه په ويره کې کړم. نبي ﷺ وويل : ما څه وويل؟ ما عرض وکړ: تا وويل : د ستا د قوم خلک به له ما وروسته له ما سره ډير ژر ملاقي شي، هغه ﷺ وفرمايل : مرګ هغه د ځان لپاره يو مرغوب او خوږ شی بولي او د امت خلک له هغه سره حسد کوي. ما ترې وپوښتل : په دې وخت کې يا له دې وروسته به د خلکو څه حال وي؟ نو نبي ﷺ راته وفرمايل : طاقتور به کمزوري خوري تر دې چې په هغوی قيامت راشي (١).

په دې حديث کې اشاره ده ديته چې له قيامت سره په نږدې زمانه کې به ظلم او شر ډير زيات شي، تر دې چې طاقتور به کمزوري خوري.

## ﴿۸۳﴾ د الله تعالی له لوري په راليږل شوي شريعت د فيصلو نه کول

د الله تعالی له لوري په راليږل شوي دين (قرآن او سنت) د فيصلو کول د امت له مهمو واجباتو څخه دي. الله تعالی ﷻ فرمايي:

﴿وَمَنْ لَّمْ يَحْكُمْ بِمَآ اَنْزَلَ اللّٰهُ فَاُولٰٓئِكَ هُمُ الْكٰفِرُوْنَ ﴾ (٢).

ژباړه :

او هر چا چې ونکړ حکم په هغه شي چې نازل کړی (راليږلی) دی الله نو دغه کسان همدوی دي کافران.

---

١ - مسند احمد :٢/ ٨١. وسلسلة الاحاديث الصحيحة:۴/ ۵۹۲. حديث: ١٠۵٣.

٢ - المائدة. آية: ۴۴.

په آخره زمانه کې به د اسلام یوه یوه کړکۍ ماتیږي او کومه کړکۍ چې تر ټولو د مخه ماتیږي هغه به دا وي چې د الله تعالی له لوري د رالیږل شوي شریعت مطابق به فیصلې پریښودل شي.

حضرت ابو امامه باهلي ﵁ بیان کوي چې رسول الله ﷺ فرمایلي ﴿لينقضن عرا الإسلام عروة عروة فكلما انتقضت عروة تشبث الناس بالتي تليها وأولهن نقضا الحكم وأخرهن الصلاة﴾ (۱).

ژباړه:

د اسلام کړکۍ به یوه یوه ماتیږي. کله هم چې کومه کړکۍ ماته شي نو خلک به په بلې پسې خښ شي. تر ټولو د مخه چې کومه کړکۍ ماتیږي هغه دا ده چې الهي حکم به پریښودل شي او تر ټولو په آخر کې به لمونځ هم پریښودل شي.

په ډیر افسوس سره باید وویل شي چې په اکثرو اسلامي هیوادونو کې دا نښانه ښکاره شوې، په ډیرو اسلامي هیوادونو کې یوازې په هغو احکامو او قوانینو عمل کیږي کوم چې تر واده، طلاق او میراث پورې تعلق لري، کوم چې په تجارتي معاملاتو پورې یا په سزاګانو، حدودو او تعزیراتو پورې تعلق لري نو اکثر خلک د هغو په ځای په فرانسوي یا برطانوي قوانینو باندې خپلې فیصلې کوي او دا د الله تعالی له لوري په رالیږل شوې وحې باندې د فیصلې نه کول دي. الله تعالی ﷻ فرمایي:

﴿وَمَنْ أَحْسَنُ مِنَ اللَّهِ حُكْمًا لِّقَوْمٍ يُوقِنُونَ ۝﴾ (۲).

ژباړه: او څوک ډیر ښه دي له الله څخه له جهته د حکم هغه قوم ته چې یقین لري (په الله یعنې هیڅوک نه دي).

---

[1] - مسند احمد: ۵/ ۲۵۱. والمعجم الكبير للطبراني: ۸/ ۹۸. ورجالهما رجال الصحيح.

[2] - المائدة، آية: ۵۰.

## ﴿۸۴﴾ د رومیانو ډېر والی او د عربو کموالی

له رومیانو څخه مراد هغه خلک دي کوم چې نن ورځ د امریکا او یورپي قومونو په نامه یادیږي. هغوی ته رومیان ځکه ویل کیږي چې هغوی د اصفر بن روم بن عیصو بن اسحاق بن ابراهیم ﷤ له اولادې څخه دي، همدا وجه ده چې دغو خلکو ته (بني اصفر) هم ویل کیږي.

حضرت مستورد فهري ﷜ حضرت عمر بن العاص ﷜ ته وویل:

کوم وخت چې قیامت قایمیږي نو په دې وخت کې به عیسایان په کثرت سره وي. حضرت عمر ﷜ وویل: خیال کوه: دا دې څنګه خبره وکړه؟ هغه ورته وویل: ما هغه خبره وکړه کومه مې چې د الله تعالی له رسول ﷺ څخه آوریدلې. حضرت عمر ﷜ وویل: که د رسول الله ﷺ فرمان وي نو بیا حق ده او د دې سبب د عیسایانو څلور خویونه دي.

(۱) دا خلک د جنګ په میدان کې له تیښتې وروسته ډېر په تیزۍ سره خپل حالت سمه وي.

(۲) دا خلک له مسکین، فقیر او ضعیف سره بهترینه رویه کوي.

(۳) دا خلک د فتنې په وخت کې جذباتي کیږي نه. بلکه په معاملاتو کې له تحمل او بردبارۍ څخه کار اخلي.

(۴) دا خلک د بادشاهانو د ظلم په لیرې کولو کې له نورو خلکو سره مرسته کوي (۱).

سیده ام شریک ﷜ بیان کوي چې ما له رسول الله ﷺ څخه آوریدلي چې فرمایل یې:

خلک به له دجال څخه تښتي او په غرونو کې به پټیږي. ام شریک عرض وکړ: یا رسول الله ﷺ! په دې وخت کې به عرب چیرته وي؟ (آیا عرب به له دجال سره مقابله نه کوي؟) نو نبي کریم ﷺ وفرمایل:

---

[1] صحیح مسلم. الفتن و اشراط الساعة. حدیث: ۲۸۹۸.

عرب به په دې وخت کې په ډېر کم شمير کې وي (۱).
دا هم ويل شوي چې د نبي کريم ﷺ دا الفاظ چې (روميان به په دې وخت کې په کثرت سره وي) د دې خبرې لور ته اشاره ده چې انګريزي د يورپي خلکو ژبه به په دې وخت کې ډېره ويل کيږي او خلک به عربي ژبه پريږدي، ځينې علماؤ ويلي کوم سړی چې عربي وايي هغه عرب دی او څوک چې په صحرا کې ژوند غوره کړي هغه بدوي (کوچی) دی، خواه هغه دې عجمي ولې نه وي.

## ﴿۸۵﴾ له خلکو سره د مال او دولت ډېر والی

مسلمانانو د اسلام په اولنيو کلونو کې د رسول الله ﷺ په ملګرتيا کې او له هغه وروسته په داسې حال کې ژوند تير کړی چې ډېر فقر وو، تر دې چې د هغوی ګزاره يوازې په دوو شيانو ود: اوبه او کجورې.
نبي کريم ﷺ خپلو ملګرو ته وويل: عنقريب به حالات بدل شي او د قيامت له نښانو څخه دا هم ده چې دولت به ډېر شي، نبي کريم ﷺ وفرمايل: مال به دومره ډېر شي چې يو سړی به خپل زکاة يوه مياشت وګرځوي مګر بيا به هم کوم مستحق پيدا نکړي، ځکه چې خلک به ډېر مستغني وي.
حضرت ابو هريرة رضي الله عنه بيان کوي چې رسول الله ﷺ فرمايلي:
﴿لَا تَقُومُ السَّاعَةُ حَتَّى يَكْثُرَ فِيكُمْ الْمَالُ فَيَفِيضَ حَتَّى يُهِمَّ رَبَّ الْمَالِ مَنْ يَقْبَلُ صَدَقَتَهُ وَحَتَّى يَعْرِضَهُ فَيَقُولَ الَّذِي يَعْرِضُهُ عَلَيْهِ لَا أَرَبَ لِي﴾ (۲).
ژباړه: قيامت به تر هغه وخته قايم نشي تر څو چې په تاسو کې مال ډېر نشي، د مال د ډېر والي به دا حال وي چې يو مالدار به په دې پريشان وي

---
[۱] - صحيح مسلم. الفتن و اشراط الساعة. حديث: ۲۹۴۵.
[۲] - صحيح البخاري. الزكاة. حديث: ۱۴۱۲. وصحيح مسلم. الزكاة. حديث: (۶۱) – ۱۵۷. بعد الحديث.

چې د ده صدقه به څوک قبوله کړي؟ هغه به يوه کس ته خپل مال وړاندې کړي او هغه کس به ورته ووايي: ما ته د دې هيڅ ضرورت نشته.

حضرت ابو موسى اشعري ﷺ بيان کوي چې رسول الله ﷺ فرمايلي:
﴿لَيَأْتِيَنَّ عَلَى النَّاسِ زَمَانٌ يَطُوفُ الرَّجُلُ فِيهِ بِالصَّدَقَةِ مِنْ الذَّهَبِ ثُمَّ لَا يَجِدُ أَحَدًا يَأْخُذُهَا﴾ (١).

ژباړه: په خلکو به يوه داسې زمانه هم راشي چې يو سړی به د خپل مال سره را واخلي او ګرځي به تر څو چې کوم حاجتمند پيدا کړي، مګر دی به هيڅ داسې څوک پيدا نکړي کوم به چې د ده د مال اخستلو ته تيار وي.

د علماؤ په دې کې اختلاف دی چې آيا دا نښانه واقع ده او که نه؟:

ويل کيږي چې دا نښانه د صحابه کرامو په زمانه کې واقع شوې، کله چې هغوی لوی لوی فتح وکړې او د فارس او روم غنيمتونه د هغوی لاسته ورغلل.

له دې وروسته بيا د حضرت عمر بن عبدالعزيز رحمه الله په زمانه کې په مسعود کې مال دومره ډير وو چې که يوه سړي به خپله صدقه يو چا ته وړاندې کړه نو هيچا به دغه صدقه نه قبلوله. تر دې که يو څوک به په ظاهره حاجتمند وبلل شو او هغه ته به يې مال وړاندې کړ. ليکن هغه به وويل: ما ته د دې مال هيڅ ضرورت نشته.

دويم قول دا دی چې دا نښانه به په آخره زمانه کې واقع کيږي او د نبي کريم ﷺ اشاره په اصل کې د مهدي د ظهور زمانې ته ده. په دې وخت کې به مهدي خلکو ته جولۍ ور ډکوي او له شميره پرته به مال تقسيموي، له دې امله چې مال به ډير زيات وي. زمکه به برکات او معدنيات د باندې را

---

۱- صحيح البخاري. الزكاة. حديث: ۱۴۱۴. وصحيح مسلم. الزكاة. حديث: ۱۰۱۲.

وباسي تر دې چې د هغې له خيټې څخه به د سرو او سپينو يوه ذخيره ترلاسه شي.

حضرت سعيد جريري له ابو نضره څخه بيان کوي چې هغه ويل:

مونږ له حضرت جابر رضي الله عنه سره ناست وو هغه بيان کاوه چې رسول الله ﷺ فرمايلي:

زما د امت په آخره زمانه کې به يو داسې خليفه وي کوم به چې خلکو ته په دوارو ډکو ډکو لاسونو مال ورکوي او شميري به يې نه، سعيد وايي: ما له ابو نضره او ابو العلاء څخه وپوښتل: د ستاسو څه خيال دی؟ دا خليفه عمر بن عبد العزيز نه دی؟ هغوی راته وويل: نه (۱).

## ﴿۸۶﴾ زمکه به خپلې خزانې د باندې را وغورځوي

په آخره زمانه کې به مال او دولت دومره ډير شي چې زمکه به خپلې خزانې د باندې را وغورځوي. تر دې چې خلک به د مال د ډيروالي له امله له دولت څخه بې نيازه شي.

**حضرت ابو هريرة رضي الله عنه بيان کوي چې رسول الله ﷺ فرمايلي:**

﴿تقيء الأرض أفلاذ كبدها أمثال الأسطوان من الذهب والفضة فيجيء القاتل فيقول في هذا قتلت ويجيء القاطع فيقول في هذا قطعت رحمي ويجيء السارق فيقول في هذا قطعت يدي ثم يدعونه فلا يأخذون منه شيئا﴾ (۲).

ژباړه:

زمکه به د خپل ځيګر ټوټې د سرو او سپينو د لويو لويو ستنو په شکل کې د باندې را وغورځوي. قاتل به راشي او وبه وايي: افسوس ما د دغه مال لپاره څومره انسانان قتل کړل. د صله رحمي قطع کونکی

---

[۱] - صحيح مسلم، الفتن واشراط الساعة، حديث: ۲۹۱۳.

[۲] - صحيح مسلم، الفتن واشراط الساعة، حديث: ۲۹۱۳.

به راشي او وبه وايي : افسوس ! ما د دغه مال په خاطر خپل خپلوان پريښودل. غل به راشي او وبه وايي : افسوس ! ما د دغه مال لپاره غلا کوله او لاس مې پرې کړی شو. بيا به دوی ټول هر څه پرېږدي او له مال څخه به هيڅ شی هم وانخلي.

امام نووي رحمه الله فرمايي:

په حديث کې د باندې را غورځولو په لفظ کې تشبيه ده. مطلب دا دی زمکه به په خپل ځان کې د ننه مدفونې خزانې د باندې را وغورځوي او الاسطوان د الاسطوانة جمع ده او په معنا دې عمود (ستنې) سره ده. د سرو او سپينو تشبيه يې له ستنو سره د دې لپاره وکړه چې د هغوی کثرت او ډېروالی ښکاره شي.

## ﴿۸۷﴾ ﴿۸۸﴾ ﴿۸۹﴾ د مسخ، خسف او قذف ښکاره کيدل

(۱) مسخ : مطلب دا ده چې د يوه شي شکل او جسماني هيئت بدل شي او له هغه بل څه جوړ شي، لکه څرنګه چې الله تعالی د بني اسرائيلو يوې ډلې ته د سزا ورکولو په ډول له هغوی څخه بيزوګان او خنزيران جوړ کړل، الله تعالی جل جلاله فرمايي:

﴿فَلَمَّا عَتَوْا عَن مَّا نُهُوا عَنْهُ قُلْنَا لَهُمْ كُونُوا قِرَدَةً خَاسِئِينَ ﴿١٦٦﴾﴾ (۱).

ژباړه : نو کله چې سرکشي وکړه دوی له پرېښودلو د هغه شي څخه چې منع شوي وو دوی له هغه شي څخه (چې ښکار د ماهي وو په خالي کې) نو وويل مونږ دوی ته چې شئ بيزوګان شړلي رټلي سپک کړی شوي.

بل ځای الله تعالی جل جلاله فرمايي:

﴿وَجَعَلَ مِنْهُمُ الْقِرَدَةَ وَالْخَنَازِيرَ﴾ (۲).

---

۱- الاعراف. آية: ۱۲۲.

۲- المائدة آية: ٦٠.

ژباړه: او ګرځولي يې دي له ځينو د دوی څخه بيزوګان او له ځينو د دوی څخه خنزيران.

(٢) د خسف مطلب دا ده چې زمکه وچوي او پر هغې چې د پاسه څه وي هغه د لاندې ننوځي. د دې بيان په راتلونکو علامات کبری کې را روان دی.

(٣) د قذف معنا ده له آسمان څخه د کاڼو (ډبرو) باران وريدل. لکه څنګه چې د حضرت شعيب ﷺ په قوم الله تعالی ورولی وو، کله يې چې هغوی ته سزا ورکوله نو له آسمان څخه يې پرې د کاڼو (ډبرو) باران وو وراوه. يا لکه څرنګه چې الله تعالی ابرهه او د هغه قوم ته سزا ورکړه. کله چې دوی د کعبې شريفې د ورانولو لپاره راغلل نو الله تعالی پرې د کودړو باران وو وراوه.

دا هغه سزا ګانې دي کومې به چې په آخره زمانه کې په ځينې خلکو مسلطې کيږي او دا د قيامت له نښانو څخه دي. حضرت عمران بن حصين رضي الله عنه بيان کوي چې رسول الله ﷺ فرمايلي:

﴿في هذه الأمة خسف ومسخ وقذف فقال رجل من المسلمين يا رسول الله ومتى ذاك ؟ قال إذا ظهرت القينات والمعارف وشربت الخمور﴾ (١).

ژباړه:

د دې امت ځينې خلک به په زمکه کې ننوځي. د ځينو به شکلونه مسخ (بدل) شي او په ځينو به د کاڼو (ډبرو) باران وشي، په مسلمانانو کې يوه سړي پوښتنه وکړه: اې د الله رسوله ﷺ! دا به کله واقع کيږي؟ رسول الله ﷺ په ځواب کې ورته وويل: کله چې د سندرو ويونکي او د موسيقي آلات ډير شي او خلک د شرابو په څښلو شروع وکړي.

(القيان) د (قينة) جمع ده او معنا يې ده سندرې ويونکې ښځې.

د (معازف) لفظ واحد معزف دی. معنا يې ده د موسيقي، ساز او سرود آلات

---

(١) جامع الترمذي. الفتن. حديث ٢٢١٢. وصحيح الجامع للالباني ١/ ٧٨٣. حديث: ٣٦٦٥

کله چې خلک د امر بالمعروف او نهی عن المنکر فریضه پریږدي نو نتیجه دا شي چې ګناهونه ډیر شي او الهي عذابونه را نږدې شي.
حضرت عائشة رضی الله عنها بیان کوي چې رسول الله ﷺ فرمایلي:
﴿یکون في آخر هذه الأمة خسف ومسخ وقذف قالت قلت یا رسول الله أنهلك وفینا الصالحون ؟ قال نعم إذا ظهر الخبث﴾ (۱).
ژباړه : په آخره زمانه کې به په دغه امت کې د خسف، مسخ او قذف واقعات راشي. ما عرض وکړ : یا رسول الله ﷺ ! آیا مونږ به د نیکانو خلکو په موجودیت کې هم هلاک کړی شو؟ رسول الله ﷺ وفرمایل : هو ! کله چې فسق او فجور زیات شي.
نبي کریم ﷺ دا خبر ورکړی چې دا خسف، مسخ او قذف به په هغو خلکو واقع شي کوم چې اهل بدعت او د سمې عقیدې مخالف دي. لکه زندیق خلک، یعنې اهل الحاد ونفاق، قدریه فرقه او وغیره، دا خلک د الله تعالی د هغه تقدیر تکذیب کوي کوم چې الله تعالی د خپلو بنده ګانو د افعالو لپاره مقرر کړی.
حضرت نافع فرمايي : یو ځل زه له حضرت عبد الله بن عمر رضی الله عنهما سره ناست وم چې یو سړی راغی او وې ویل : د شام فلاني سړي د ستا په خدمت کې سلام عرض کاوه. حضرت عبد الله رضي الله عنه ووېل : ما ته معلومه شوه چې دغه کس کوم بدعت ایجاد کړی، که چیرته حقیقت همداسې وي نو هغه زما لور ته هیڅکله هم سلام نه را لیږه. ما له رسول الله ﷺ څخه آوریدلي چې فرمایل یې : زما په امت کې به خسف، مسخ او قذف واقع شي او دا عذابونه به په زندیقو او قدریه ؤ باندې واقع کیږي (۲).

---

۱ - جامع الترمذي، الفتن، حدیث: ۲۱۸۵ ، وصحیح الجامع للالباني: ۲/ ۱۳۵۵، حدیث: ۸۱۵۸.
۲ - مسند احمد : ۲/ ۱۳۲ ، وصححه احمد شاکر.

په نورو روايتونو کې داسې هم راغلي چې خسف به په هغه لښکر باندې واقع شي کوم به چې په آخره زمانه کې د کعبې شريفې د ورانولو لپاره راځي، مګر الله تعالی به هغه ټول خلک په زمکه کې د ننه کړي.

د حضرت قعقاع بن ابی حدرد اهليه بقيره بيان کوي: ما له رسول الله ﷺ څخه په منبر باندې دا آوريدلي چې فرمايل يې: کله چې تاسو واورئ چې يو لښکر نږدې په زمکه کې غرق شو نو په دې وخت کې پوه شئ چې قيامت ډير نږدې راتلونکی دی (١).

له نږدې څخه مطلب دا دی چې دا لښکر به له مدينې منورې سره په نږدې زمکه کې ننوځي، د دغه لښکر بيان په راتلونکی علامه نمبر ١٢٢ کې راتلونکی دی.

په دغه سلسله کې آخيري خبره دا ده چې دغه سزاګانې به په نافرمانو خلکو باندې نازليږي او پر هغو باندې هم کوم چې ګناهونه ويني او چپ پاتې کيږي، يو مسلمان کس ته له دغه امر څخه هوښيار او سيدل پکار دي.

## ﴿ ٩٠ ﴾ داسې باران له کوم څخه به چې هيڅ د خټو او ډبرو کور بچ پاتې نشي

نبي کريم ﷺ خبر ورکړی چې د قيامت له نښانو څخه دا هم ده چې له آسمان څخه به يو داسې باران را وريږي د کوم له امله به چې هيڅ د خټو او ډبرو کور بچ پاتې نشي، د دغه باران لپاره به يوازې د اوښانو له وړيو **څخه** جوړې شوې خيمې ودرول شي.

حضرت ابو هريرة رضي الله عنه بيان کوي چې نبي کريم ﷺ فرمايلي: ﴿لاتقوم الساعة حتى يمطر الناس مطراً، لاتكن منه بيوت المدر، ولاتكن منه الا بيوت الشعر﴾ (٢).

---

١- مسند احمد: ٢/ ٣٧٨. وسلسلة الاحاديث الصحيحة: ٣/ ٣٤٠. حديث: ١٣٥٥.

٢- مسند احمد: ٢/ ٢٦٢. وقال الهيثمي: رجاله رجال الصحيح. وقال الشيخ الارنؤوط: اسناده صحيح على شرط مسلم. وكذا رواه ابن حبان في صحيحه.

ژباړه: قیامت تر وخته نه قایمیږي تر څو چې له آسمان څخه یو داسې باران نازل نشي له کوم څخه به چې هیڅ د ختې او ډبرو کور بچ نشي. البته له وړیو څخه جوړې شوې خیمې به له دې باران څخه بچ پاتې شي.

## ﴿۹۱﴾ له اسمان څخه به باران راوریږي مګر په هغه سره به حاصل نه کیږي

نبي کریم ﷺ چې د قیامت له کومو نښانو څخه خبر ورکړی په هغوی کې دا هم ده چې له آسمان څخه به باران را وریږي مګر په دې سره به زمکه نباتات او فصلونه نه زرغونوي.

حضرت انس رضي الله عنه بیان کوي چې رسول الله ﷺ فرمایلي:

﴿لاتقوم الساعة حتى يمطر الناس مطرا عاما، ولاتنبت الارض شيئا﴾ (۱).

ژباړه:

قیامت به تر هغه وخته قایم نشي تر څو چې په خلکو ډیر زیات بارانونه ونشي. مګر زمکه به هیڅ شی نه را زرغونوي.

یقینا دا به داسې وي چې له زمکې څخه به برکت پورته شي، لکه څنګه چې نبي کریم ﷺ فرمایلي: قحط سالي دا نه ده چې باران نه وي، بلکه قحط سالي دا ده چې په خلکو به باران وریږي لیکن زمکه به څه نه را زرغونوي (۲).

## ﴿۹۲﴾ داسې فتنه کومه به چې عام عرب هلاک کړي

له کومو نښانو چې نبي ﷺ خبر ورکړی له هغوی څخه یوه نښانه یوه داسې لویه فتنه هم ده د کومې په ګیر کې به چې عام عرب راشي او په ډیر شمیر کې عرب به هلاک او برباد کړي.

---

[1] مسند احمد: ۳/ ۱٤۰. وسمند ابو یعلی: ۷/ ۳۰۳. وسلسلة الاحاديث الصحيحة: ۲. حدیث: ۲۷۷۳.

[2] د دې روایت امام احمد رحمه الله کړی. علامه هیثمي رحمه الله وایي د دې رجال صحیح دي.

حضرت عبد الله بن عمرو رضی الله عنهما بیان کوي چې رسول الله ﷺ فرمایلي:

﴿تکن فتنة تستنظف العرب، قتلاها فی النار، اللسان فیها اشد من وقع السیف﴾ (۱).

ژباړه : یوه داسې فتنه به ښکاره شي کومه به چې ټول عرب په قبضه کې واخلي، د دې فتنې وژونکي به جهنم ته ځي : او د دغې فتنې د ژبې تاثیر به له توري څخه زیات وي.

د (تستنظف العرب) معنا دا ده چې دا به ټول عرب تباه او برباد کړي، دا داستنظف الشی له محاورې څخه ماخوذ ده کومه چې په هغه وخت کې ویل کیږي کله چې یو شی کاملا په خپله قبضه کې را وستل شي.

(قتلاها فی النار) یعنې د دې فتنې مقتولین به د جهنم په اور کې وي، ځکه چې دغو خلکو به د شیطان اتباع او د خپلو خواهشاتو پیروي به یې کړې وي او د دنیا لپاره به جنګیدلي وي، د همدغه جنګ له امله به هغوی د عذاب جهنم مستحق جوړ شي، اګر که هغه د مسلمان او موحد په حیث مړه شي، هغوی ته به د جهنم سزا ورکول کیږي خو تل تر تله به د دوزخ په اور کې نه اوسیږي، له قتلاها څخه مراد په دغه فتنه کې وژل شوي خلک دي. داسې خلک د سخت وعید هدف جوړیږي. ځکه چې له دغه جنګ څخه به مقصود د دین سر بلندي، له کوم مظلوم څخه دفاع، یا د کوم مستحق مرسته کول نه وي، بلکه یواځې د سرکشي، د مال، منصب، حرص او هوس لپاره به وي.

---

۱ - مسند احمد : ۲/ ۲۱۱، وسنن اب داؤد، الفتن والملاحم، حدیث : ۴۲۲۵، وجامع الترمذي، الفتن، حدیث: ۲۱۷۸، وابن ماجه، الفتن، حدیث: ۳۰۲۷، والحدیث فیه مقال.

(اللسان) يعنې د ژبې تاثير. د هغې طعن او په همدې سره د جنګ لور ترغيب به د تورې له پريکولو زيات وي. په يوه بل روايت کې دي چې په دې وخت کې به د ژبې اوړوالی له تورې څخه زيات تاثير لري (۱).

## ﴿۹۳﴾ ﴿۹۴﴾ ﴿۹۵﴾ د مسلمانانو د نصرت لپاره د ونو او ډبرو خبرې کول او د مسلمانانو له يهودو سره جنګ کول

دا لوی جنګ به په اخره زمانه کې منځته راشي. په دې کې به مسلمانان برلاسي شي، په دې موقع به ونې او ډبرې نعرې وهي او مسلمانانو ته به وايي: اې مسلمانه! اې د الله بنده! دا زما تر شا يو يهودي پټ دی، زر راشه دا قتل کړه. يعنې په دغه جنګ کې به ونې او ډبرې هم له مسلمانانو سره د محبت او همدردي اظهار کوي او له هغوی سره به مرسته کوي، دا د الله تعالی له لوري د مسلمانانو نصرت او تاييد دی.

حضرت عبد الله بن عمر رضی الله عنهما بيان کوي چې رسول الله ﷺ فرمايلي:
﴿تُقَاتِلُكُمْ الْيَهُودُ فَتُسَلَّطُونَ عَلَيْهِمْ ثُمَّ يَقُولُ الْحَجَرُ يَا مُسْلِمُ هَذَا يَهُودِيٌّ وَرَائِي فَاقْتُلْهُ﴾ (۲).

ژباړه: يهود به له تاسو سره جنګ کوي مګر تاسو به پر هغوی غلبه وکړی، تر دې چې ډبرې به خبرې کوي او وايي به: اې مسلمانه! دا زما تر شا يو يهودي پټ دی، راشه دا قتل کړه.

د ونو او ډبرو داسې خبرې کول د قيامت له نښانو څخه دي. مګر يوه ونه به داسې وي چې د مسلمانانو په حق کې به نه وي. دا د غرقد ونه ده کومه چې د يهودو مرسته کوونکې ده.

---

۱- د دغه حديث د زيات تشريح لپاره وګورئ مرقاة المفاتيح شرح مشکوة المصابيح: ۹/۲۸۱.
۲- صحيح البخاري، المناقب، حديث: ۳۵۹۳. وصحيح مسلم، الفتن، حديث: ۲۹۲۱. واللفظ له.

حضرت ابو هريرة ﷺ بيان کوي چې رسول الله ﷺ فرمايلي:

قيامت تر هغه وخته نه قايميږي تر څو چې مسلمانانْ له يهودو سره جنګ ونه کړي، مسلمانان به يهود ووژني. تر دې چې يو يهودي به د کومې ډبرې يا ونې شا ته به پټ وي خو هغه ونه يا ډبره به نعرې کړي : اې مسلمانه ! دا زما تر شا يو يهودي پټ دی، راشه دا ووژنه. دا نعره به د غرقد ونه نکوي، ځکه چې هغه د يهودو مرسته کوونکې ده.

د يوه بل روايت الفاظ داسې دي:

تر هغه وخته قيامت نه قايميږي تر څو چې تاسو له يهودو سره جنګ ونه کړی، تر دې چې هغه ډبره به هم د کومې تر شا چې يهودي پټ وي داسې به وايي: اې مسلمانه ! دا زما تر شا يو يهودي پټ دی. راشه دا ووژنه (۱).

د ونو او ډبرو دا خبرې به حقيقي وي. ځکه چې الله تعالی جماداتو ته د خبرو کولو قوت په ورکړه قادر دی، د جماداتو داسې خبرې کول د قيامت له نښانو څخه دي.

حضرت نهيک بن صريم ﷺ بيان کوي چې رسول الله ﷺ فرمايلي:

تاسو به له مشرکينو سره جنګ وکړی. تر دې چې په تاسو کې بچ شوي به د اردن په درياب باندې له دجال او د هغه له لښکر سره وجنګيږي. تاسو به د درياب په مشرقي لوري کې ياست او هغه به د درياب په مغربي لوري کې.

حضرت نهيک بن صريم وايي : زه نه پوهيږم چې په دغه ورځ به د اردن درياب چيرته واقع وي؟ (۲).

له دې څخه مراد هغه درياب دی کوم چې مقبوضه فلسطين او اردن له يوه بل سره جلا کوي.

---

[۱] - صحيح البخاري، الجهاد والسير، حديث: ۲۹۲۶.

[۲] - سلسلة الاحاديث الضعيفة: ۳/ ۴۲۰، حديث: ۱۲۹۷.

## ﴿۹۶﴾ د فرات له سیند څخه د سرو زرو د غره ښکاره کیدل

د فرات سیند یو مشهور سیند دی. په هغه کې اوبه رواني دي. نبي کریم ﷺ خبر ورکړی چې د قیامت له نښانو څخه دا هم ده چې د دغه سیند اوبه به خپله لار بدله کړي او له هغه څخه به د سرو زرو غر ښکاره شي. خلک به د دغو سرو زرو لپاره جنګیږي او د هغوی لوی شمیر به په همدې جنګ کې ووژل شي.

نبي کریم ﷺ خبر ورکړی هر څوک چې په دغه وخت کې حاضر وي نو د دغه مال په اخستلو کې دې محتاط اوسي. ځکه چې په کومه فتنه کې مبتلا نشي یا د هغه له امله کوم جنګ شروع نکړي.

حضرت ابو هریرة رضي الله عنه بیان کوي چې رسول الله ﷺ فرمایلي:

﴿لا تقوم الساعة حتى يحسر الفرات عن جبل من ذهب يقتتل الناس عليه فيقتل من كل مائة تسعة وتسعون ويقول كل رجل منهم لعلي أكون أنا الذي أنجو﴾ [۱].

ژباړه: قیامت تر هغه وخته نه قایمیږي تر څو چې د فرات له سیند څخه د سرو زرو غر ښکاره نشي. خلک به د همدغو سرو لپاره جنګ کوي. د دغه جنګ په نتیجه کې به ۹۹ فیصده خلک ووژل شي. په دې کې به د هر چا دا هیله وي چې شاید هغه ژوندی بچ پاتې شي.

او په بوه بل روایت کې داسې دي: هر څوک چې په دې موقع باندې موجود وي هغه ته پکار دي چې له دې څخه کوم شی وانخلي [۲].

حضرت ابی بن کعب رضي الله عنه وایي: خلک همیشه د مال جمع کولو لپاره خپل سرونه قربانوي، ما له رسول الله ﷺ څخه دا آوریدلي چې فرمایل یې:

---

[۱] صحیح مسلم، الفتن، حدیث: ۲۸۹۴.

[۲] صحیح البخاري، الفتن، حدیث: ۷۱۱۹، وصحیح مسلم، الفتن واشراط الساعة، حدیث: ۲۸۹۴.

نږدې ده چې د فرات سیند به د سرو غر ښکاره کړي. کله چې خلک د هغه په باره کې خبرې آوري نو د هغه لور ته به ور روان شي. کله چې هلته ورسیږي نو هغوی به د دغه مال ترلاسه کولو لپاره په خپل منځ کې جنګ شروع کړي. د دغه جنګ په نتیجه کې به ۹۹ فیصده انسانان قتل کړی شي (۱).

په حدیث مذکور کې لفظ د (انحسار) په معنا د انکشاف سره ده او هغه به حقیقي غر او د اصلي سرو به وي. د دغو سرو د ښکاره کیدو سبب به دا وي چې دریاب به د خپلو اوبو د بهیدو رخ بدل کړي. له دې مخکې دا طلائي غر د ختې له وجهې پټ دی. مګر کله چې اوبه خپله لار بدله کړي نو الله تعالی به هغه را ښکاره کړي.

هر څوک چې هلته موجود وي پر هغوی لازم دي چې هغه له دې سرو څخه څه وانخلي. تر څو چې له فتنې او خونریزي څخه بچ شي، دا فتنه تر اوسه نه ده ښکاره شوې او الله تعالی ښه پوهیږي چې کله به واقع کیږي.

په موجوده وخت کې د ترکیې او شام هیوادونو د فرات په سیند باندې بند تعمیرونه جوړ کړي او له هغه سره نږدې یې مختلفې کار خانې جوړې کړې. له همدې امله په نوموړې سیند کې اوبه کمې شوې دي. ممکنه ده چې دا د سرو د هغه غره د ښکاره کیدو یوه نمونه وي.

## ﴿۹۷﴾ کوم انسان چې فسق او فجور نه کوي هغه به عاجز ګڼل کیږي

له کومو نښانو څخه چې د الله تعالی رسول ﷺ خبر ورکړی له هغوی څخه یوه دا هم ده چې انسان ته به اختیار ورکړی شي چې هغه د فسق او فجور ارتکاب کوي او که غیر مهذب. عاجز او د کمزورۍ الزام قبلوي. نبي کریم ﷺ له دغو فتنو خبر ورکړی او خلکو ته یې داسې هدایت کړی

---

۱ صحیح مسلم. الفتن واشراط الساعة. حدیث: ۲۸۹۵.

چې هغوی دې د عاجز کېدو الزام قبول کړي مګر په فسق او فجور کې د ځان له مبتلا کېدو دې انکار وکړي.
حضرت ابو هريرة ﷜ بيان کوي چې رسول الله ﷺ فرمايلي:

﴿يأتي عليكم زمان يخير فيه الرجل بين العجز والفجور فمن أدرك ذلك الزمان فليختر العجز على الفجور﴾ (۱).

ژباړه: په خلکو به يوه داسې زمانه هم راشي په کومه کې به چې يوه انسان ته په بدکارۍ يا عجز کې د يوه د انتخاب اختيار ورکړی شي. هر څوک چې دغې زمانې ته پاتې شي هغه ته پکار دي چې عاجز جوړ شي مګر له فسق او فجور څخه دې ځان وساتي.

دا نښانه زمونږ په زمانه کې ښکاره شوې. مثلاً: نن صبا چې کومه ښځه د حجاب پابندي کوي نو په هغې دا طعن ويل کيږي چې دا څومره عاجزه ښځه ده: او څوک چې د تېي وي د مردارو چينلونو له کتو څخه پرهيز کوي پر هغوی دا طعن ويل کيږي: دې کوچي ته وګورئ! دی هم د ترقي مخالف دی. نتيجه دا شوه چې انسان به په دوو خبرو کې يوه غوره کوي. يا به له نورو خلکو سره په فسق. فجور او بدکاريو کې ځان ور سره شريکوي نو د خلکو له تهمت او طعن به محفوظ وي. يا به د الله تعالى د راضي کولو لپاره پر ځان د عاجز. کمزورۍ او بنياد پرست الزام برداشت کوي او له ګناه څخه به ځان ليرې ساتي.

---

۱- مسند احمد: ۲/ ۲۷۸. و سلسلة الاحاديث الضعيفة. حديث: ۵۸۴۲.

**﴿۹۸﴾ په جزیرة العرب کې د مالچر او نهرونو ظهور (ښکاره کېدل)**

د جزیرة العرب لیدونکي پوهیږي چې دغه علاقه ټوله تقریباً ۷۰ فیصده له آبادي څخه خالي او خوشې صحرا ده، نبي کریم ﷺ دا خبر ورکړی چې د قیامت له نښانو څخه دا هم ده چې په جزیرة العرب کې به مالچر او نهرونه ښکاره شي.

حضرت ابو هریرة رضي الله عنه بیان کوي چې رسول الله ﷺ فرمایلي:

﴿لا تقوم الساعة حتى تعود أرض العرب مروجا وأنهارا وحتى يسير الراكب بين العراق ومكة لا يخاف الا ضلال الطريق وحتى يكثر الهرج قالوا وما الهرج يا رسول الله قال القتل﴾ (۱).

ژباړه:

قیامت به تر هغه وخته قایم نشي تر څو چې د عربو زمکه په مالچر او نهرونو بدله نشي او تر څو چې یو سپور د عراق او مکې په مینځ کې د سفر کولو په وخت کې د لارې له ورکولو پرته د بل هیڅ شي له نقصان رسولو ویره ونه لري: او تر څو چې (هرج) زیات نشي، صحابه کرامو عرض وکړ: اې د الله رسوله ﷺ! دا هرج څه شی دی؟ رسول الله ﷺ وفرمایل: قتل او خونریزي.

له حضرت ابو هریرة رضي الله عنه څخه یو قول داسې هم راغلی چې د الله تعالی رسول الله ﷺ فرمایلي:

قیامت به قایم نشي تر څو چې مال زیات نشي. د مال زیاتوالی به دومره وي چې یو سړی به خپل د زکاة مال واخلي او د یوه حاجتمند سړي تلاش به کوي مګر داسې څوک به پیدا نکړي چې هغه د ده مال قبلولو ته تیار وي او تر څو چې د عربو زمکه مالچر او د نهرونو زمکه جوړه نشي (۲).

---

[1] - مسند احمد: ۲/ ۲۸۷. و سلسلة الاحادیث الضعیفة. حدیث: ۵۸۴۲.

[2] - صحیح مسلم. الزکاة. حدیث: ۱۵۷.

حضرت معاذ بن جبل رضي الله عنه بيان كوي چې مونږ خلک د تبوک د غزا په كال له نبي كريم ﷺ سره يو ځای د جهاد په سفر د تبوک په لور روان شوو. نبي كريم ﷺ لمنځونه جمع كړل. نبي كريم ﷺ د ماسپښين، مازديګر، ماښام او ماسخوتن لمنځونه يو ځای اداء كړل. يوه ورځ نبي كريم ﷺ لمونځ وروسته كړ. بيا راووت د ماښام او ماسخوتن لمنځونه يې يو ځای اداء كړل. له دې وروسته نبي كريم ﷺ خپلو ملګرو ته وويل: تاسې خلک به صبا انشاء الله د تبوک چينې ته ورسيږئ. تاسو به د لمر له را پورته كيدو وروسته هلته ورسيږئ، په تاسو كې چې هر څوک هلته ورسيږي هغوی ته پكار دي چې هغوی د هغې چينې اوبه زما تر راتګ پورې استعمال نكړي.

حضرت معاويه رضي الله عنه فرمايي: كله چې مونږ خلک هلته ورسيدو چې ګورو دوه نفر له مونږ څخه د مخه هلته رسيدلي دي. له چينې څخه يې اوبه په ډير تكليف سره لږ لږ را ويستلې دي، نبي كريم ﷺ له هغو دواړو پوښتنه وكړه: آيا تاسو دا اوبه استعمال كړې دي؟ هغوی وويل: هو، نبي كريم ﷺ له دې داوړو كسانو څخه د ډير سخت خفګان او ناراضي اظهار وكړ. بيا صحابه كرامو رضی الله عنهم د چينې اوبه په خپلو لاسونو لږ لږ را جمع كړې تر دې چې اوبه په يو څه مقدار كې سره جمع شوې. رسول الله ﷺ په هغو اوبو باندې خپل مخ مبارک او لاسونه پريمنځل او بيا يې بيرته چينې ته ور واچولې. د اوبو له اچولو سره چينه را ډكه شوه او په ډير تيزي سره يې د بهيدلو حركت وكړ. د لښكر خلک ښه سيراب شول. په دې موقع د الله رسول ﷺ وفرمايل:

اې معاذ! كه چيرته د ستا عمر وفا وكړي نو ته به ووينې چې دا تبوله سيمه به له باغونو او ابادي څخه ډكه شي (۱).

---

۱- صحيح مسلم، الفضائل، حديث: ۷۰۲، قبل الحديث: ۱۳۹۲.

د تبوک په مقام کې د حضرت نبي کريم ﷺ حضرت معاذ رضی الله عنه ته دا الفاظ ويل: اې معاذ! که چيرته د ستا عمر وفا وکړي نو ته به ووينې چې دا ټوله سيمه به له باغونو او آبادي څخه ډکه شي. د دې خبرې نتيجه نن ورځ د لويو لويو زرعي سکيمونو په صورت کې زمونږ مخته ده. کوم چې د تبوک تر ليرې ليرې سيمو پورې رسيدلې دي.

## ﴿۹۹﴾ ﴿۱۰۰﴾ ﴿۱۰۱﴾ د جنګ او جدال فتنې، د خوشحالي او پراخي فتنې او د يوې تورې فتنې ظهور (ښکاره کيدل)

نبي کريم ﷺ خبر ورکړی چې قيامت تر هغه وخته نه قايميږي تر څو چې درې فتنې ښکاره نشي:

حضرت عبد الله بن عمر رضى الله عنهما بيان کوي چې مونږ خلک يو ځل له نبي کريم ﷺ سره ناست وو. نبي کريم ﷺ د فتنو ذکر په تفصيل سره وکړ:

﴿حتى ذكر فتنة الأحلاس فقال قائل يارسول الله وما فتنة الأحلاس ؟ قال " هي هرب وحرب ثم فتنة السراء دخنها من تحت قدمي رجل من أهل بيتي يزعم أنه مني وليس مني وإنما أوليائي المتقون ثم يصطلح الناس على رجل كورك على ضلع ثم فتنة الدهيماء (تصغير الدهماء) لا تدع أحدا من هذه الأمة إلا لطمته لطمة فإذا قيل انقضت تمادت يصبح الرجل فيها مؤمنا ويمسي كافرا حتى يصير الناس إلى فسطاطين (المدينة التي يجتمع فيها الناس) فسطاط إيمان لا نفاق فيه وفسطاط نفاق لا إيمان فيه فإذا كان ذاكم فانتظروا الدجال من يومه أو من غده﴾ (۱).

---

[۱] سنن ابی داؤد. الفتن. والملاحم. حديث: ۴۲۴۲. وسلسلة الاحاديث الصحيحة: ۲. ۷۰۲. حديث: ۷۲.

ژباړه: بيا نبي کريم ﷺ د فتنې احلاس ذکر وکړ. يوه سړي پوښتنه وکړه: يا رسول الله ﷺ! فتنه احلاس څه شی ده؟ نبي کريم ﷺ وفرمايل: دا د جنګ او جدال فتنه ده. بيا به يوه د خوشحالي فتنه ښکاره شي کومه به چې د يوه داسې سړي له قدمونو څخه را پورته شي کوم به چې زما له اهل بيت څخه وي. هغه به په خپله له ما سره په تعلق لرلو ګمان کوي. اما په اصل حقيقت کې به يې له ما سره هيڅ تعلق نه وي، زما دوست يواځې هغه څوک دی کوم چې متقي وي. بيا به خلک د يوه داسې سړي په بيعت کې راپوته شي کوم به چې بې علمه. کم عقل او کم همته وي. د دغې فتنې اثر او ضرر به زما د امت هر سړي ته ورسيږي او هيڅوک به ترينه بچ نشي. کله هم چې يو څوک ووايي دا فتنه ختمه شوه نو هغه به له پخوا څخه هم شدت اختيار کړي. يو انسان به سهار مؤمن وي او ماښام به کافر شي. خلک به په دوو ډولو تقسيم شي. يو ايمان لرونکي په کومو کې به چې نفاق نه وي او دويم د نفاق خاوندان کوم به چې له ايمان څخه بالکل خالي وي. کله چې دا حالات پيدا شي نو په دغه وخت کې دجال ته انتظار کول دي. په دغه ورځ به راځي يا به په راتلونکي ورځ کې ښکاره شي

(الاحلاس) د حلس جمع ده. حلس هغې غنې جامې ته ويل کيږي کومه چې په اوښ باندې له کجاوې وروسته اچول کيږي. همدا شان به دا فتنه هم خلک ونيسي او د هغوی تن به نه پرېږدي. دا فتنه به د حلس په څېر تاريک (توره) هم وي.

(هرب) د ها او را په زور سره. يعنې هغوی به له يوه بل څخه تښتي. ځکه چې د هغوی تر مينځ به دښمني وي

(حرب) معنی يې ده د يو چا مال. اهل او عيال نيول او بيا يې په داسې طريقه پريښودل چې له هغوی سره هيڅ هم نه وي.

(ثم فتنة السراء) بیا به د خوشحالي فتنه راشي، یعنې د صحت، عافیت، امن او عافیت. د کومو له امله به چې ځینې خلک په فتنه کې مبتلا شي او د ګناهونو مرتکب به شي.

(دخنها) یعنې د هغه ظهور او جوش.

(من تحت قدمی رجل من اهل بیتی) یعنې هغه څوک د کوم له قدمونو څخه به چې د دغه فتنې اور را پورته شي. د نبي کریم ﷺ له اهل بیت څخه به وي، په دې کې د دې خبرې لور ته تنبیه ده چې څوک دغې فتنې ته د هوا ورکولو لپاره راشي هغه به زما له اهل بیت څخه وي.

(یزعم انه مني) یعنې هغه به په خپله زما د نسب خیال کوي، لیکن د خپلو بدو عادتونو له امله به هغه له ما څخه نه وي، زه د هغه له اعمالو او افعالو څخه بیزار یم، اګر که هغه په نسبي ډول له ما څخه ولې نه وي. په اصل حقیقت کې هغه زما له دوستانو څخه نه دی، زما دوست یواځې هغه څوک دی کوم چې د تقوه او پرهیزګاري اختیاره وونکی وي.

(ولیس مني) یعنې هغه زما له دوستانو څخه نه دی. ځکه چې هغه د فتنې پیدا کولو سبب جوړیږي. له همدې قبیلې هغه خبره هم ده کومه چې حضرت نوح علیه السلام ویلې ده:

﴿إِنَّ ابْنِي مِنْ أَهْلِي﴾ [1].

ژباړه:

اې ربه زما بیشکه چې ځوی زما له اهله زما څخه دی.

الله تعالی جل جلاله فرمایي:

﴿إِنَّهُ لَيْسَ مِنْ أَهْلِكَ ۖ إِنَّهُ عَمَلٌ غَيْرُ صَالِحٍ ۖ﴾ [1].

---

[1] هود. آیة ۴۵.

ژباړه: بیشکه چې ځوی نه دی له اهله ستا (چې مؤمنان دي) بیشکه دی خاوند د عمل نا کاره دی.

(ثم یصطلح الناس علی رجل) بیا به خلک د یوه سړي په بیعت او اطاعت کې سره را جمع شي.

(علی ضلع) جمع یې ضلوع او اضلاع ده. ضلع د سینې هډوکي ته ویل کیږي. یعنې پښتۍ ته. مطلب دا چې د خلکو حال به له دغه سړي سره سم نه وي. لکه څرنګه چې یو دروند (وزن لرونکی) شی په دغه هډوکي د پاسه نشي کېښودل کیدای. ځکه چې دا هډوکی کمزورې وي د دروند شي تاب نلري.

یعنې خلک به له اختلاف او فساد څخه وروسته د یوه داسې سړي واکمنې قبوله کړي کوم به چې د بادشاهي دغې لوی ذمه واري لپاره بیخي مناسب نه وي. هغه به کم علمه او کم عقل وي. د هغه په ذریعه به د حکومت نظام نشي جوړیدای او نه به هغه د حکومت په امورو او معاملاتو سم پوهیږي.

(فتنة الدهیماء) یعني توره او لویه فتنه.

(الا لطمته لطمة) یعنې په خلکو کې به هیڅوک له دغه مصیبت او بلا څخه بچ پاتې نشي. (اللطم) مطلب دا چې د دغې تورې فتنې اثر به هر سړي ته ورسیږي.

(فاذا قیل: انقضت) یعنې کله چې خلک دا ګمان وکړي چې اوس هغه فتنه ختمه شوې. (تمادت) هغه به نوره هم زیاته شي او خپره به شي.

---

[1] - هود، آیة: ۴۶.

(يصبح الرجل فيها مؤمنا ويمسى كافرا) يعنې د سهار په وخت کې به هغه د خپل ورور قتل حرام (ناروا) بولي او د هغه په عِزت او مال باندې به له تيري کولو ځان ساتي. مګر د همدغې ورځې د ماښام راتلو په وخت کې به هغه بيا د خپل ورور قتل روا بولي او د هغه په عزت او مال باندې به حمله کوونکی وي.

(الى فسطاطين) «فسطاط» په عربي کې خيمې ته ويل کيږي. يعنې په دغه فتنه کې به خلک په دوو ډلو تقسيم شي. د بل قول مطابق د دغه تشريح دا هم ده: چې خلک به په دوو ښارونو کې سره تقسيم شي.

(فسطاط ايمان لا نفاق فيه) خالص او صفا د ايمان لرونکو ډله. په کومه کې به چې د منافقت شائبه نه وي.

(فسطاط نفاق لا ايمان فيه) بله ډله به د منافقينو وي. مثلا دروغ، خيانت او وعده خلافي به کوي.

(فانتظروا الدجال) يعنې په دې وخت کې د دجال را ښکاره کيدو ته انتظار کوی.

دا فتنه تر دا مهاله نه ده ښکاره شوې. مونږ له الله تعالی څخه غواړو چې اې الله مونږ د دغې فتنې له شر څخه محفوظ وساتې.

## ﴿ ١٠٢ ﴾ داسې زمانه په کومه کې به چې يوه سجده له دنيا او د دنيا له ټولو خزانو بهتره وي

دا نښانه به د قرب قيامت او د حضرت عيسی عليه السلام د نزول له زمانې وروسته ښکاره شي. د حضرت عيسی عليه السلام زمانه به ډيره د فضيلت زمانه وي. عبادتونه به هم ډير فضيلت لري. ځکه چې د وخت او مقام د شرف او فضيلت مطابق په عبادتونو کې هم اجر او ثواب زيات وي.

حضرت ابو هريرة رضي الله عنه بيان کوي چې رسول الله صلی الله عليه وسلم فرمايلي:

﴿وَالَّذِي نَفْسِي بِيَدِهِ لَيُوشِكَنَّ أَنْ يَنْزِلَ فِيكُمْ ابْنُ مَرْيَمَ حَكَمًا عَدْلًا فَيَكْسِرَ الصَّلِيبَ وَيَقْتُلَ الْخِنْزِيرَ وَيَضَعَ الْجِزْيَةَ وَيَفِيضَ الْمَالُ حَتَّى لَا يَقْبَلَهُ أَحَدٌ حَتَّى تَكُونَ السَّجْدَةُ الْوَاحِدَةُ خَيْرًا مِنْ الدُّنْيَا وَمَا فِيهَا ثُمَّ يَقُولُ أَبُو هُرَيْرَةَ وَاقْرَءُوا إِنْ شِئْتُمْ ﴿ وَإِنْ مِّنْ أَهْلِ الْكِتَٰبِ إِلَّا لَيُؤْمِنَنَّ بِهِۦ قَبْلَ مَوْتِهِۦ ۖ وَيَوْمَ الْقِيَٰمَةِ يَكُونُ عَلَيْهِمْ شَهِيدًا ﴿١٥٩﴾ ﴾[1].

ژباړه:

په هغه الله قسم د کوم په قبضه کې چې زما روح دی. نږدې ده چې په تاسو کې به حضرت عيسی عليه السلام يو عادل حکمران جوړ شي او را نازل به شي، هغه به صليب مات کړي. خنزير به قتل کړي او جزيې به ختم کړي[2]، په دې وخت کې به مال دومره زيات شي چې د هغه د قبلولو لپاره به څوک نه وي، په دغه زمانه کې به يوه سجده له دنيا او د دنيا له ټولو خزانو ډيره قيمتي وي. حضرت ابو هريرة رضي الله عنه د دغه حديث له بيانولو وروسته

---

[1] النساء، آيه: ١٥٩.

[2] - مطلب دا چې حضرت عيسی عليه السلام به له اسلام پرته بل دين به نه پريږدي. همدا شان عيسايانو ته به هم دا اجازه نه وي چې هغوی پر خپل دين باقي پاته شي. تر څو که هغوی جزيه هم ورکوي.

وفرمایل : که تاسو غواړی نو تاسو دغه آیت کریمه تلاوت کړی .:: او نشته هم څوک له اهل د کتابه مګر قسم دی هرو مرو چې ایمان به راوړي دوی خامخا (په وخت د نزغې خپلې یا په وخت د نزول د عیسی) پر دغه (عیسی) پخوا له مرګه د ده څخه او په ورځ د قیامت کې به وي (عیسی) پر دوی باندې شاهد (چې جهودانو نه منلم او نصرانیانو ابن الله وبللم) (۱).

د رسول الله ﷺ د دغه فرمان چې په دغه زمانه کې به یوه سجده له دنیا او د دنیا له ټولو خزانو قیمتي وي معنا دا ده چې په خلکو کې به د لمانځه او د نورو عبادتونو رغبت ډیر شي. ځکه چې هغوی به له دنیا څخه بې رغبته شي. د هغوی خواهشات به کم شي او د قیامت په نږدې والي به یې یقین شي.

قاضي عیاض رحمه الله ویلي: د دغې معنا دا ده چې په دغه زمانه کې به د یوې سجدې اجر او ثواب د دنیا او په دنیا کې د موجودو شیانو له صدقه کولو ډیر وي. له دې امله چې په دغه زمانه کې به مال ډیر زیات وي. په خلکو کې به حرص او بخل کم وي. خلک به د دنیا مال په جهاد کې مصرفوي او په خپله به د هغه مال په لالچ کې نه وي. له سجدې څخه مراد یا سجده ده یا له هغې څخه مراد لمونځ دی (والله اعلم) (۲).

[1] صحیح البخاری، احادیث الانبیاء، حدیث ۳۴۴۸ وصحیح مسلم، الایمان، حدیث ۱۵۵

[2] شرح صحیح مسلم للامام النووي

## ﴿۱۰۳﴾ د لومړۍ شپې سپوږمۍ به غټه تر سترګو کيږي

(الاهلة) د هلال جمع ده او هلال د مياشتې په شروع کې د لومړۍ شپې سپوږمۍ ته ويل کيږي. دا سپوږمۍ د قمري مياشتې په اوله شپه وړه (کوچنۍ) تر سترګو کيږي. بيا د مياشتې تر ۱۵ پورې په تدريج غټيږي، بيا د مياشتې له ۱۵ وروسته په تدريج کوچنۍ کيږي.

د قيامت له نښانو څخه دا هم ده چې د لومړۍ شپې سپوږمۍ به غټه تر سترګو کيږي. يعنې سپوږمۍ به په اوله شپه لويه تر سترګو کيږي. خلک به د لومړۍ شپې په سپوږمۍ باندې د ډيرو شپو د سپوږمۍ ګمان کوي.

حضرت ابو هريرة ﵁ بيان کوي چې رسول الله ﷺ فرمايلي:

﴿ان من اشراط الساعة انتفاح الاهلة، حتى يرى الهلال لليلة فيقال: هو ابن ليلتين﴾ (۱).

ژباړه:

د قيامت له نښانو څخه دا هم ده چې سپوږمۍ به لويه تر سترګو کيږي، د لومړۍ شپې سپوږمۍ چې وليدل شي نو ويل کيږي به: دا خو د دوو شپو سپوږمۍ ده.

## ﴿۱۰۴﴾ د ټولو خلکو د شام لوري ته هجرت کول

د شام اطلاق نن په سوريا او د هغه په ګاونډيو هيوادونو لبنان، اردن او فلسطين باندې کيږي. د شام زمکه د حشر او نشر زمکه ده. په دغه زمکه کې ډير انبياء راغلي. شام او د شام اوسيدونکي يو خاص قدر او منزلت لري. نبي کريم ﷺ فرمايلي:

﴿إذا فسد أهل الشام فلا خير فيكم لا تزال طائفة من أمتي منصورين لا يضرهم من خذلهم حتى تقوم الساعة﴾ (۱)

---

(۱) المعجم الاوسط للطبراني: ۷/ ۴۴۱. و سلسلة الاحاديث الصحيحة: ۵/ ۳۷۲. حديث: ۲۲۹۲.

ژباړه: کله چې د شام په اوسیدونکو کې خرابوالی راشي نو په تاسو کې به هیڅوک د خیر رسونکی نه وي. زما په امت کې به یوه ډله تر قیامته پورې فاتحه وي. هغوی ته به رسوا کوونکي هیڅ رنګه نقصان نشي رسولای تر دې چې قیامت راشي.

همدا وجه ده چې نبي کریم ﷺ په شام کې د اوسیدا په اختیارولو وصیت کړی. ځکه چې له قیامت سره په نږدې زمانه کې به شام د اهل اسلام (مسلمانانو) قوي او مضبوط مرکز وي.

حضرت ابو الدرداء بیان کوي چې رسول الله ﷺ فرمایلي:

د فتنو په ورځو کې به د مسلمانانو مرکز (غوطه) وي کوم چې د دمشق نامې ښار په یوه لوري کې ده او هغه د شام بهترین ښار دی (۲).

(فسطاط) په اصل کې خیمې ته ویل کیږي او دلته ترې مراد د مسلمانانو مرکز او د هغوی د را جمع کیدا ځای دی. مسلمانان به په هغه لوی جنګ کې کوم به چې د مسلمانانو او د یهودو تر مینځ کیږي همدلته سره را جمع کیږي.

(غوطه) د یوه ښار نوم دی. کوم ته چې نن صبا غوطه دمشق ویل کیږي او دمشق یو مشهور ښار دی کوم چې نن صبا د سوریې (شام) دارالحکومت دی.

په حدیث کې مذکور جنګ به یا د مهدي له ظهور د مخه کیږي یا به د مهدي په زمانه کې کیږي یا به په بله کومه زمانه کې کیږي. نبي کریم ﷺ د شام په زمکه کې د اوسیدو ترغیب له دې امله ورکړی چې دا زمکه د محشر او د مؤمنانو مرکز دی. یوه صحابي له رسول الله ﷺ څخه مشوره وغوښته چې دی د کومې علاقې په لور هجرت وکړي او چیرته اوسیدل

---

[1] جامع الترمذي. الفتن. حدیث: ۲۱۹۲. وقال الترمذي: حدیث حسن صحیح.

[2] - مسند احمد: ۵/ ۱۹۰. وسنن ابي داؤد. الملاحم. حدیث: ۴۲۹۸. وصححه الالباني في صحیح ابي داؤد.

اختيار کړي؟ نبي کريم ﷺ ورته د شام په لور د هجرت کولو او هلته د اوسيدا مشوره ورکړه
حضرت بهز بن حکيم له خپل پلار څخه او هغه له خپل ترد څخه روايت کوي چې هغه فرمايلي: ما عرض وکړ يا رسول الله ﷺ ما ته په کوم ځای کې د اوسيدو حکم کوې؟ نبي کريم ﷺ د شام لور ته اشاره وکړه او وې فرمايل: هلته (۱).

د قيامت له راتلو د مخه به د مؤمنانو اکثريت هلته هجرت وکړي. بلکه هر مؤمن به هلته ولاړ شي.

حضرت عبد الله بن عمرو رضی الله عنهما ويلي: يو داسې زمانه به راشي چې هر مؤمن به د شام پر لور ولاړ شي (۲).

## ﴿۱۰۵﴾ ﴿۱۰۶﴾ د مسلمانانو او روميانو تر مينځ يو لوی جنګ او د قسطنطنيه فتح

د مسلمانانو او رومي عيسايانو متعلق تاريخ له واقعاتو او حوادثو ډک دی. په هغه کې صلح هم شته او جنګ هم شته، د امن زمانه هم شته او د قتل زمانه هم شته. نن ورځ د مسلمانانو او عيسايانو تر مينځ له يوه بل سره تعلقات يقيني نه دي. دا په صلح او جنګ بدليدلای شي. نبي کريم ﷺ خبر ورکړی چې د قيامت له نښانو څخه د مسلمانانو او روميانو تر مينځ يو ډير لوی جنګ هم دی او دا جنګ به د مهدي له ظهور څخه د مخه وي. نبي کريم ﷺ د هغه نوم (الملحمة الکبری) ياد کړی. مسلمانان به په دغه جنګ کې د فتحې له ترلاسه کولو وروسته د قسطنطنيه په لور پيش قدمي وکړي او هغه به هم فتح کړي او بيا به له دې وروسته دجال را ښکاره شي.

---

۱ جامع الترمذي، الفتن، حديث ۲۱۹۲، وقال: حديث حسن صحيح، وصححه الحاکم.
۲ المصنف لابن ابی شيبة موقوفا ۴ / ۲۱۷. ولا يصحح مرفوعا. وهذا الاثر لا يقال من قبل الرای فله حکم الرفع، ولا باس باسناده موقوفا.

**حضرت معاذ بن جبل ﷺ بیان کوي چې رسول الله ﷺ فرمايلي:**

﴿عمران بيت المقدس خراب يثرب وخراب يثرب خروج الملحمة وخروج الملحمة فتح قسطنطينية وفتح القسطنطينية خروج الدجال﴾ (۱).

ژباړه:

**د بيت المقدس آبادي په اصل کې د مدينې بربادي ده. مدينه چې برباده شي نو يو لوی جنګ به شروع شي. هغه جنګ به شروع شي چې قسطنطنيه به فتح شي او کله چې قسطنطنيه فتح شي نو بيا به ډير زر دجال را ښکاره شي.**

**نبي کريم ﷺ فرمايلي:**

**تاسو خلک به له روميانو سره صلح وکړی. بيا به تاسو او هغه سره يو ځای شی او له خپل يوه دښمن سره به جنګ وکړی، تاسو به په دې جنګ کې فاتح او کامياب شی. د غنيمت مال به تر لاسه کړی او روغ جوړ به ياست. بيا به تاسو د جنګ له ميدان څخه واپس بيرته راشی. تر دې چې تاسو او عيسايان به په يوه ځای کې پړاو واچوی په کوم کې به چې شګې هم وي (۲).**

**بيا به په عيسايانو کې يو کس صليب پورته کړي او وبه وايي چې صليب غالب شو. په دې به يو مسلمان په غصه شي او را به شي او صليب به ټوټه ټوټه کړي. په دې واقعه به عيسايان په غصه شي او د**

---

[1]- سنن ابی داؤد. الملاحم. حديث: ۴۲۹۴. وحسنه الالبانی فی صحيح ابی داؤد. وقد تفرد به عبد الرحمن بن ثابت عن ابيه عن مکحول.

[2]- يعنې په يوه لوړ ځای به پړاو واچوی. په اهل علمو کې داسې څوک نه دي پيدا شوي چې د دغه ځای تعين يې کړی وي. ظاهرا داسې معلومېږي چې دا ځای به (مرج دابق) وي، لکه څرنګه چې په يوه بل حديث کې راغلي په کوم کې چې نبي کريم ﷺ فرمايلي (لن تقوم الساعة حتى ينزل الروم بالاعماق او بدابق) قيامت تر هغه وخته نه قايميږي تر څو چې عيسايان په اعماق يا دابق په مقام کې سره را جمع نشي. (صحيح مسلم. الفتن واشراط الساعة. حديث: ۲۸۹۷).

جنګ لپاره به جمع شي. ځینې راویانو دا بیان هم کړی چې په دغه وخت کې به مسلمانان هم په جوش کې راشي او له هغوی سره د جنګ کولو لپاره به ځان تیار کړي او الله تعالی به د مسلمانانو دغه ټولي ته شهادت نصیب کړي (۱).

په صحیح مسلم کې د دغې واقعې تفصیل څه دارنګه دی. حضرت ابو هریرة ﷺ بیان کوي چې رسول الله ﷺ فرمایلي:

قیامت تر هغه وخته نه قایمیږي تر څو چې عیسایان د اعماق یا دابق په مقام کې پړاو وا نه اچوي. دا ځای د حلب نامي ښار سره نږدې واقع دی. د جنګ ځای همدغه دی. له عیسایانو سره د مقابلې لپاره به له مدینې څخه یو لښکر روان شي کوم به چې د دغې زمانې په بهترینو خلکو مشتمل وي، هر کله چې دواړه لښکرې له یوه بل سره مخامخ شي نو عیسایان به ووایي: مونږ له هغو خلکو سره جنګ کوو کوم چې له مونږ څخه نیول شوي دي. د عیسایانو له دې خبرې معلومیږي چې د عیسایانو او مسلمانانو تر مینځ به له دې د مخه هم ډیر جنګونه شوي وي. په کوم کې به چې مسلمانان فاتح شوي وي او عیسایان به یې قیدیان نیولي وي او هغه قیدیان به مسلمانان شوي وي او په دغه وخت کې به په اسلامي لښکر کې شامل وي او له عیسایانو سره د جهاد کولو لپاره به راغلي وي. مګر مسلمانان به ووایي: نه په الله قسم ! مونږ به هیڅکله خپل ورونه تاسو ته د مقابلې کولو لپاره یواځې پرې نږدو. نو عیسایان به له مسلمانانو سره جنګ وکړي ( د مسلمانانو د لښکر دریمه برخه به میدان پریږدي) الله تعالی به د دغو خلکو توبه هیڅکله هم قبوله نکړي. د دغه لښکر یو شمیر خلک به جهاد وکړي او شهیدان به شي. دا خلک به د الله تعالی په نزد د افضل ترینو شهیدانو

---

۱ سنن ابي داؤد. الملاحم. حدیث: ۴۲۹۲. ۴۲۹۳. بسند صحیح.

له جملې څخه وي. پاتې يو شمير خلک به په جنګ کې کاميابي تر لاسه کړي (د لښکر آخيرې برخه خلک به فاتحين شي او د غنيمت مال به تر لاسه کړي) دا خلک به هيڅکله په فتنه کې مبتلا نشي. دا خلک به قسطنطنيه فتحه کړي او کله چې دغه خلک خپلې اسلحې د زيتونو په ونو پورې ځوړند کړي او د غنيمت مال تقسيموي نو شيطان به د هغوی مينځ ته راشي او آواز به وکړي: خلکو ! له تاسو وروسته مسيح دجال د ستاسو کورونو ته داخل شو (دی به په مسلمانانو باندې د ويرې خپريدل غواړي) د اسلامي لښکر فوځيان به له دې ځای څخه ووځي او هغوی به د دجال پر لوري ور روان شي، د شيطان دا خبره به غلطه وي، ليکن کله چې هغوی شام ته ورسيږي نو په رښتيا به مسيح دجال را ښکاره شوی وي.

په يوه بل روايت کې راغلي چې له روميانو سره له جنګ کولو وروسته به مسلمانانو ته د غنيمت مال د تقسيمولو موقع هم په لاس ور نشي او هغوی به له دجال سره د جنګ کولو لپاره تياری کوي، صفونه به تياروي چې د لمانځه وخت دی او په دې وخت کې به حضرت عيسی ابن مريم عليهما السلام نزول وکړي (۱).

د يوه بل روايت مطابق د دغې غزا تفصيل

نبي کريم ﷺ فرمايلي:

قيامت به په هغه وخت کې قايم شي کله چې د وراثت تقسيم ختم شي او د غنيمت مال د خلکو لپاره د کومې خوشحالي باعث جوړ نشي، بيا نبي کريم ﷺ د شام لور ته په لاس سره اشاره وکړه او وې فرمايل: د اسلام دښمنان به هلته د جنګ لپاره سره را ټول شي او مسلمانان به هم له هغوی سره د مقابلې کولو لپاره هلته را پورته شي. د حضرت عبد الله بن مسعود رضي الله عنه

---

۱- صحيح مسلم، الفتن واشراط الساعة، حديث: ۲۸۹۷.

بیان ده چې له دښمن څخه مراد رومیان دي. په دې وخت کې به د جنګ د شدت له امله ډیر خلک د جنګ میدان پریږدي او واپس به بیرته راشي او د مسلمانانو یو بهترین او با صلاحیته ټولی به تر مرګه د جنګ کولو له عزم سره مخ پر وړاندې درومي، دواړه لښکرې به تر ماښامه پورې مسلسل جنګ جاري وساتي. تر دې چې د دوی تر مینځ به شپه حائله شي او دواړه لښکرې به خپلو خپلو ځایونو ته واپس بیرته ولاړې شي او په دوی کې به یوه هم غالبه نشي او کوم خلک چې د مرګ په عزم جنګیدل هغه به ټول شهیدان شي، صبا ورځ به بیا د مسلمانانو د فوځیانو یو بهترین او با صلاحیته ټولی تر مرګه پورې د جنګ کولو له عزم سره مخ پر وړاندې درومي. دا ټولی به د دې خبرې عهد وکړي چې که دوی بیرته واپس کیږي نو دوی به په داسې حال کې واپس کیږي چې دوی به بریالي وي یا دا چې دوی به شهیدان وي، دواړه لښکرې به بیا تر ماښامه مسلسل جنګ کول جاري وساتي، مګر یوه ډله به هم په هغې بلې کامیابي تر لاسه نکړي او دواړه به خپلو خپلو ځایونو ته واپس ولاړې شي. کوم خلک چې تر مرګه پورې د جنګ کولو په عزم جنګیدل هغه به ټول شهیدان شي.

کله چې د جنګ بله ورځ راشي نو په دغه ورځ به مسلمانان په دښمن ډیره زر حمله وکړي ( له مختلفو ځایونو به مسلمانان سره را جمع شي او په دښمن به حمله وکړي) په دغه ورځ به الله تعالی کفارو ته شکست ورکړي او مسلمانان به دومره کفار ووژني چې تر دې د مخه بې کله هم دومره خونریزي نه وي لیدلې، تر دې چې یوه مرغۍ به له هغوی سره په خوا کې تیریږي او له یو څه تګ مخکې به را وغورځي او مړه به شي. د یوه پلار اولاد د کوم اولاد به چې له دغه جنګ څخه د مخه سل وي. له جنګ کولو وروسته به وګوري چې یواځې یو بچی بې پاته دی. نو په داسې صورتحال کې به د غنیمت مال څه خوشحالي پیدا کړي او د کومو خلکو تر مینځ به میراث تقسیم کړی شي؟ په دې وخت کې به مسلمانان په داسې حالت کې وي چې

دوی به د یوه لوی مصیبت خبر واوري. یو سړی به په زوره ووایي : خلکو ! دجال له تاسو وروسته د ستاسو کورونو ته راغی، د دې خبرې له آوریدو وروسته به هغوی هر څه پریږدي او د خپلو کورونو لور ته به متوجه شي او په فوري ډول به لس سپاره د جایزې اخستو لپاره ولیږل شي. نبي کریم ﷺ فرمایلي : ما ته د هغو سپرو نمونه، د هغوی د پلرو نمونه او د هغوی د آسونو رنګونه معلوم دي. په دې زمانه کې به هغوی د زمکې پر سر په بهترینو آسونو سپاره وي (۱).

د دغه لوی جنګ لپاره د مسلمانانو د جمع کیدلو ځای به په (غوطه) کې د دمشق ښار وي. دا لښکر به په دې وخت کې د زمکې پر سر بهترین لښکر وي، الله تعالی به دې لښکر ته په عیسایانو غلبه او فتح نصیب کړي، حضرت ابو الدرداء رضي الله عنه بیان کوي چې رسول الله ﷺ فرمایلي:

د دغه لوی جنګ په دوران کې به د مسلمانانو جنګي کیمپ د شام له بهترین ښار دمشق سره نږدې د (غوطه) په مقام کې وي (۲).

د یوه بل روایت الفاظ داسې دي:

د دغه لوی جنګ په دوران کې به د مسلمانانو جنګي کیمپ د زمکې پر سر په یوه داسې ځای کې وي کوم ته چې (غوطه) ویل کیږي، دلته یو ښار دی د کوم نوم چې دمشق دی، په دغه وخت کې به دغه ځای د مسلمانانو د پړاو لپاره بهترین ځای وي (۳).

له دې وروسته به اهل اسلام قسطنطنیه له جنګ کولو پرته د امام مهدي تر قیادت لاندې فتح کړي. په دغه وخت کې به د مسلمانانو اسلحه تکبیر او تحمید وي.

---

[۱] - صحیح مسلم. الفتن واشراط الساعة. حدیث: ۲۸۹۹. ومسند احمد :۱/ ۴۳۵.

[۲] - سنن ابی داؤد. الملاحم. حدیث: ۴۲۹۸.

[۳] - مسند احمد :۵/ ۱۹۷. وسنن ابی داؤد. السنة. حدیث : ۴۶۴۰. والمستدرک للحاکم: ۴/ ۴۸۲. واللفظ له وقال: صحیح الاسناد ووافقه الذهبي واقره المنذري.

په یوه حدیث کې حضرت ابو هریرة ﷺ بیان کوي چې رسول الله ﷺ فرمایلي:

آیا تاسو د یوه داسې ښار په باره کې آوریدلي د کوم چې یوه لوري ته وچه او بل لوري ته سمندر دی؟ صحابه کرامو رضی الله عنهم عرض وکړ: هو! د الله رسوله! آوریدلي مو دي. بیا رسول الله ﷺ وفرمایل: قیامت به تر هغه وخته قایم نشي تر څو چې د بنو اسحاق اویا زره خلک دغه ښار فتح نکړي، کله چې هغوی دلته راشي نو هغوی به دلته پړاو واچوي، هغوی به هیڅ رنګه اسلحه استعمال نکړي او نه به کوم غشی وار کړي، هغوی به بس دومره وایي ﴿لا اله الا الله والله اکبر﴾ نو د هغه یو لوری به فتح شي، ثور بن یزید وایي: تر کومه ځایه چې ما ته معلومه ده نبي کریم ﷺ وویل چې د سمندر لوری به یې فتح شي، بیا به ووایی ﴿لا اله الا الله والله اکبر﴾ نو د هغه بل لوری به هم فتح شي، بیا به په دریم ځل ووایي ﴿لا اله الا الله والله اکبر﴾ نو ښار به د هغوی لپاره خلاص شي او هغوی به ور داخل شي او غنیمت به جمع کړي، په دې وخت کې به هغوی مال جمع کوي چې یو آواز کونکی به آواز وکړي: خلکو! دجال ظاهر شو، د دې په آوریدو به هغوی هر څه پریږدي او د خپلو کورونو لور ته به بیرته ستانه شي (۱).

د دغه حدیث په شرح کې امام نووي رحمه الله د قاضي عیاض رحمه الله دا قول را نقل کړی چې د صحیح مسلم په ټولو نسخو کې د دغه لښکر نسبت بنو اسحاق ته شوې.

ځینې د علم خاوندانو دا هم ویلي چې ډېر صحیح او محفوظ د بنو اسماعیل الفاظ دي او د حدیث سباق او سیاق هم په همدې دلالت کوي.

---

۱- صحیح مسلم، الفتن واشراط الساعة، حدیث: ۲۹۲۰.

ځکه چې د نبي کريم ﷺ مقصود دا وه چې دا جنګ به عرب کوي او عرب بنو اسماعيل دي نه بنو اسحاق او له ښار څخه مراد قسطنطنيه ده.

يو بل شی کوم چې په دې دلالت کوي چې دغه لښکر به د عربو وي، يعنې بنو اسماعيل به وي هغه دا ده چې د حضرت ذو مخمر رضي الله عنه په حديث کې دغه ذکر موجود دی چې عيسايان به خپل يوه ملګري ته ووايي: مونږ د عربو په مقابله کې له تا سره يو. مګر وروسته به غداري وکړي او د جنګ کولو لپاره به سره را جمع شي، له دې الفاظو معلوميږي چې دا لوی جنګ به د عربو او عيسايانو تر مينځ وي.

د دغه باب له نورو احاديثو څخه هم په ظاهره دا معلوميږي چې کوم خلک په دغه عظيم جنګ کې برخه واخلي هغوی به قسطنطنيه هم فتح کوي او دا به عرب وي، د حضرت عمرو بن عوف رضي الله عنه په حديث کې همدې لور ته اشاره ده چې بيا به د هغوی لور ته د مسلمانانو بهترين خلک را ووځي کوم به چې اهل حجاز وي، له دې څخه هم ثابتيږي چې هغه به بنو اسماعيل وي نه بنو اسحاق (والله اعلم) (۱).

## ﴿۱۰۷﴾ ﴿۱۰۸﴾ ميراث به نه تقسيميږي او خلک به د غنيمت مال ته نه خوشحاليږي

دا دواړه نښانې به په اخره زمانه کې هغه وخت را ښکاره شي کله چې قتل او قتال ډير زيات شي او د مسلمانانو له عيسايانو سره جنګ شدت اختيار کړي.

له حضرت عبد الله بن مسعود رضي الله عنه څخه روايت ده چې رسول الله ﷺ فرمايلي:

---

۱ - وګورئ اتحاف الجعة بما جاء في الفتن والملاحم واشراط الساعة للشيخ حمود التوجيری:۱/ ۴۰۱.

﴿إن الساعة لا تقوم حتى لا يقسم ميراث ولا يفرح بغنيمة ثم قال بيده هكذا ( ونحاها نحو الشام )﴾ (۱).

ژباړه:

قیامت به تر هغه وخته قایم نشي تر څو چې د میراث تقسیم ورک نشي او د غنیمت مال خلکو ته د نه خوشحالۍ سبب نشي.

د دې وضاحت په تیره شوې علامه (نښانه) کې تیر شو.

## ﴿۱۰۹﴾ د خلکو پخوانیو اسلحو او سپرلیو ته بیرته راتګ

نبي کریم ﷺ فرمایلي:

﴿فبينما هم كذلك إذ سمعوا بأس هو أكبر من ذلك فجاءهم الصريخ إن الدجال قد خلفهم في ذراريهم فيرفضون ما في أيديهم ويقبلون فيبعثون عشرة فوارس طليعة قال رسول الله صلى الله عليه و سلم إني لأعرف أسمائهم وأسماء آبائهم وألوان خيولهم هم خير فوارس على ظهر الأرض يومئذ﴾ (۲).

ژباړه: مسلمان به په دغه وخت کې په داسې حالت کې وي چې هغوی به د لوی مصیبت خبر واوري، یو سړی به په زوره ووایي: خلکو ! دجال له تاسو وروسته د ستاسو کورونو ته راغی. د دې خبرې په آوریدو به هغوی هر څه پریږدي او د خپلو کورونو لور ته به متوجه شي او په پوري ډول به لس سپاره د جایزې اخستو په غرض ولیږل شي. نبي کریم ﷺ فرمایلي: زه د هغو سپرو نمونه. د هغوی د پلرو نمونه او د هغوی د آسونو رنګونه پیژنم. هغوی به په دغه زمانه کې د زمکې پر مخ په بهترینو آسونو باندې سپاره وي.

---

۱ صحیح مسلم. الفتن واشراط الساعة. حدیث. ۲۸۹۹. ومسند احمد ۱/ ۴۳۵.

۲ صحیح مسلم. الفتن واشرط الساعة. حدیث ۲۸۹۹

## ﴿۱۱۰﴾ ﴿۱۱۱﴾ د بیت المقدس ابادي، د مدینې منورې بربادي او د هغې له اوسیدونکو او زیارت کوونکو څخه خالي والی

له حضرت معاذ بن جبل رضي الله عنه څخه روایت دی چې رسول الله ﷺ فرمایلي:

﴿عمران بیت المقدس خراب یثرب وخراب یثرب خروج الملحمة وخروج الملحمة فتح قسطنطینیة وفتح القسطنطینیة خروج الدجال " ثم ضرب بیده علی فخذ الذي حدثه أو منکبه ثم قال إن هذا لحق کما أنك ها هنا﴾ (۱).

ژباړه:

د بیت المقدس ابادي په اصل کې د مدینې منورې بربادي ده، چې مدینه منوره برباده شي نو بیا لوی جنګ به شروع شي، چې جنګ شروع شي نو قسطنطنیه به فتح شي او کله چې قسطنطنیه فتح شي نو بیا به ډیر زر دجال ظاهر شي. دا یې وویل سیدنا معاذ بن جبل رضي الله عنه خپل لاس د هغه سړي په ورانه یا په اوګه باندې وواهه کوم ته یې حدیث بیاناوه او وې ویل: دا خبره داسې حق ده لکه څرنګه چې دلته د ستا وجود یقیني دی.

له یثرب څخه مراد مدینه منوره ده او د هغې له بربادي څخه مراد د هغې له اوسیدونکو او زیارت کوونکو څخه خالي والی دی.

په یوه بل روایت کې دي:

﴿الملحمة العظمی وفتح القسطنطینیة وخروج الدجال وسبعة أشهر﴾ (۲).

ژباړه:

لوی جنګ. د قسطنطنیه فتح او دجال. دا هر څه به په اوو میاشتو کې وي.

په دغه حدیث کې چې نبي کریم ﷺ د کومو واقعاتو ذکر بیان کړی، هغه په ترتیب سره ښکاره کیږي. اول د بیت المقدس ابادي او د عمارتونو په

---

۱- صحیح مسلم. الفتن واشراط الساعة. حدیث: ۲۸۹۹.

۲- جامع الترمذي. الفتن. حدیث: ۲۲۳۸. بسند ضعیف.

ډیروالي سره د هغه وسعت او د خلکو په دغه ښار کې په کثرت سره اباديدل. بیا د يثرب (مديني منورې) بربادول. يعنې خلک به په مدينه منوره کې له اوسیدا پرهیز کوي او په مدينه منوره کې د نويو عمارتونو د جوړیدا سلسله به ودريږي. دا ټول شیان نن ورځ په مدينه منوره کې ظاهر شوي. خلک په تدريج هلته کميږي او د ابادي د اضافه والي سلسله دريدلې. د مدينې منورې يو لوی شمير اوسيدونکي کرار کرار له مدينې منورې څخه د نورو ښارونو لور ته کډه کيږي.

په يوه بل حديث کې راغلي چې نبي کريم ﷺ فرمايلي:

﴿لتترکن المدينة على احسن ماکانت حتى يدخل الکلب اوالذئب فيغذى على بعض سوارى المسجد او على المنبر فقالوا: يا رسول الله ! فلمن تکون الثمار ذالک الزمان؟ قال: للعوافى : الطير والسباع﴾ (۱).

ژباړه: مدينه به په عمده حالت کې پريښودل شي، حتى چې نوبت به دې ته ورسيږي چې يو سپی يا يو ليوه به مسجد ته داخل شي په کومه ستن يا په منبر باندې به متيازې وکړي. صحابه ؤ غرض وکړ: اې د الله رسوله ! دا وايه چې په دغه زمانه کې به د مدينې ميوې د چا په کار راشي؟ رسول الله ﷺ وفرمايل: مرغۍ او درنده ګان به دغه ميوې خوري.

د بيت المقدس د ابادي يو مفهوم دا هم دی چې په آخره زمانه کې به خلافت هلته نقل کړی شي. لکه چې د حضرت عبد الله بن حواله ازدی رضي الله عنه په حديث کې چې راغلي، هغه فرمايي:

کله چې رسول الله ﷺ زما په سر لاس مبارک کيښود نو دا يې راته وفرمايل: اې ابن حواله ! کله چې ته ووينې چې خلافت مقدسې خاورې ته نقل کړی شو نو په دې وخت کې به زلزلې، پريشانۍ او لوی مصيبتونه به

---

۱ المؤطا للامام مالک:۲/ ۳۹۲. والمستدرک للحاکم:۴/ ۴۲۲.

نږدې راشي، په دغه ورځ به قيامت له دې ځخه هم ډير نږدې وي لکه څومره چې زما لاس د ستا له سر سره نږدې دی (۱).

په تير حديث کې د نبي کريم ﷺ دا فرمان چې (وخراب يثرب خروج الملحمة) له (الملحمة) څخه مراد هغه لوی جنګ دی کوم به چې د مسلمانانو او عيسايانو تر مينځ برپا کيږي او په هغه کې به بې شميره خلک وژل کيږي. دې ته ملحمه له دې امله ويل کيږي چې په دې کې به قتل او خونريزي ډيره وي، له دې وروسته به د قسطنطنيه فتح په عمل کې راځي، په ننۍ زمانه کې دا د استانبول ښار دی کوم چې د ترکيې د لويو ښارونو له جملې څخه يو دی، بيا به د قسطنطنيه له فتح وروسته دجال ظاهريږي.

## ﴿۱۱۲﴾ مدينه به شرير خلک داسې وباسي لکه يو اهنګر چې له کوزې زنګ ليرې کوي

د قيامت په نښانو کې چې مونږ کومې نښانې بيان کړې په هغوی کې يوه دا وه چې مدينه منوره به خرابه شي او له اوسيدونکو څخه به خالي شي.

د نبي کريم ﷺ د مدينې منورې لور ته له هجرت کولو وروسته د مدينې منورې په ابادۍ کې ډير زياتوالی راغی، څومره وخت چې تيريده هومره په ابادۍ کې زياتوالی راته، د الله تعالی رسول ﷺ خبر ورکړی چې د قيامت له نښانو څخه دا هم ده چې د خلکو به په مدينه منوره کې د اوسيدو خواهش کم شي، حضرت ابو هريرة رضي الله عنه بيان کوي چې رسول الله ﷺ فرمايلي:

---

(۱) - مسند احمد :۵/ ۲۸۸، وسنن ابی داؤد. الجهاد. حديث: ۲۵۳۵، وصححه الالبانی فی صحيح ابی داؤد.

﴿يأتي على الناس زمان يدعو الرجل ابن عمه وقريبه هلم إلى الرخاء هلم إلى الرخاء والمدينة خير لهم لو كانوا يعلمون والذي نفسي بيده لا يخرج منهم أحد رغبة عنها إلا أخلف الله فيها خيرا منه ألا إن المدينة كالكير تخرج الخبيث لا تقوم الساعة حتى تنفي المدينة شرارها كما ينفي الكير خبث الحديد﴾ (١).

ژباړه: په خلکو به داسې يوه زمانه راشي چې يو د مدينې اوسيدونکی سړی به خپل تره او خپلو خپلوانو ته ووايي: (مدينه پريږدئ) د خوشحالي لور ته ووځئ، د خوشحالي لور ته راشئ، سره له دې چې مدينه به د هغوی لپاره ښه وي، اې هې: کاشکې! هغوی ته د دې خبرې علم وای، په هغه ذات قسم د کوم په قبضه کې چې زما روح دی! کله هم چې کوم سړی له مدينې منورې څخه په بې رغبتي سره کډه شي، نو الله تعالی به له هغه څخه بهترين سړی همدلته په مدينه منوره کې اباد کړي، خبر دار! مدينه د اور د بټۍ په څير ده، هغه له خپل ځان څخه خبيث خلک باسي، قيامت به تر هغه وخته قايم نشي تر څو چې مدينه منوره له خپل ځان څخه شرير خلک ليرې داسې (ونه باسي) لکه څنګه چې يو اهنګر له کومې کوزې څخه زنګ ليرې کوي.

له حضرت عمر بن عبدالعزيز رحمه الله څخه روايت شوی چې هغه له مدينې منورې څخه ووت او خپل ازاد شده غلام مزاحم ته يې وويل: اې مزاحم! آيا مونږ په هغو خلکو کې شامل نه يو کوم به چې مدينه منوره له خپل ځان څخه ليرې کوي وباسي به يې؟.

د دې مطلب هيڅکله دا نه دی چې هر هغه کس کوم چې په مدينه منوره کې سکونت اختيار کړي او بيا له دغه ځای څخه نقل مکاني وکړي يا

---

(١) صحيح مسلم، الحج، حديث: ١٣٨١.

مدینه منوره پریږدي او د بل کوم ښار په لوري ولاړ شي نو هغه به له شریرو او خبیثو خلکو څخه وي. هیڅکله د هغه دا مفهوم نه دی، ځکه چې په صحابه کرامو کې ځینو بهترینو شخصیاتو د جهاد او دعوت په مقصد مدینه منوره پریښې او په نورو ډیرو لیرې ښارونو کې یې اوسیدل غوره کړي او په دې کې هیڅ خبره نه دی شوې.

حضرت ابو هریرة ﷺ بیان کوي چې رسول الله ﷺ فرمایلي:

﴿ يَتْرُكُونَ الْمَدِينَةَ عَلَى خَيْرِ مَا كَانَتْ لَا يَغْشَاهَا إِلَّا الْعَوَافِ﴾ ([1]).

ژباړه: خلک به مدینه منوره په داسې حالت کې پریږدي په کوم حالت کې به چې هغه ډیره عمده (ښه) وي، په هغې کې به یواځې مرغۍ او درنده ګان اوسیږي.

مطلب دا چې خلک به په مدینه منوره کې په داسې حالت کې هم اوسیدل نه خوښوي په کوم حالت کې به چې هلته ژوند کول ډیر غوره او ښه وي، هلته به میوې په کثرت سره وي، ژوند کول به ډیر ښه وي، مګر یو شمیر داسې فتنې او سختۍ به خلک را ګیر کړي د کومو له امله به چې خلک د مدینې منورې پریښودو ته مجبور شي، د مدینې منورې اوسیدونکي به کرار کرار له همدې ځای څخه د نورو ښارونو لور ته په کډه شي، تر دې چې هلته به هیڅوک پاتې نشي، نوبت به تر دې ورسیږي چې کورونه، لارې، سړکونه او مساجد به له خلکو څخه خالي شي، مرغۍ او درنده ګان به په مساجدو کې آزادانه ژوند کوي، هلته به بولې کوي او هیڅ منعه کوونکی به نه وي، ځکه چې ښار به له انسانانو څخه خالي شوی وي

## ﴿۱۱۳﴾ د غرونو له خپل ځای څخه بې ځایه کیدل

---

[1] صحیح البخاري. فضائل المدینة. حدیث: ۱۸۷۴. وصحیح مسلم. الحج. حدیث. ۱۳۸۹.

الله تعالی غرونه په مضبوط شکل کې پیدا کړي، دا زمکې ته د میخونو کار ورکوي، نبي کریم ﷺ خبر ورکړی چې له قیامت سره په نږدې زمانه کې به غرونه هم له خپلو ځایونو څخه وخوځیږي، د غرونو دغه زوال به یا په حقیقي ډول وي، یعنې هغه به په زمکه کې ننوځي یا به د تندرونو او طوفانونو د کثرت له امله له خپل ځای څخه وښویږي، یا به د هغو زوال د خلکو د تعمیرونو د وسعت له امله وي، لکه څرنګه چې نن ورځ د دنیا په ډیرو هیوادونو کې همداسې کیږي چې د لویو لویو عمارتونو د تعمیر لپاره غرونه پرې کوي. د غرونو د زوال دریم صورت دا هم کیدلای شي چې د غرونو ډبرې به په کثرت سره ټوټه کړی شي او خپل ځای به پریږدي او زمکه به لغړه پاتې شي، لکه څرنګه چې په ډیرو ځایونو کې دا پیښه واقع شوې.

حضرت ثمره رضي الله عنه بیان کوي چې رسول الله ﷺ فرمایلي:

(لاتقوم الساعة حتى تزول الجبال عم اماكنها وترون الامور العظام التى لم تكونوا تروها) ( ).

ژباړه: قیامت به تر هغه قایم نشي تر څو چې غرونه له خپل ځای څخه ولاړ نشي او تاسو د داسې لویو حوادثو او واقعاتو مشاهده ونه کړی کوم به چې تاسو له دې د مخه نه وي لیدلي.

- المعجم الكبير للطبراني: ۷/ ۲۰۷. وسلسلة الاحاديث الصحيحة: ۷/ ۱۲۲. حديث: ۳۰۲۱.

## ﴿۱۱۴﴾ د يوه قحطاني ظهور، د کوم به چې خلک اطاعت کوي

د قيامت له نښانو څخه دا هم ده چې په آخره زمانه کې به له بنو قحطان څخه يو سړی را ووځي (قحطان د عربو يوه مشهوره قبيله ده) د هغه په قيادت او سيادت باندې به ټول خلک متفق وي، دا به هغه وخت وي کله چې زمانه بدله شي.

حضرت ابو هريرة ﷺ بيان کوي چې رسول الله ﷺ فرمايلي:

﴿لَا تَقُومُ السَّاعَةُ حَتَّى يَخْرُجَ رَجُلٌ مِنْ قَحْطَانَ يَسُوقُ النَّاسَ بِعَصَاهُ﴾ ([1]).

ژباړه:

قيامت به تر هغه وخته قايم نشي تر څو چې د قحطان له قبيلې څخه يو داسې سړی را ښکاره نشي کوم به چې خلک په خپله آمسا سره رهبري کوي.

د خلکو په آمسا سره د رهبري کولو معنا دا نه ده چې هغه به خلک پرې وهي، بلکه دا يوه عربي محاوره ده د کومې چې معنا ده خلک به د هغې په اشارې باندې ځي او پر سمه لاره به وي، له دې خبرې معلومېږي چې خلک به د دغه واکمن په کنترول کې وي او بل دې ته هم اشاره ده چې د هغه په طبعيت کې به خشکي او سختي هم وي.

د حضرت عبد الله ابن عباس رضی الله عنهما له يوه روايت څخه معلومېږي چې دغه سړی به نيک او صالح وي، حضرت ابن عباس فرمايي: له قحطان څخه به يو سړی وي کوم به چې نيک او صالح وي ([2]).

دا چې دا سړی به له قحطان څخه وي له دې معلومېږي چې دا به آزاد وي، دا له هغه کس څخه دويم بل څوک دی د کوم په ظهور کې چې پيشنګوئي

---

[1] - صحيح البخاري. المناقب. حديث: ۳۵۱۷، وصحيح مسلم. الفتن واشراط الساعة. حديث: ۲۹۱۰.

[2] - كتاب الفتن لنعيم بن حماد المروزي: ۱/ ۱۱۵، وفتح الباري شرح صحيح البخاري: ۶/ ۵۳۴.

شوې او دا ویل شوي چې د هغه نام به جهجاه وي او له ازاد شده غلامانو څخه به وي.

## ﴿۱۱۵﴾ د جهجاه نامي یوه سړي ظهور (ښکاره کیدل)

په آخره زمانه کې به یو شمیر داسې خلک ښکاره شي د کومو به چې په خلکو کې ډیر اثر رسوخ وي، نبي کریم ﷺ په دغو خلکو کې د ځینو نمونه او د ځینو اوصاف بیان کړي، نبي کریم ﷺ پیشنګوئي کړې چې د دغو سړیو له جملې څخه به د یوه نام جهجاه وي.

حضرت ابو هریرة رضي الله عنه بیان کوي چې رسول الله ﷺ فرمایلي:

﴿لاتذهب الایام واللیالي حتی یملک رجل، یقال له الجهجاه﴾ ([1]).

ژباړه:

د شپو او ورځو سلسله به ونه دریږي تر څو چې د یوه ازاد شده غلام لاسته قدرت ور نشي د کوم نام به چې جهجاه وي.

او په یوه نسخه کې د هغه نام جهجل هم ذکر شوی.

حافظ ابن حجر رحمه الله په فتح الباری کې فرمایلي: د جهجاه معنا په اصل کې د (صیاح) یعنې په زور سره د نیوونکي ده.

## ﴿۱۱۶﴾ ﴿۱۱۷﴾ ﴿۱۱۸﴾ ﴿۱۱۹﴾ د درنده ګانو، جماداتو، دورو او د پیزار د تسمو خبرې کول، د ظروفو لخوا د کور ښتن ته د کور حال ویل

نبي کریم ﷺ خبر ورکړی چې د قیامت له نښانو څخه دا هم ده چې ځنګلي درنده ګان او وحشي ځناوران به له انسانانو سره خبرې کوي، د دورې یو لوری به خبرې کوي، د پیزار تسمه به خبرې کوي او انسان ته به حال وایي.

حضرت ابو سعید خدري رضي الله عنه بیان کوي چې رسول الله ﷺ فرمایلي:

---

[1] صحیح مسلم، الفتن واشراط الساعة، حدیث ۲۹۱۱.

﴿والذي نفسي بيده لا تقوم الساعة حتى تكلم السباع الإنس وحتى تكلم الرجل عذبة سوطه وشراك نعله وتخبره فخذه بما أحدث أهله من بعده﴾ ([1]).

ژباړه:

په هغه ذات مې قسم د کوم په قبضه کې چې زما روح دی، قیامت به تر هغه وخته قایم نشي تر څو چې ځنګلي درنده ګان له انسانانو سره خبرې ونه کړي، له انسان سره د هغه د دورې یو سر خبرې ونه کړي، د هغه د پیزار تسمه خبرې ونه کړي او هغه دغه حال ونه وايي چې د هغه په عدم موجودګي کې د هغه خاندان په کور کې څه کول.

(حتی تکلم السباع) یعنې وحشي ځناوران لکه زمری، پړانګ او نور ځیره وونکي ځناوران، له (الانس) څخه عام انسانان مراد دي، خواه مؤمن وي که کافر، (عذبة سوطه) یعنې د دورې یو لوری او (السوط) هغې دورې ته ویل کیږي په کومې سره چې مجرمانو ته سزا ورکول کیږي، (شراک نعله) یعنې د پیزار له تسمو څخه یوه تسمه په کومه چې پیزار تړل کیږي.

په دغو کې دوه نښانې یعنې له انسان سره د هغه د دورې خبرې کول او د هغه د پیزار لخوا هغه ته د کور حال ویل، دا هغه نښانې دي کومې چې تر دا مهاله نه دي ښکاره شوې (والله اعلم) لیکن داسې به ضرور کیږي، ځکه چې د دې خبرې خبر رسول الله ﷺ د خپل رب له لوري ورکړی.

ځینې محققینو دې لور ته اشاره کړې چې د دورې له سر او د پیزار له تسمې څخه مراد په اصل کې زمونږ په زمانه کې نوي مواصلاتي ذرائع دي، لکه د موبایل تلیفون یا ایس ایم ایس په ذریعه پیغامات کوم چې په خفیه آواز سره لیږدول کیږي.

---

[1] - جامع الترمذي، الفتن، حدیث: ۲۱۸۱، وقال: حسن غریب. وصححه ابن حبان: ۴/ ۴۲۷.

دا هم ویل کیږي چې دغه نښانې د خپلې ظاهري معنا مطابق واقع شوې دي او هغه په دې طریقه چې دوره، تسمه او ظروف په حقیقي ډول خبرې کوي (والله اعلم).

حضرت ابو سعید خدري ﷺ بیان کوي:

یو ځل د مدینې منورې په اطرافو کې یوه کوچي خپلې بزې څرولې چې یو نا څاپه یوه لیوه د هغه په رمه باندې حمله وکړه او د هغه یوه میګ یې ونیوله، کوچي د لیوه شا ته شو او هغه یې له بزې یا میګې څخه را کشاوه او په هغه یې وار کاوه،لیوه له هغه سره مزاحمت کاوه او په لکۍ باندې کیناست، کوچي ته مخاطب شو او دایې وویل: الله تعالی راکړې روزي تا له ما څخه خلاصه کړه، کوچي وویل : څومره عجیبه ده ! لیوه له ما سره خبرې کوي، دا یې چې واوریدل لیوه وویل: په الله قسم ! ته به له دې عجیبه خبره ووینې، کوچي ترې وپوښتل : له دې عجیبه خبره څه ده؟ لیوه ورته وویل : د الله رسول ﷺ د کجورو په دوو باغونو کې دشاړو زمکو په مینځ کې خلکو ته د تیرې شوې زمانې خبرې کولې او د راتلونکو حالاتو په باره کې یې هم هغوی ته خبر ورکاوه، چې دا یې واوریدل کوچي خپلو بزو ته آواز وکړ او د مدینې پر لور روان شو، بیا یې هغه پرېښودې او د نبي کریم ﷺ لوري ته ورغی او د هغه دروازه یې وټکوله، کله چې نبي کریم ﷺ له لمانځه فارغ شو نو وې فرمایل : د بزو څرونکی کوچی چیرته دی؟ کوچي پورته شو او ودرید : رسول الله ﷺ وفرمایل :

﴿حدث الناس بما سمعت وبما رئيت﴾

ژباړه :

هر څه چې تا آوریدلي او لیدلي هغه خلکو ته ووایه.

کوچي د لیوه ټوله واقعه او د هغه له خبرو څخه صحابه کرام خبر کړل، نبي کریم ﷺ په دې وخت کې وفرمایل:

﴿صدق آيات تكون قبل الساعة والذي نفسي بيده لا تقوم الساعة حتى يخرج أحدكم من أهله فيخبره نعله أو سوطه أو عصاه بما أحدث أهله بعده﴾ ([1]).

ژباړه:

کوچي رښتیا وویل، یو شمیر نښاني داسې دي کومې به چې له قیامت څخه د مخه ښکاره شي، په هغه ذات قسم د کوم په قبضه کې چې زما روح دی! قیامت به تر هغه وخته قایم نشي تر څو چې په تاسو کې یو کس له کور څخه ووځي او د هغه پیزار، دوره او آمسا هغه ته ونه وایي چې د ستا له تلو وروسته ستا د کور خاندان څه کړي دي.

همدا شان به د غواوو د خبرو کول هم واقع شي

حضرت ابو هریرة رضي الله عنه بیان کوي چې رسول الله ﷺ فرمایلي:

یو سړی به غوا په زور ونیسي او په هغې به بار واچاوي نو غوا به د هغه لور ته متوجه شي او وبه وايي: زه د دغه کار لپاره نه یم پیدا شوې، زه د بل کار لپاره پیدا شوې یم، خلک به په تعجب سره ووايي: سبحان الله! غوا د انسانانو په څیر خبرې وکړې، رسول الله فرمایي: په دې باندې ما، ابو بکر او عمر هم ایمان راوړی ([2]).

په حدیث کې د درنده ګانو او وحشي ځناورو د خبرو چې کوم ذکر راغلی له هغه څخه مراد اصلي او په حقیقي معنا سره خبرې کول دي، والله اعلم، د الله تعالی فرمان دی:

﴿يَزِيدُ فِي الْخَلْقِ مَا يَشَآءُ ۚ إِنَّ اللَّهَ عَلَىٰ كُلِّ شَيْءٍ قَدِيرٌ ①﴾ ([3]).

[1] مسند احمد: ۳/ ۸۸. والبدایه والنهایه: ۲/ ۱۵۰.

[2] صحیحالبخاری. فضائل اصحاب النبي ﷺ. حدیث: ۳۶۶۳. وصحیح مسلم. فضائل الصحابة. حدیث: ۲۳۸۸.

[3] فاطر. آية: ۱.

ژباړه: زیاتوي الله په پیدا ینبت کې هومره چې اراده وفرمایي (دهغو) بیشکه چې الله پر هر شي باندې قادر دی (چې اراده وفرمایي) ښه قادر دی (چې څېنې یې دغسې تزئید او تخلیق دی).

## ﴿۱۲۰﴾ ﴿۱۲۱﴾ له قیامت څخه د مخه له دنیا څخه د اسلام ورکیدل، د قران مجید له مصاحفو او سینو څخه پورته کیدل

د قیامت له نښانو څخه دا هم ده چې اسلام به ورک شي او د هغه تعلیمات او شعائر به د فتنو، ګناهونو او جهالت له امله ختم شي، په خلکو کې به لمونځ او روژه باقي پاته نشي. د خلکو له سینو څخه به قرآن مجید پورته کړل شي حتی چې د زمکې پر مخ به د قرآن مجید یو آیت هم پاتې نشي، په خلکو کې به جهالت دومره زیات شي چې سپین ږیري سړي او سپین سرې ښځې به وایي: مونږ له خپلو پلرونو او نیکونو څخه دا کلمه (لا اله الا الله) آوریدلې ځکه مونږ هم همدا کلمه وایو.

حضرت حذیفة رضي الله عنه بیان کوي چې رسول الله ﷺ فرمایلي:

﴿یَدْرُسُ الإِسْلاَمُ كَمَا یَدْرُسُ وَشْيُ الثَّوْبِ ، حَتَّى لاَ یُدْرَى مَا صِیَامٌ ، وَلاَ صَلاَةٌ ، وَلاَ نُسُكٌ ، وَلاَ صَدَقَةٌ ، وَلَیُسْرَى عَلَى كِتَابِ اللهِ عَزَّ وَجَلَّ فِي لَیْلَةٍ ، فَلاَ یَبْقَى فِي الأَرْضِ مِنْهُ آیَةٌ ، وَتَبْقَى طَوَائِفُ مِنَ النَّاسِ الشَّیْخُ الْكَبِیرُ وَالْعَجُوزُ ، یَقُولُونَ : أَدْرَكْنَا آبَاءَنَا عَلَى هَذِهِ الْكَلِمَةِ ، لاَ إِلَهَ إِلاَّ اللَّهُ ، فَنَحْنُ نَقُولُهَا﴾ (۱).

ژباړه: اسلام به داسې محوه شي لکه څرنګه چې په ډیر استعمال سره د جامې (کپړې) نقش او نګار محوه شي. تر دې چې نوبت به دیته ورسیږي

---

۱ - سنن ابن ماجه. الفتن. حدیث: ۴۰۴۹. وقال البوصیري فی مصباح الزجاجة: هذا اسناد صحیح ورجاله ثقات. وصححه الحاکم علی شرط المسلم.

چې هیچا ته به معلومه نه وي چې لمونځ، روژه او قرباني چا ته ویل کیږي او صدقه د کوم شي نوم دی، قرآن مجید به په یوه شپه کې پورته شي حتی چې د زمکې په سر به د هغه یو ایت هم باقي پاته نشي. په خلکو کې به سپین ږیري سړي او سپین سرې ښځې او سیږي او وایي به: مونږ له پلرو او نیکو څخه آوریدلي چې دغه کلمه (لا اله الا الله) به یې ویله، له همدې امله مونږ هم همدغه کلمه وایو.

حضرت حذیفة رضي الله عنه چې کله دغه حدیث بیاناوه نو ور سره ناستو خلکو په دې د تعجب اظهار وکړ، حضرت صله بن زفر ورته وویل: اې حذیفة! هغوی ته به د (لا اله الا الله) کلمه څه فایده ورسوي، کله چې هغوی ته دا نه وي معلومه چې لمونځ، روژه او صدقه څه شی دي؟ حضرت حذیفة خپله خوله پټه کړه، صله بن زفر دری کرته همداسې ورته وویل، په هر وار حضرت حذیفة رضي الله عنه د ځواب له ورکولو ډډه وکړه، بیا حضرت حذیفة رضي الله عنه د هغه لور ته متوجه شو او وې فرمایل: دا کلمه به هغوی د جهنم له اور څخه وساتي.

(یدرس) معنا یې ده چې ورک به کړل شي، ختم به کړل شي، تر دې چې د اسلام یو شی به هم بچ پاتې نشي، مطلب دا چې په خلکو کې به د اسلام ټول ظاهري شعائر او نښانات ختم کړی شي.

(وشي الثوب) د جامې (کپړې) نقش او نګار کوم چې په مختلفو رنګونو باندې په جامه (کپړه) باندې جوړ شوې وي. مګر د ډیر استعمال او بار بار پریمنځلو له امله به هغه کرار کرار ختم کړل شي.

(یسری علی القرآن) یعنې قرآن مجید به له سینو او محاصفو څخه پورته کړل شي او دا به په داسې وخت کې کیږي کله چې خلک له قرآن څخه غافله شي. د هغه تلاوت او د هغه په ذریعه د عبادت کول پریږدي.

دا نښانه تر دا مهاله نه ده ظاهره شوې او د اسلام دین الحمد لله مسلسل په زیاتیدو دی.

## ﴿۱۲۲﴾ په بیت الله باندې د حمله کوونکي لښکر په زمکه کې ننوتل

نبي کریم ﷺ خبر ورکړی چې یو لښکر به په بیت الله شریف باندې حمله وکړي، هغوی به د قریشو د یوه سړي یعنې د امام مهدي نیول غواړي، الله تعالی به له اول څخه تر آخره پورې دغه ټول لښکر په زمکه کې ننه باسي، په دغه لښکر کې به مختلف قسم خلک وي او بیا به هغه خلک د خپلو نیتونو مطابق د قیامت په ورځ را پورته کړل شي.

عبید الله بن قطیبه.فرمایي چې حارث بن ربیعه او عبد الله بن صفوان ام المؤمنین ام سلمه رضی الله عنها ته ورغلل او زه هم له هغوی سره وم، هغوی د هغو په باره کې پوښتنه وکړه کوم به چې په زمکه کې ننه باسل شي؟ دا د هغوی دواړو خبرې دي کله چې حضرت عبد الله بن زبیر رضي الله عنه په مکه مکرمه کې د حجاج په خلاف په جنګ کولو کې مشغول وي او هغه په بیت الله شریف کې محصور وي، زمونږ د پوښتنې په ځواب کې ام المؤمنین وویل چې رسول الله ﷺ فرمایلي:

﴿ یعوذ عائذ بالبیت فیبعث إلیه بعث فإذا کانوا ببیداء من الأرض خسف بهم فقلت یا رسول الله فکیف بمن کان کارها ؟ قال یخسف به معهم ولکنه یبعث یوم القیامة علی نیته﴾ (١).

ژباړه : یو د پناه اخستونکی به په بیت الله شریف کې پناه واخلي، د هغه لور ته به یو لښکر ولیږل شي، هغه لښکر چې کله په یوه پراخ میدان کې وي نو هغه به په زمکه کې ننه باسل شي، ما پوښتنه وکړه یا رسول الله ﷺ ! هغه خلک به څه کوي کوم چې مجبورتا په دغه لښکر کې شامل کړی شوي وي؟ رسول

---

(١) صحیح مسلم، الفتن، حدیث: ۲۸۸۲.

الله ﷺ وفرمایل: هغه به هم په زمکه کې ننه باسل شي، مګر د قیامت په ورځ به هر کس د خپل نیت مطابق را پورته کړل شي.

په یوه بل روایت کې دي کله چې نبي ﷺ د هغه لښکر په باره کې ذکر کاوه کوم به چې په زمکه کې ننه باسل شي نو سیده ام سلمه پوښتنه وکړه: په دې کې خو به یو شمیر خلک داسې هم وي کوم به چې مجبور کړی شوي وي؟ نبي کریم ﷺ وفرمایل: ټول خلک به د قیامت په ورځ د خپلو نیتونو مطابق را پورته کړل شي.

د خلکو د نیتونو مطابق د راپورته کیدلو سبب دا دی چې په هغوی کې به ځوک مجبورتا راوستل شوي وي، ځوک به د نوکرانو په حیث راوستل شوي وي. ځوک به د نورو کارونو لپاره راوستل شوي وي، له همدې امله به له هغوی سره د هر یوه د نیت مطابق معامله وکړل شي، دا ټول خلک به له شریرو خلکو سره د ملګرتیا کولو له وجهې هلاک کړل شي. یعنې په دنیا کې دغه هلاکت او بربادي به د هغوی د ملګرتیا له امله وي. د قیامت په ورځ به د خپل خپل مقصد، ارادې او نیت مطابق له هغوی سره حساب کتاب کیږي، دا حدیث مبارک په دې امر دلالت کوي چې د بیکاره خلکو له صحبت او رفاقت څخه ځان ساتل پکار دي. ځکه ځوک چې په خپله مرضي په معصیت او نا فرمانۍ کې د کوم قوم ملګرتیا کوي او د هغوی د زیاتولو سبب ګرځي نو هغه هم له هغوی سره یو ځای په عذاب کې اخته کیږي.

همدا شان په دې خبره هم دلالت کوي چې الله تعالی به دغه لښکر کعبې ته له رسیدا د مخه په زمکه کې ننه باسي.

په دې سلسله کې د ټولو واردو روایتونو له مطالعې کولو څخه دا خبره واضحه کیږي چې په بیت الله شریف کې پناه اخستونکی به امام مهدي محمد بن عبد الله وي. الله تعالی به د هغه حفاظت وکړي او حمله کوونکی لښکر به په زمکه کې ننه باسي.

ام المؤمنین حضرت عائشة رضی الله عنها بیان کوي چې رسول الله ﷺ یو ځل له خوب څخه وارخطا را پورته شو او کیناست. ما عرض وکړ: د الله رسوله! ته خو نن له خوب څخه د معمول خلاف راپورته شوې او کیناستې؟ نو نبي کریم ﷺ وفرمایل: نن ما یو عجیب شی ولید، زما د امت یو شمیر خلک په بیت الله کې په پناه اخستونکي یوه قریش سړي باندې د حملې کولو لپاره راغلل. مګر کله چې هغوی یوه خلاص میدان ته ورسیدل نو ټول په زمکه کې ننوتل. ما عرض وکړ: اې د الله رسوله! په دې لښکر کې خو به هر رنګه خلک وي؟ نبي کریم ﷺ وفرمایل: هو! په هغوی کې به یو شمیر خلک په زور راوستل شوي وي او مسافر به هم پکې وي، مګر ټول به یو ځای هلاک کړل شي، البته د قیامت په ورځ به په مختلفو حالاتو کې را پورته کړل شي. الله تعالی به هغوی د خپلو نیتونو مطابق را پورته کړي[1].

له ام المؤمنین حضرت عائشة رضی الله عنها څخه په یوه روایت کې راغلي دي چې رسول الله ﷺ فرمایلي:

یو لښکر به په کعبه شریفه باندې حمله کوونکی وي، د سفر په دوران کې چې کله هغه په یوه خلاص میدان کې وي نو له آول څخه نیولې تر آخره پورې به ټول په زمکه کې ننه باسل شي. حضرت عائشة رضی الله عنها پوښتنه وکړه: د الله رسوله! ټول به څنګه په زمکه کې ننه باسل شي کله چې په هغوی کې داسې خلک هم وي کوم چې د حمله کوونکو له جملې څخه نه وي؟ رسول الله ﷺ وفرمایل: له یوه مخه ټول به په زمکه کې ننه باسل شي. بیا به هغوی د خپلو نیتونو مطابق را پورته کړل شي[2].

د امام مهدي او د هغه د واقعاتو ذکر مخته را روان دی[3].

---

[1] صحیح مسلم. الفتن. حدیث: ۲۸۸۴.

[2] صحیح البخاری. البیوع. حدیث: ۲۱۱۸.

[3] وګورئ په علامت صغری کې علامه نمبر:۱۳۱.

## ﴿۱۲۳﴾ د بیت الله حج به معطل کړی شي

په آخره زمانه کې به جهالت ډیرې فتنې ظاهرې کړي او د دیني کارونو د درولو کوشش به کیږي، په دې وخت کې به په کعبه شریفه یوه داسې زمانه هم راشي چې حج او عمره به معطل کړی شي.

حضرت ابو سعید خدري رضي الله عنه بیان کوي چې رسول الله ﷺ فرمایلي:

﴿لَا تَقُومُ السَّاعَةُ حَتَّى لَا يُحَجَّ الْبَيْتُ﴾ ([1]).

ژباړه: قیامت به تر هغه وخته قایم نشي تر څو چې د بیت الله حج موقوف نشي. دا نښانه به ډیره وروسته ښکاره شي، ځکه چې له نصوصو معلومیږي چې د یاجوج او ماجوج له ظهور وروسته به هم حج جاري وي.

حضرت ابو سعید خدري رضي الله عنه بیان کوي چې رسول الله ﷺ فرمایلي:

﴿لَيُحَجَّنَّ الْبَيْتُ وَلَيُعْتَمَرَنَّ بَعْدَ خُرُوجِ يَأْجُوجَ وَمَأْجُوجَ﴾ ([2]).

ژباړه: د دغه کور (بیت الله) حج او عمره به د یاجوج او ماجوج له ظهور وروسته هم کیږي.

قیامت به تر هغه وخته قایم نشي تر څو چې د بیت الله حج موقوف نشي، د دې یو مطلب دا هم کیدلای شي چې د جنګونو او فسادونو له امله به تر یوه وخته پورې حج او عمره موقوف کړل شي او بیا به دوباره شروع کړل شي، یا د دې معنا دا ده چې یو شمیر قومونه به په زور (زبردستي) سره خلک د حج له کولو منعه کوي. والله اعلم.

---

[1] - صحیح البخاري. الحج. حدیث: ۱۵۹۳.
[2] - صحیح البخاري. الحج. حدیث: ۱۵۹۳.

# ﴿۱۲۴﴾ ځينې قبايل عرب به دوباره د بتانو عبادت شروع کړي

په جزيرة العرب کې د شرک او بت پرستي دوره وه، مګر الله تعالى خپل نبي ﷺ ته توفيق ورکړ او په خپلو لښکرو يې د هغه مرسته وکړه تر دې چې هغوى د ټولو بتانو خاتمه وکړه او د الله تعالى د توحيد بيرغ يې پورته کړ، ليکن له قيامت سره په نږدې زمانه کې به د خلکو له دين څخه د ليرې والي له امله به يوه ډله بيا (دوباره) د بتانو عبادت شروع کړي او دا د قيامت له نښانو څخه دی.

حضرت ابو هريرة ﷺ بيان کوي چې رسول الله ﷺ فرمايلي:

﴿لَا تَقُومُ السَّاعَةُ حَتَّى تَضْطَرِبَ أَلَيَاتُ نِسَاءِ دَوْسٍ عَلَى ذِي الْخَلَصَةِ﴾ ([1]).

ژباړه:

قيامت به تر هغه وخته قايم نشي تر څو چې د دوس قبيلې ښځې له (ذوالخصله) څخه چار چاپير حرکت ونه کړي.

(ذوالخصله) د يوه بت نوم دی، د کوم عبادت چې د دوس قبيلې خلکو د جهالت په دوره کې کاوه.

مطلب دا چې هغه ښځې به د سرينين (ذوالخصله) شاو خوا د طواف کولو له امله به په حرکت کې تر سترګو کيږي، يعنې د دغې قبيلې خلک به مرتد شي او د بتانو عبادت او تعظيم به شروع کړي.

د دوس قبيلې ځای د جزيره نمائي عرب په جنوب غرب کې واقع دی.

---

[1] - صحيح البخاري. الفتن. حديث: ۷۱۱۲. وصحيح مسلم. الفتن واشراط الساعة. حديث: ۲۹۰۲.

## ﴿۱۲۵﴾ د قریش قبیلې په مکمل ډول ختمیدل

په عربو کې د قریشو قبیله یوه مشهوره قبیله ده، د دغې قبیلې خلک د فهر بن مالک بن نضر بن کنانه اولاده ده، قریش یو لقب دی په کوم سره چې د هغوی اولاد مشهور دی. د قریش لفظ له تقارش څخه ماخوذ دی کوم چې په معنا د تجارت سره دی. دا خلک تجارت کوونکي دي، ځکه د قریش په لقب مشهور دي.

د قریشو ډیر شاخونه دي. په دې کې بنو حارص بن فهر، بنو خذیمه، بنو عائذ، بنو لؤی بن غالب، بن عامر بن لؤی، بنو عدي بن کعب بن لؤی، بنو مخزوم، بنو تمیم بن مرود، بنو زهره بن کلاب، بنو اسد بن عبد العزی، بنو عبد الدار، بنو نوفل، بنو عبد المطلب، بنو امیه او بنو هاشم وغیره شامل دي.

د اسلام له راتګ وروسته د قریش قبیلې خلک په ډیرو شاخونو وویشل شول، لکه: بکري، عمري، عثماني، علوي او وغیره.

د دوی اصلي مسکن جزیره نمائي عرب ده، لیکن وروسته دا خلک ډیر خپاره شول او د زمکې په مختلفو برخو کې اباد شول.

نبي کریم ﷺ خبر ورکړی چې قریش به په تدریج سره کم شي، تر دې چې د هغوی شمیر به د نیست برابر شي، یا دا چې بیخي به ختم شي.

﴿أسرع قبائل العرب فناء قريش ويوشك ان تمر المرأة بالنعل فتقول ان هذا نعل قرشي﴾ (١).

ژباړه: په عربو کې تر ټولو زر ختمیدونکې قبیله قریش ده، نږدې ده چې یوه ښځه به له یوه پیزار سره تیریږي او وایي به چې دا د یوه قریش پیزار دی.

د دغه امر تاکید د نبي کریم ﷺ له دغه فرمان څخه هم کیږي په کوم کې چې نبي کریم ﷺ ام المؤمنین حضرت عائشة رضی الله عنها ته ویلي

(١) مسند احمد: ٢/ ٣٣٦. مسند ابي يعلى: ١١/ ٢٨. ومجمع الزوائد: ٧/ ٢٤٠. ورجال احمد وابي يعلى رجال الصحيح. وصححه احمد شاكر والالباني

﴿يا عائشة ! قومک اسرع امتي بي لحاقا﴾ .

ژباړه

اې عائشه ! د ستا قوم (قريش) له ما سره تر ټولو اول ملاقات کوونکي دي. دا حديث مخکې تير شو (۱).

## ﴿۱۲۶﴾ د حبشې د يوه کس په لاس د کعبې بربادي

د قيامت له نښانو څخه د مسلمانانو د قبلې کعبې شريفې بربادي هم ده. دا به په آخره زمانه کې يو تور حبشي ورانه کړي د کوم نام به چې (**ذوالسويقتين**) د دوو وړو پنډيو والاوي. د دغه نام به د هغه د پنډيو د وړوکي والي او باريک والي له امله وي. هغه به د کعبې شريفې يوه يوه ډبره وغورځوي، د هغې غلاف به را وشکوي او زيورات به يې غلا کړي.

**حضرت عمرو بن العاص ﷺ بيان کوي چې رسول الله ﷺ فرمايلي:**

﴿اتركوا الحبشة ما تركوكم فإنه لا يستخرج كنز الكعبة إلا ذو السويقتين من الحبشة﴾ (۲).

ژباړه: حبشي چې تر څو له تاسو سره جنګ نه کوي تاسو هم هغه ته څه مه وایاست. ځکه چې د کعبې خزانه له (ذوالسويقتين) پرته بل څوک نشي را ويستلای.

په يوه بل حديث کې دي چې کعبه به يو حبشي (ذوالسويقتين) برباده کړي (۳).

**حضرت عبد الله بن عباس ﷺ بيان کوي چې رسول الله ﷺ فرمايلي:**

﴿كَأَنِّي بِهِ أَسْوَدَ أَفْحَجَ يَقْلَعُهَا حَجَرًا حَجَرًا﴾ (۱).

---

۱ وګورئ په علامات صغرى کې علامه نمبر: ۸۲.

۲ سنن ابي داؤد. الملاحم. حديث: ۴۳۰۹. وسلسلة الاحاديث الصحيحة: ۲، ۴۱۵. حديث: ۷۷۲.

۳ صحيح البخاري. الحج. حديث: ۱۵۹۱.

ژباړه : ګويا که چې زه وينم چې يو تور، د خپرو ګوتو والا سړی به د کعبې يوه يوه ډبره را وغورځوي.

حضرت عبد الله بن عمرو رضي الله عنه بيان کوي چې رسول الله ﷺ فرمايلي:

﴿يخرب الكعبة ذو السويقتين من الحبشة ويسلبها حليتها ويجردها من كسوتها ولكأني أنظر إليه أصيلع أفيدع يضرب عليها بمسحاته ومعوله﴾ ([2]).

ژباړه : کعبه به يو د وړو پنډيو والا يو حبشي بر با ده کړي، هغه به د هغې زيورات غلا کړي او هغه به له غلاف څخه محرومه کړي، زه ګويا که چې هغه وينم چې هغه ګنجی به کعبه د خپل قولنګ (بيلچې) په ذريعه خرابه کړي.

(اصيلع) دا د اصلع تصغير دی، يعني د هغه په سر به ويښتان نه وي، (بمساحته) يعني په خپل قولنګ، يا دا د اوسپنې يوه آله ده کومه چې په زراعتي کارونو کې استعماليږي، (المعول) دا هم يوه آله ده په کومې سره چې په ډبرو کې کودائي کيږي.

**يو اشکال**

دلته د خلکو په ذهنو کې يوه پوښتنه پيدا کيږي هغه دا چې هغه حبشي به کعبه څرنګه ورانه کړي کله چې الله تعالی مکه د امن والا حرم ګرځولې؟

ارشاد باري تعالی دی:

﴿اَوَلَمْ يَرَوْا اَنَّا جَعَلْنَا حَرَمًا اٰمِنًا﴾ ([3]).

ژباړه : آيا نه وينې (نه پوهيږي) چې بيشکه مونږ ګرځولی مو دی (دا ښار د دوی مکه) حرم (امن ورکوونکی له آفتونو نه) (حال دا چې چور کيږي، تښتول کيږي)

بل قول د الله تعالی دی:

---

[1] صحيح البخاري، الحج، حديث: ۱۵۹۵.

[2] مسند احمد ۲/ ۲۲۰. وقال ابن کثير: وهذا اسناد جيد صحيح.

[3] العنکبوت، آية: ۶۷.

﴿أَوَلَمْ نُمَكِّن لَّهُمْ حَرَمًا﴾ (١).

ژباړه
آیا نه دي ورکړې (ځای) مونږ دوی ته داسې حرم چې په امان دی (له قتل او غارت نه).

همدا شان ارشاد باري تعالی دی:

﴿وَمَن يُرِدْ فِيهِ بِإِلْحَادٍ بِظُلْمٍ نُّذِقْهُ مِنْ عَذَابٍ أَلِيمٍ ۝٢٥﴾ (٢).

ژباړه:
او هر چا چې اراده وکړه (په دغه مسجد الحرام کې) د بې لارۍ (د حق نه په مخ ګرځولو سره) په ظلم سره نو وبه څکو مونږ په هغه (کړیدونکی) له عذاب دردناک څخه.

**پوښتنه**: الله تعالی د خپل کور ستنه د فیل له خاوندانو څخه په هغه وخت کې وکړه په کوم کې چې د مکې اوسیدونکي کافر او مشرک وو، نو په دې وخت کې به په کعبه باندې څنګه یو داسې کس مسلط شي کله چې هغه د مسلمانانو قبله وي؟

**ځواب**: لومړی خبره دا ده چې بیت الله به له قیامت سره په نږدې زمانه کې د امن او محرومیت له حیثیت څخه محفوظه شي. په آیاتونو کې د قیامت تر برپا کیدا پورې د امن د باقي پاته کیدو ذکر نشته. په آیت کې یواځې دا وښیل شوي چې کله دا آیاتونه نازل شي نو په دغه وخت کې به حرم ډیر د امن او حفاظت ځای وي. دا نه دي وئیل شوي چې دا امن او امان به تر قیامته پورې باقي وي

(١) القصص. آیة: ٥٧.
(٢) الحج. آیة: ٢٥.

دویمه خبر په دې سلسله کې دا ده چې په خپله نبي کریم ﷺ په خپل یوه ارشاد کې دې لور ته اشاره کړې چې یو وخت به راشي په کوم کې به چې د دغه کور حرمت همدلته اوسیدونکي پایمال کړي.

حضرت ابو هریرة رضي الله عنه بیان کوي چې رسول الله ﷺ فرمایلي:

﴿يبايع لرجل ما بين الركن والمقام ولن يستحل البيت الا أهله فإذا استحلوه فلا يسأل عن هلكة العرب ثم تأتي الحبشة فيخربونه خرابا لا يعمر بعده أبدا وهم الذين يستخرجون كنزه﴾ ([1]).

ژباړه: له یوه کس ([2]) سره به د حجر اسود او مقام ابراهیم تر مینځ بیعت کیږي، د دغه کور حرمت به د همدغه ځای اوسیدونکي پایمال کړي او کله چې داسې وشي نو بیا د عربو د هلاکت او بربادي په هکله پوښتنه مه کوئ، بیا به له حبشې څخه یو لښکر راشي کوم به چې کعبه تباه او برباده کړي، له دې تباهي وروسته به د الله تعالی کور کله هم اباد نشي، دغه خلک به د هغې خزانې هم را وباسي.

د اصحاب فیل په زمانه کې د مکې اوسیدونکي کافر وو مګر د کعبې تعظیم یې کاوه او د هغې حرمت یې نه پایماله وو، له همدې امله الله تعالی کعبه له ابرهه او د هغه له لښکر څخه وساتله.

تر څو پورې چې د حبشي (ذوالسویقتین) معامله ده نو هغه به د کعبې په ورانولو کې هغه وخت کامیاب شي کله چې هلته ځایي خلک د هغې د حرمت پایمالولو کوشش شروع کړي او د هغې حرمت له هغوی سره نه وي.

---

[1] مسند احمد: ۲/۲۹۱. بسند صحیح.

[2] له دې شخص څخه مراد امام مهدي دی. د دې تفصیل د علامت صغری په علامه نمبر: ۱۳۱ کې را روان دی.

## ﴿۱۲۷﴾ د مؤمنو ارواحو قبضولو لپاره د یوې پاکې هوا چلیدل

کله چې یو په بل پسې د قیامت نښانې را ښکاره کیږي نو د قیامت غټې نښانې به هم را ښکاره شي. لکه خروج دجال او د حضرت عیسی ابن مریم علیهما السلام نزول. نو به قیامت ډیر را نږدې شي. په دې وخت کې به الله تعالی یوه پاکه هوا را ولیږي چې هغه به د مؤمنانو روحونه قبض کړي تر څو چې هغوی د قیامت په وخت کې له پیدا کیدونکي خوف (ویرې) محفوظ کړل شي. ځکه چې قیامت به یواځې په بد ترینو خلکو قایمیږي.

حضرت نواس بن سمعان رضی الله عنه بیان کوي چې رسول الله ﷺ فرمایلي:

﴿فبينما هم كذلك إذ بعث الله ريحا طيبة فتأخذهم تحت آباطهم فتقبض روح كل مؤمن وكل مسلم ويبقى شرار الناس يتهارجون فيها تهارج الحمر فعليهم تقوم الساعة﴾ (۱).

ژباړه:

دوی به په داسې حالت کې وي چې الله تعالی به یوه پاکه هوا را ولیږي کومه به چې هغوی له بغلونو څخه ونیسي او هغه به د هر مؤمن روح قبض کړي. د ځمکې په سر به یواځې بد او شریر خلک پاتې شي کوم به چې د مردار خور مارغه په څیر په عام منظر کې بدکاري کوي (۲) په همداسې خلکو به قیامت قایمیږي.

حضرت عبد الله بن عمرو رضی الله عنهما بیان کوي چې رسول الله ﷺ فرمایلي:

دجال به را ووځي بیا به الله تعالی د شام له لوري یوه تازه هوا را ولیږي. د هغې د اثر له امله به نیک خلک وفات شي. تر دې چې د ځمکې

---

۱. صحیح مسلم، الفتن واشراط الساعة، حدیث: ۲۹۳۷.

۲. یعني سړي به له ښځو سره د مردار خور مارغه په څیر په عام محضر کې بد کاري کوي.

په سر به هيڅ داسې شخص بچ پاته نشي د کوم په زړه کې چې د يوې زرې برابر ايمان وي، صورتحال به دا وي که په تاسو کې يو څوک د کوم غره په يوه غار کې ننوځي (پټ شي) نو هلته به هم هغه ته دغه هوا ورسيږي او روح به يې قبض کړی شي [1].

دا هوا به د دجال له قتل او د حضرت عيسى ابن مريم عليهما السلام له وفات وروسته چليږي.

## ﴿۱۲۸﴾ په مکه کې لوړ عمارتونه

په عهد نبوي کې د مکې ابادي ډيره کمه او ودانۍ يې ډيرې لږ وې، نبي کريم ﷺ دا پيشنګوئي کړې چې د قيامت له نښانو دا هم ده چې د مکې عمارتونه به د هغې له غرونو څخه هم ډير لوړ شي، يعلى بن عطاء له خپل پلار څخه روايت کړی کوم چې امام ابن ابي شيبة ذکر کړی:

ما د حضرت عبد الله بن عمرو رضى الله عنهما د سوارلۍ لجام نيولی وو چې هغه وفرمايل: په هغه وخت کې به تاسو خلک څه کوی کله چې تاسو بيت الله په داسې حال کې ووينی چې د هغې يوه ډبره به هم په هغې بلې دپاسه نه وي، خلکو پوښتنه وکړه: آيا مونږ به په دغه وخت کې په اسلام قايم يو؟ هغه وفرمايل: هو! تاسو خلک به په هغه وخت کې په اسلام کې ياست. پوښتونکو وپوښتل: بيا به له دې وروسته څه کيږي؟ حضرت عبد الله وفرمايل: بيا به د بيت الله تعمير له پخوا څخه په ښه انداز جوړ کړی شي، کله چې تاسو مکې ته ګورى نو د هغې په غرونو او زمکه کې به سرنګونه ويستل شوي وي او د زمکې لاندې به د اوبو پائپونه (نلکۍ) بهيږي او د مکې عمارتونه به د غرونو له سرو څخه پورته وخيژول شي، په دې وخت کې پوه شی چې معامله رارسيدلونکې ده [2].

---

[1] صحيح مسلم. الفتن واشراط الساعة. حديث: ۲۹۴۰.

[2] المصنف لابن ابى شيبة: ۱۵/ ۴۸. و اخبار مكة لازرقي. وله عدة طرق. وهو خبر جيد.

## ﴿۱۲۹﴾ د امت اخیرني خلک به په مخکنیو خلکو لعنت وایي

په آخره زمانه کې به بدعات ډیر زیات شي او وروسته راتلونکي خلک به له پخوانیو نفرت کوي، ځینې خلک به د صحابه کرامو فضیلت او لوړ مقام دروغژن ګڼي، الله تعالی چې د صحابه کرامو کومه مدح او ثنا بیان کړی له هغې څخه به غافل شي یا به له تغافل څخه کار اخلي، راتلونکي ځینې خلک به په مخکنیو خلکو باندې لعنت وایي، نبي کریم ﷺ فرمایلي:

﴿لاتقوم الساعة حتی یلعن آخر الامة اولها﴾ (۱).

ژباړه:

قیامت به قایم نشي تر څو چې د امت آخیرني خلک په مخکنیو خلکو باندې لعنت ونه کړي.

له امت څخه مراد د محمد رسول الله ﷺ امت دی لکه څنګه چې ښکاره ده والله اعلم

## ﴿۱۳۰﴾ نوې سپرلۍ ..... موټرې

د آخرې زمانې تفصیلات او د هغې د ډیرو ایجاداتو ذکر په مختلفو حدیثونو کې موجود دی. یا د هغوی په باره هلته اشاره ضرور شته، نبي کریم ﷺ خبر ورکړی چې له قیامت سره په نږدې زمانه کې به مارکیټونه ډیر زیات شي او زمانه به نږدې راشي، له دغه نبوي ارشاد څخه ځینو علماؤ دا اخذ کړی چې په دې کې د نویو (جدید) او مختلف قسم موټرو لور ته اشاره ده، کوم چې زمونږ په دور کې ښه په کثرت سره دي، امام الباني رحمه الله په (السلسلة الصحیحة) کې او نورو ډیرو علماء کرامو هم همدې لور ته اشاره کړې.

امام ابن حبان په خپل صحیح کې د حضرت عبد الله بن عمرو رضی الله عنهما مرفوع حدیث ذکر کړی چې رسول الله ﷺ فرمایلي:

---

المعجم الاوسط للطبراني ۴ ۲۹. حدیث: ۵۲۴۱.

﴿سيكون في آخر أمتي رجال يركبون على السروج كأشباه الرجال ينزلون على أبواب المسجد نساؤهم كاسيات عاريات﴾ (۱).

ژباړه

زما د امت په آخره زمانه کې به يو شمير داسې خلک وي چې په داسې زينونو باندې به سپاره وي کوم به چې د سپرليو په څير وي. هغوی به د جوماتونو په دروازو باندې کوزيږي، د هغوی ښځې به د جامو اغوستلو باوجود لغړې ښکاري.

(كاشباه الرحال) رحال د رحل جمع ده او په معنا د کجاوې سره ده، په دې کې د نويو سپرليو لور ته اشاره ده، کومې چې د الله رسول ﷺ نه دې ليدلې. په ظاهره معلوميږي چې له دې څخه مراد نن ورځ موټرې دي.

والله اعلم

# ﴿۱۳۱﴾ د امام مهدي ظهور

سره له دې چې په آخره زمانه کې به شر او فساد زيات شي، ظلم به ډير خپور شي. زورور به د کمزورو حق خوري. بيکاره خلک به په ټولنه کې بر لاسي وي. مګر د دې هر څه با وجود به مسلمانان د يوه داسې نوي صبا راختو ته منتظر وي کوم به چې د ځمکې په سر خپاره شوي ظلم او ستم ته د پای ټکی کيږدي، الله تعالی به د امام محمد بن عبد الله. مهدي سني علوي د ظهور فيصله وکړي. ليکن پوښتنه دا ده چې:

- مهدي به څوک وي؟
- د هغه د ظهور سبب به څه وي؟
- هغه به کله ظاهر شي؟

---

مسند احمد: ۲ / ۲۲۳. وسلسلة الاحاديث الصحيحة: ۲ / ۴۱۱. حديث. ۲۲۸۳.

۞ آیا هغه دا وخت په دنیا کې موجود دی؟
۞ د هغه کار به څه وي؟
۞ د هغه ملاتړي به څوک وي؟

له دې پرته یو شمیر نورې پوښتنې هم شته کومې چې د لفظ مهدي له آوریدو سره په ذهن کې راځي، د دغو پوښتنو ځوابونه مونږ په راتلونکو صفحو کې له یو څه اختصار سره ذکر کوو.

## نوم او نسب

د مهدي نوم به محمد بن عبد الله حسني علوي وي کوم به چې د حضرت نبي کریم ﷺ په اهل بیت کې د سیده فاطمة رضی الله عنها او سیدنا حسن بن علي رضی الله عنهما له اولادې څخه وي.

حضرت عبد الله بن مسعود رضي الله عنه بیان کوي چې رسول الله ﷺ ارشاد فرمایلی:

﴿لو لم يبق من الدنيا إلا يوم لطول الله ذلك اليوم حتى يبعث فيه رجلا مني أو من أهل بيتي يواطىء اسمه اسمي واسم أبيه اسم أبي﴾ ([1]).

ژباړه:

که چیرته د دنیا یوه ورځ هم باقي پاتې شي نو الله تعالی به دغه ورځ لویه کړي تر دې چې په دغه ورځ کې یو داسې شخص مبعوث (را ولیږي) کوم به چې له ما څخه وي، یا دا چې رسول الله ﷺ وفرمایل: کوم به چې زما له اهل بیت څخه وي، د هغه نوم به زما له نامه سره او د هغه د پلار نوم به زما د پلار له نامه سره برابر وي

[1] سنن ابی داؤد. المهدي. حديث: ۴۲۸۲. وصححه شيخ الاسلام ابن تيمية في منهاج السنة: ۴: ۲۱۱.

**د مهدي د ظهور سبب**

په آخره زمانه کې کله چې فساد ډیر زیات شي، بد کارونه په کثرت سره شي، ظلم خپور شي او عدل ورک شي نو په دې وختونو کې به یو نیک سړی ظاهر شي د کوم په لاس به چې الله تعالی د دغه امت حالات اصلاح کړي، دغه سړی به د اهل سنت په نزد د مهدي په نام پیژندل کیږي، د هغه پیروان به سره جمع شي او هغه به په ډیرو جنګونو کې د مؤمنانو قیادت کوي، هغه یواځې مذهبي پیشوا نه دی بلکه قاید او حاکم هم دی.

**د مهدي صفات**

حضرت ابو سعید خدري ﷺ بیان کوي چې رسول الله ﷺ فرمایلي:

مهدي به له ما څخه وي، یعنې زما له نسل څخه به وي، بیا نبي کریم ﷺ د هغه جسماني صفات بیان کړل او وې فرمایل:

﴿أجلى الجبهة أقنى الأنف، يملأ الأرض قسطا وعدلا كما ملئت جورا وظلما ويملك سبع سنين﴾ ([1]).

ژباړه:

هغه به د لغړې تندې او اوږدې پوزې والا وي، هغه به زمکه له عدل او انصاف څخه داسې ډکه کړي لکه څنګه چې له ظلم او ستم څخه ډکه وي، د هغه حکومت به تر اوو کلونو پورې وي.

(اجلی الجبهة) یعنې د هغه د سر په مخته برخه کې به ویښتان کم وي، یا یې معنا دا ده چې د هغه تندی به پراخ وي. (اقنی الانف) یعنې د هغه پوزه به اوږده وي، د هغه پوزه به له منځ څخه پورته وي، یعنې د چیتي پوزې والا به نه وي. د هغه د حکومت په باره کې تفصیل مخته را روان دی.

---

[1] سنن ابي داؤد، المهدي، حديث: ۴۲۸۵. و اسناده صحيح.

د هغه نام به د نبي کريم ﷺ د نام په څير وي او د هغه د والد (پلار) نام به د نبي کريم ﷺ د والد (پلار) د نامه په څير وي، يعنې د هغه نوم به محمد بن عبد الله وي او هغه به د نبي کريم ﷺ له اهل بيت څخه وي (د حضرت حسن بن علي رضی الله عنهما له نسل څخه به وي).

**د حضرت حسن بن علي له نسل څخه د مهدي په کيدلو کې حکمت**

حضرت حسن رضی الله عنه د خپل والد گرامي سيدنا حضرت علي رضی الله عنه له شهادت وروسته د حکومت چارې سمبالې کړې، لهذا د دغه وخت په حالاتو کې د مسلمانانو دوه خليفه گان جوړ شول، په عراق، حجاز وغيره کې حضرت حسن بن علي رضی الله عنه او په شام او د هغه په همجوارو سيمو کې حضرت امير معاويه رضی الله عنه.

له شپږ مياشتو واکمني وروسته سيدنا حسن بن علي رضی الله عنه له کومې دنيوي معاوضې پرته بواځې د الله تعالی د رضا لپاره د حکومت له چارو څانته والی غوره کړ او د حضرت امير معاويه رضی الله عنه په حق کې دست بردار شو، تر څو چې په مسلمانانو کې اتحاد او اتفاق پيدا شي او د هغوی ټولو واکمن يو سړی شي او د هغوی تر مينځ خونريزي ونشي. الله تعالی د هغه په دې عمل کې برکت واچاوه او هغه ته يې ښه بدله ورکړه، هر څوک چې د الله تعالی د رضا لپاره کوم شی پريږدي نو الله تعالی به هغه ته يا د هغه اولاد ته افضل (بهترين) شی ورکړي [1].

---

[1] المنار المنيف لابن القيم، ص: ۱۵۱.

**د مهدي د واکمنۍ موده**

مهدي به تر اوو کلونو پورې د مسلمانانو واکمن وي او هغه به په دغه دوره کې زمکه له عدل او انصاف څخه داسې ډکه کړي لکه څنګه چې هغه له ظلم او زياتي څخه ډکه کړی شوې وي.

د هغه په زمانه کې به امت ډير خوشحاله وي، زمکه به خپل پيدا وار ډير کړي، له آسمان څخه به ښه بارانونه را وريږي او هغه به خلکو ته بې شماره مال ورکړي، په دې سلسله کې مخته يو شمير حديثونه بيانولای شي.

**د مهدي ظهور به له کوم لوري وي؟**

د محمد بن عبد الله حسني علوي ظهور به د مشرق له لوري وي، هغه به د ظهور په وخت کې يواځې نه وي، بلکه الله تعالی به د مشرق ډير خلک له هغه سره مرسته کوونکي جوړ کړي، کوم به چې د دين اسلام حاملين وي او د الله تعالی په لار کې به جهاد کوي، لکه څنګه چې په يوه حديث کې بيان شوي دي.

**د مهدي د ظهور وخت**

په آخره زمانه کې چې کله د خلکو حالات خراب شي، په دې وخت کې به د خليفه ګانو له اولاد څخه درې نفره په کعبه او د هغې په خرانو باندې د قبضې کولو لپاره په خپل مينځ کې جنګ وکړي، په هغوی کې به هر يو په کعبه شريفه باندې د قبضې کولو غوښتونکی وي، مګر يو به هم کامياب نشي، په عين همدې وخت کې به د مکې په ښار کې مهدي ظهور وکړي او دا خبره به په خلکو کې عامه شي، له کعبې سره نږدې به له مهدي سره بيعت کيږي، خلک به په سمع، طاعت او د هغه په اتباع باندې له هغه سره بيعت کوي.

حضرت ثوبان ﵁ بيان کوي چې رسول الله ﷺ فرمايلي.

﴿يَقْتَتِلُ عِنْدَ كَنْزِكُمْ ثَلاَثَةٌ ، كُلُّهُمُ ابْنُ خَلِيفَةٍ ، ثُمَّ لاَ يَصِيرُ إِلَى وَاحِدٍ مِنْهُمْ ، ثُمَّ تَطْلُعُ الرَّايَاتُ السُّودُ مِنْ قِبَلِ الْمَشْرِقِ ، فَيَقْتُلُونَكُمْ قَتْلاً لَمْ يُقْتَلْهُ قَوْمٌ ثُمَّ ذَكَرَ شَيْئًا لاَ أَحْفَظُهُ فَقَالَ ، فَإِذَا رَأَيْتُمُوهُ فَبَايِعُوهُ وَلَوْ حَبْوًا عَلَى الثَّلْجِ﴾ (١).

ژباړه:

د ستاسو د كعبې د خزانې په سر به درې نفره په خپل مينځ كې جنګ وكړي. په دغو دريو كې به هر يو د كوم خليفه ځوی وي، مګر دا خزانه به يوه ته هم په لاس ور نشي، بيا به له مشرق څخه تور بيرغونه را ښكاره شي، هغه به تاسو په داسې طريقې قتل كړي د كوم به چې د مخه هيڅ مثال نه وي، ثوبان ويلي دي: بيا نبي كريم ﷺ بله كومه خبره وكړه چې ما ته په ياد نه ده، بيا نبي كريم ﷺ وفرمايل: كله چې تاسو دغه مهدي ووينی نو به له هغه سره بيعت وكړی.

**د حديث تشريح**

(كلهم ابن خليفة) يعني هغه درې نفره كوم به چې جنګ كوي او له هر يوه سره به خپل همكاران او ملګري هم وي، په هغوی كې به د هر يوه پلار بادشاه وي او هغه به د خپل پلار په څير د حكومت تر لاسه كولو خواهشمند وي، د (كنزكم) په باره كې ويل شوي چې له دې څخه مراد د كعبې خزانې دي كومې چې د سرو او خزانو په شكل كې دي او بيان كيږي چې هغه د كعبې لاندې ښخې شوې دي، يو قول دا هم ده چې له هغه څخه مراد حكومت او دارالخلافت دی، دا هم ويل شوي چې له هغه څخه مراد د فرات

(١) سنن ابن ماجه. الفتن. حديث: ٤٠٨٤. وقال ابن كثير (في النهاية، ص: ٣٢) تفرد به ابن ماجه وهذا اسناد قوی صحيح. قال البوصيري (في زوائد ١٤٤٢) هذا اسناد صحيح. رجاله ثقات. والمستدرک للحاكم: ٤/ ٤٦٣. وقال صحيح على شرط الشيخين وضعف الحديث آخرون كاحمد والذهبي في الميزان وحكم عليه ابن الجوزي بالوضع.

سیند خزانې دي، یعنې د سرو هغه غر کوم به چې د فرات په سیند کې ظاهر شي [۱].

**یوه پوښتنه او د هغې ځواب**

د دې دوو خبرو په مینځ کې تطبیق څنګه کیږي چې مهدي به په مکه کې ظاهر شي او ور سره دا هم ویل کیږي چې تور بیرغونه به د مشرق (خراسان) له لوري راشي؟ په دې کې څه حکمت دی چې د مهدي بیرغ به تور رنګ لري؟

**ځواب**: علامه ابن کثیر رحمه الله فرمایلي:

د مهدي د تایید لپاره به له مشرق څخه یو شمیر خلک راشي کوم به چې د هغه مرستندوی وي، د هغه سلطنت به قایم کړي او د هغه لاس به مضبوط کړي، د هغوی د بیرغونو رنګ به تور وي، ځکه چې په دغه رنګ کې رعب او وقار وي او د رسول الله ﷺ بیرغ به هم د جنګ په میدان کې تور وو کوم ته به چې (عقاب) ویل کیده [۲].

حضرت ابو سعید خدري رضي الله عنه بیان کوي چې رسول الله ﷺ فرمایلي:

﴿یخرج في آخر امتي المهدي یسقیه الله الغیث وتخرج الارض نباتها، ویعطی المال صحاحا، وتکثر الماشیة وتعظم الامة، یعیش سبعا او ثمانیة﴾ [۳].

ژباړه:

زما د امت په آخره زمانه کې به مهدي ظهور وکړي، الله تعالی به د هغه په زمانه کې ښه بارانونه ووروي، زمکه به خپل ښه پیدا وار ورکوي، هغه به په خلکو کې مال د برابري په بنیاد تقسیموي، میګې به ډیرې شي او اسلامي امت به لوی امت شي، هغه به اوه یا اته کاله ژوندی وي.

او په یوه بل روایت کې دي

[۱] د دې ذکر د علامت صغری په علامه نمبر: ۹۲ کې تیر شو.
[۲] النهایة في الفتن والملاحم. ص:۲۷.
[۳] المستدرک للحاکم: ۴ ۵۵۸ بسند صحیح.

بیا به د هغه له تلو وروسته په ژوندګي کې هيڅ خير او برکت نه وي [۱].
له روایاتو ښکاره کیږي چې د مهدي له وفات وروسته به یو ځل بیا شر، فساد او غټې فتنې سر را پورته کړي.

علامه ابن باز رحمه الله وایي:

د مهدي د ظهور معامله معروفه او مشهوره ده او د هغې متعلق روایات مستفیض بلکه متواتر دي کوم چې د یوه بل د تایید او تقویت باعث دي. ډیرو اهل علمو د هغوی تواتر ذکر کړی. د هغو روایتونو تواتر معنوي دی، ځکه چې د هغوی د سند طریقې ډیرې دي او په مختلفو اسنادو سره، په مختلف روایتونو سره او له ډیرو صحابه کرامو څخه په متنوع الفاظو سره مروي دي. واقعاً دا روایات په دې خبره دلالت کوي چې د مهدي ظهور په شرعي دلایلو سره ثابت دی او د هغه راتلل حق دي، د هغه نوم به محمد بن عبد الله حسنی علوي وي او هغه به د حضرت حسن بن علي رضی الله عنهما له اولادې څخه وي، په آخره زمانه کې به د دغه امام راتګ د رحمت باعث وي، هغه چې کله راشي نو عدل او انصاف به قایم کړي او د ظلم او ستم دروازه به بنده کړي. الله تعالی به د مهدي په ذریعه دغه امت د عدل، هدایت، توفیق او خلکو ته د راهنمائي په نعمتونو ونازاوي [۲].

## د مهدي په باره کې وارد احادیث

د مهدي د ظهور په باره کې ډیر صحیح احادیث موجود دي او هغه احادیث په دوه ډوله دي

**اول قسم** هغه احادیث په کومو کې چې د مهدي ذکر په پوره ډول موجود دی.

---

[۱] مسند احمد ۳: ۳۷. وسنده ضعیف.

[۲] دا عبارت د فضیلة الشیخ عبد المحسن البدر حفظه الله له کتاب (الرد علی من کذب بالاحادیث الصحیحة الواردة في المهدي) څخه را نقل شوی.

**دويم قسم**: هغه احاديث دي په کومو کې چې يواځې د مهدي صفات بيان شوي دي.

مونږ دلته له هغو څخه يو شمير احاديث ذکر کوو، دا احاديث په آخره زمانه کې د مهدي ظهور او هغه د قيامت له نښانو څخه د يوې نښانې ثابتولو لپاره کافي دي.

د مهدي په باره کې د ټولو واردو احاديثو شمير (پنځوس) دی له کومو څخه چې يو څه صحيح، څه حسن او باقي نور ضعيف دي، په دې موضوع باندې د صحابه کرامو د اثارو شمير (اته ويشت) دی، علامه سفاريني، نواب صديق حسن خان او حافظ آبري رحمه الله ذکر کړي چې د مهدي په باره کې احاديث د تواتر حد ته رسيدلي، لاندې يو شمير احاديث ذکر کيږي.

(۱) حضرت ابو سعيد خدري رضي الله عنه بيان کوي چې رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمايلي:

﴿يخرج في آخر امتي المهدي يسقيه الله الغيث وتخرج الارض نباتها، ويعطى المال صحاحا، وتكثر الماشية وتعظم الامة، يعيش سبعا او ثمانية﴾ ([1]).

ژباړه: زما د امت په آخره زمانه کې به مهدي ظهور وکړي، الله تعالی به د هغه په زمانه کې ښه بارانونه وروي، زمکه به خپل ښه پيدا وار ورکوي، هغه به په خلکو کې مال د برابري په بنياد تقسيموي، ميګې به ډيرې شي او اسلامي امت به لوی امت شي. هغه به اوه يا اته کاله ژوندی وي.

(۲) له حضرت ابو سعيد خدري رضي الله عنه څخه يو بل روايت دی چې رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمايلي:

﴿أبشركم بالمهدي يبعث في أمتي على اختلاف من الناس وزلازل فيملأ الأرض قسطا وعدلا كما ملئت جورا وظلما يرضى عنه ساكن السماء

---

[1] السمتدرک للحاحکم ۴/ ۵۵۷. ۵۵۸. وقال: هذا حديث صحيح الاسناد ولم يخرجاه ووافقه الذهبي.

وساكن الأرض يقسم المال صحاحا فقال له رجل ما صحاحا قال بالسوية بين الناس قال ويملأ الله قلوب أمة محمد صلى الله عليه و سلم غنى ويسعهم عدله حتى يأمر مناديا فينادي فيقول من له في مال حاجة فما يقوم من الناس الا رجل فيقول ائت السدان يعني الخازن فقل له ان المهدي يأمرك أن تعطيني مالا فيقول له أحث حتى إذا جعله في حجره وأبرزه ندم فيقول كنت أجشع أمة محمد نفسا أو عجز عني ما وسعهم قال فيرده فلا يقبل منه فيقال له انا لا نأخذ شيئا أعطيناه فيكون كذلك سبع سنين أو ثمان سنين أو تسع سنين ثم لا خير في العيش بعده أو قال ثم لا خير في الحياة بعده﴾ ([1]).

ژباړه:

زه تاسو ته د مهدي په راتلو خوشخبري درکوم. د هغه ظهور به په هغه وخت کې وي کله چې په خلکو کې اختلاف ډیر زیات شي او زلزلې ډیرې شي، هغه به زمکه له عدل او انصاف څخه داسې ډکه کړي لکه څنګه چې له دې د مخه له ظلم او زیاتي څخه ډکه شوې وي، په آسمانو کې اوسیدونکي او د زمکې اوسیدونکي به ټول له هغه څخه راضي وي، هغه به په خلکو کې د برابري په بنیاد مال تقسیموي، یوه کس پوښتنه وکړه: (یقسم المال صحاحا) څه معنا؟ نبي کریم ﷺ وفرمایل: د مال په ورکولو کې به له ټولو خلکو سره یو رنګه چلند کوي، بیا نبي کریم ﷺ وفرمایل: الله تعالی به د امت محمدي زړونه له غناء څخه ډک کړي، نوبت به تر دې ورسیږي چې مهدي به یوه آواز کونکي ته حکم وکړي او هغه به داسې اعلان وکړي: خلکو! هر چا ته که د مال ضرورت وي مونږ یې ورکولو ته تیار یو، مګر د هغه دغه وړاندیز به هیڅوک قبول نکړي، یواځې یو کس به پورته شي،

---

[1] مسند احمد :۳/ ۳۷. ورجاله ثقات. وانظر مجمع الزوائد :۷/ ۱۸۰.

مهدي به هغه ته ووايي: خزانچي ته ور شه او ورته ووايه: مهدي تا ته حکم کوي چې ما ته مال راکړه، خزانچي به ورته ووايي: په خپلو دواړو لاسونو چې څومره مال پورته کولای شې پورته يې کړه، کله چې دغه سړی مال په خپله جولۍ کې واچوي نو پښېمان به شي او سوچ به وکړي: افسوس! زه په امت محمدي کې تر ټولو ډير لالچي انسان يم، کوم شی چې د هغوی لپاره بس کيږي زما په هغه ګزاره ولې نه کيږي، دا سوچ به وکړي او د مال واپس کول به وغواړي ليکن خزانچي به د هغه له اخيستلو انکار وکړي او هغه ته به ووايي: مونږ چې يو ځل چا ته څه ورکړو هغه بيرته واپس نه اخلو، ته دغه مال يوسه، دا صورت حال به تر (۷) (۸) يا (۹) کلونو پورې جاري وي، بيا به مهدي وفات شي او د هغه له تللو وروسته به د خلکو په زندګي کې هيڅ خير او برکت باقي پاتې نشي.

د (احث) معنا ده له شمار او حساب پرته په خپلو دواړو لاسونو سره چې څومره مال پورته کولای شې پورته يې کړه.

(۳) حضرت علي بن ابي طالب رضي الله عنه بيان کوي چې رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمايلي: ﴿المهدي منا اهل البيت، يصلحه الله في ليلة﴾ (۱).

ژباړه:

مهدي به له مونږ څخه وي، الله تعالی به هغه په يوه شپه کې اصلاح کړي.

(يصلحه الله في ليلة) غالباً له دې څخه مراد دا ده چې الله تعالی به يې د خلافت لپاره تيار کړي، يعنې هغه به د خلافت لايق جوړ کړي، هغه ته به توفيق ورکړي، هغه ته به الهام او راهنمائي ور نصيب کړي او د قيادت او حکمت داسې اوصاف به ورکړي کوم به چې د مخه په ده کې نه وو.

د دې يوه معنا دا هم بيان شوې ده چې الله تعالی به په يوه شپه کې يا د شپې په يوه برخه کې د هغه ټول معاملات سم کړي او د هغه شان به لوړ

---

(۱) مسند احمد: ۱/ ۸۴. بسند صحيح.

کړي، داسې چې ټول اهل حل وعقد به په یوه شپه کې د هغه په خلافت متفق شي ([1]).

د (یصلحه الله في لیلة) معنا هیڅکله دا نه ده چې هغه به اول ګمراه او ګنهکار وي او بیا به یو دم په شپه کې الله تعالی هغه ته هدایت نصیب کړي او هغه به د خلکو قیادت شروع کړي، د رسول الله ﷺ د فرمان مطلب هیڅکله دا نه دی، ځکه چې هغه به د خلکو قیادت یواځې د شرعي علم په بنیاد کوي، هغه به د خلکو فیصلې کوي او هغوی ته به فتوه ورکوي او د جنګ په میدان کې به د هغوی قیادت کوي او دا ټول علوم په یوه شپه کې یواځې د الهي وحی په ذریعه جمع کیدلای شي او الهي وحی د انبیاؤ لپار خاص ده او دا خبره معلومه ده چې مهدي به نبي نه وي.

لهذا د (یصلحه الله في لیلة) معنا دا ده چې الله تعالی به هغه ته شرح صدر ور نصیب کړي، په کومو احادیثو کې چې د مهدي ذکر راغلی له هغوی څخه مقصود هغه په خپله دی، همدا شان به الله تعالی هغه ته د قیادت اعلی صفات ورکړي.

(۴) ام المؤمنین سیده ام سلمه رضی الله عنها بیان کوي چې رسول الله ﷺ فرمایلي:

﴿المهدي من عترتي من ولد فاطمة﴾ ([2]).

ژباړه: مهدي به زما له اولاد څخه وي، هغه به د فاطمة الزهرا له نسل څخه وي.

(من عترتي) یعنې زما په اهل بیت کې او زما له اولاد څخه به وي، (من ولد فاطمة) یعنې هغه به د حضرت فاطمې له نسل څخه وي.

(۵) حضرت جابر ﷺ بیان کوي چې رسول الله ﷺ فرمایلي:

---

[1] دا تشریح ملا علي قاري د مرقاة المفاتیح په (۵/ ۱۸۰) صفحه کې کړې ده.

[2] سنن ابي داؤد، المهدي، حدیث: ۴۲۸۴. بسند صحیح.

﴿ينزل عيسى ابن مريم فيقول اميرهم : تعال صل بنا- فيقول: لا، ان بعضكم على بعض امير، ليكرم الله هذه الامة﴾ ([1]).

ژباړه:

کله چې حضرت عيسى ابن مريم عليهما السلام له آسمان څخه را ښکته شي نو د مسلمانانو امير (مهدي) به هغه ته ووايي: تشريف راوړه او د لمانځه امامت وکړه، هغه به معذرت وغواړي او وبه وايي: د دغه امت امامت د دغه امت د خلکو ښايست دی. دا به په دغه امت د الله تعالی فضل او احسان وي.

د دغه حديث معنا دا ده چې دجال به د مهدي په زمانه کې ظاهر شي، بيا چې کله حضرت عيسى ﷺ د هغه د قتل لپاره نازل کړل شي نو امام مهدي به د مسلمانانو قايد وي، لکه چې په خپله حضرت عيسى ﷺ او پاتې ټول مؤمنانو به هم د امام مهدي په امامت کې لمونځ وکړي.

(۶) حضرت ابو سعيد خدري رضي الله عنه بيان کوي چې رسول الله ﷺ فرمايلي:

﴿منا الذي يصلى عيسى ابن مريم خلفه﴾.

ژباړه:

د کوم امام په امامت کې چې حضرت عيسى ﷺ لمونځ اداء کړي هغه به له مونږ څخه وي ([2]).

دلته مقصود له کلام څخه دا ده چې امام مهدي به لمونځ ورکړي او په مقتديانو کې به حضرت عيسى ﷺ هم شامل وي.

(۷) حضرت عبد الله بن مسعود رضي الله عنه بيان کوي چې رسول الله ﷺ فرمايلي:

---

[1] مسند احمد: ۳/ ۳۴۵. وصحيح مسلم. الايمان. حديث: ۱۵۲.

[2] رواه ابو نعيم في كتاب المهدي. وذكره المناوي في فيض القدير: ۶/ ۴۸۲.

﴿لو لم يبق من الدنيا إلا يوم لطول الله ذلك اليوم حتى يبعث فيه رجلا مني" أو" من أهل بيتي يواطيء اسمه اسمي واسم أبيه اسم أبي﴾ ([1]).

ژباړه:

که چیرته د دنیا د بقا یوه ورځ هم پاتې شي نو الله تعالی به دغه ورځ لویه کړي تر دې چې په هغې کې به الله تعالی یو داسې سړی مبعوث کړي کوم به چې له مونږ څخه وي، یا یې داسې وفرمایل کوم به چې زمونږ له اهل بیت څخه وي، د هغه نام به زما له نام سره او د هغه د والد نام به زما د والد له نام سره یو شانته وي.

د هغه نام به (محمد بن عبد الله) وي، په دغه حدیث کې د شیعه ګانو په موقف باندې ښکاره رد دی، ځکه چې د هغوی دعوه دا ده چې د مهدي نوم به محمد بن حسن عسکري وي. د (یبعث) معنا دا ده چې الله تعالی به هغه ظاهر کړي.

د دغه حدیث د یوه بل راوي (فطر) په حدیث کې دا الفاظ زیات دي:

﴿لو لم يبق من الدهر إلا يوم لبعث الله رجلا من أهل بيتي يملؤها عدلا كما ملئت جورا﴾ ([2]).

ژباړه:

که چیرته د دنیا یوه ورځ باقي پاتې شي نو په دغه ورځ کې به الله تعالی زما له اهل بیت څخه یو کس ظاهر کړي کوم به چې زمکه داسې له عدل او انصاف څخه ډکه کړي لکه څنګه چې د مخه له ظلم او ستم څخه ډکه کړی شوې وي.

او د یوه بل روایت الفاظ داسې دي:

---

[1] سنن ابي داؤد . المهدي، حديث: ٢٢٨٢ . وهو صحيح.

[2] سنن ابي داؤد . المهدي، حديث: ٢٢٨٣.

﴿لا تذهب أو لاتنقضي الدنيا حتى يملك العرب رجل من أهل بيتي يواطيء اسمه اسمي﴾ ([1]).

ژباړه:

دنيا تر هغه وخته نه ختميږي تر څو چې زما له اهل بيت څخه يو كس د عربو واكمن جوړ نشي. د هغه نام به زما د نام په څير وي.

د (حتى يملک العرب) معنا دا ده چې هغه به د عامو مسلمانانو بادشاه وي، خواه هغه عرب وي كه عجم.

دلته خاص د عربو ذكر له دې امله شوى چې، د هغه د حكومت اغاز به له عربو څخه وي، هغه به په مكه او مدينه كې ښكاره كيږي، هلته به عرب د هغه اتباع كوي او بيا به نور ټول مسلمانان د هغه اتباع وكړي.

په يوه اعتبار سره هر هغه چا ته عرب ويل كيږي كوم چې د قرآن كريم تلاوت كوي او په عربي ژبه پوهيږي ([2]).

(۸) حضرت زر بن عبد الله رضي الله عنه بيان كوي چې رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمايلي:

﴿لاتقوم الساعة حتى يلي رجل من اهل بيتي يواطئ اسمه اسمي﴾ ([3]).

ژباړه: قيامت به تر هغه وخته قايم نشي تر څو چې زما له اهل بيت څخه يو كس والي جوړ نشي، كوم به چې زما هم نامى وي.

(۹) حضرت علي بن ابي طالب رضي الله عنه بيان كوي چې رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمايلي:

﴿لو لم يبق من الدهر إلا يوم لبعث الله رجلا من أهل بيتي يملؤها عدلا كما ملئت جورا﴾ ([4]).

---

[1] سنن ابي داؤد. الفتن. حديث: ۲۲۸۲. وهو حديث حسن صحيح. وانظر: تحفة الاحوذي: ۶/ ۴۸۲.

[2] مرقاة المفاتيح شرح مشكوة المصابيح: ۵/ ۱۷۹.

[3] مسند احمد: ۱/ ۳۷۶. بسند صحيح.

[4] سنن ابي داؤد. المهدي. حديث: ۲۲۸۳. وسنده قوي.

ژباړه: که چیرته د دنیا څخه باقي پاته نشي مګر یوه ورځ نو په دغه ورځ کې به الله تعالی زما له اهل بیت څخه یو کس ظاهر کړي کوم به چې ځمکه داسې له عدل او انصاف څخه ډکه کړي لکه څنګه چې د مخه له ظلم او ستم څخه ډکه کړی شوې وي.

او د یوه بل روایت الفاظ داسې دي:

﴿لو لم يبق من الدنيا الا يوم لبعث الله رجلا منا يملوها عدلا كما ملئت جوراً﴾ (١).

ژباړه:

که چیرته د دنیا یوه ورځ هم باقي پاتې شي نو په هغې کې به الله تعالی له مونږ څخه یو شخص ظاهر کړي کوم به چې ځمکه داسې له عدل څخه ډکه کړي لکه څنګه چې د مخه له ظلم او ستم څخه ډکه کړی شوې وي.

دا ټول حدیثونه د محمد بن عبد الله مهدي په باره کې ډیر واضح دلیلونه دي، په دغو احادیثو کې د هغه د نوم او صفاتو ذکر هم موجود دی.

**هغه حدیثونه کوم چې د مهدي په باره کې احتمالي دي**

(۱۰) حضرت جابر بن عبد الله رضي الله عنه بیان کوي چې رسول الله ﷺ فرمایلي:

﴿يوشك أهل العراق ألا يجيء إليهم قفيز ولا درهم قلنا من أين ذاك ؟ قال من قبل العجم يمنعون ذاك﴾ (٢).

ژباړه: نږدې ده چې د عراق خلکو ته به د غلې او نقدو راتلل بند شي، مونږ پوښتنه وکړه: دا به د چا لخوا وي؟ رسول الله ﷺ وفرمایل: دا پابندي به د عجمو له لوري وي، هغه به دوی له دې څخه محروم کړي.

(قفیز) نن ورځ په عربو کې کیلو او ټن دی، (درهم) د سپینو هغه سکه ده کومه چې په مخکنیو زمانو کې رواج ود. (من قبل العجم) د عجم لفظ

---

١ - مسند احمد :١/ ٩٩.

٢ - صحیح مسلم. الفتن. حدیث: ٢٩١٣.

اطلاق په هغو خلکو باندې کیږي کوم چې عرب نه وي، خواه هغوی عربي ژبه ویلای شي او که نه.

بیا نبي کریم ﷺ وفرمایل:

﴿یوشك أهل الشام أن لا یجی إلیهم دینار ولا مدي قلنا من أین ذاك ؟ قال من قبل الروم﴾ ([1]).

ژباړه: نږدې ده چې د شام خلکو ته به د غلې او دینارو راتلل بند شي، مونږ پوښتنه وکړه: دا به د چا له لوري وي؟ نبي کریم ﷺ وفرمایل: دا به د رومیانو له لوري وي.

(دینار) د سرو یو سکه ده، بیا له یو څه وخت خاموشي څخه وروسته نبي کریم ﷺ وفرمایل:

﴿یکون في آخر أمتي خلیفة یحثي المال حثیا لا یعده عددا﴾ ([2]).

ژباړه:

زما د امت په آخره زمانه کې به یو خلیفه داسې وي کوم به چې په ډکو ډکو جولیو له شمار (حساب) پرته مال ورکوي.

د حدیث راوي جریر ویلې: ما ابو نظره او ابو العلاء ته وویل: د ستاسو څه خیال دی، آیا هغه خلیفه عمر بن عبد العزیر نه دی؟ هغوی وویل: نه.

د تیرو حدیثونو په رڼا کې دغه خلیفه مهدي دی، چونکه د هغه په زمانه کې به د غنیمت مالونه او فتوحات ډیر وي، هغه به ډیر زیات سخي وي او خلکو ته به د هر رنګه نیکیو په رسولو کې هیڅ سرفه نکوي.

(۱۱) ام المؤمنین حضرت عائشة رضی الله عنها بیان کوي چې یوه شپه نبي کریم ﷺ ویده وو چې په خوب کې د هغه بدن یو څه حرکت وکړ، ما عرض

---

[1] صحیح مسلم. الفتن. حدیث: ۲۹۱۳.

[2] - صحیح مسلم. الفتن. حدیث ۲۹۱۳.

وکړ: د الله رسوله ﷺ! تا خو نن په خوب کې داسې څه وکړل چې پخوا دې نه وو کړي؟ نبي کريم ﷺ وفرمايل: ما يوه عجيبه معامله وليدله: زما د امت يو څه خلک د کعبې په لور روان وو، هغوی د قريشو د يوه کس وژل غوښتل کوم چې په کعبه کې پناه اخيستې وه، کله چې هغوی په يوه خلاصه صحراء کې وو نو هغوی ټول په ځمکه کې د ننه کړی شول، يعنې ځمکه وچاودله او هغوی يې خپلې خيټې ته ور دننه کړل، ما عرض وکړ: د الله رسوله! په لاره کې خو هر رنګه خلک جمع کيږي، نبي کريم ﷺ وفرمايل: ﴿نعم فيهم المستبصر والمجبور وابن السبيل يهلكون مهلكا واحدا ويصدرون مصادر شتى يبعثهم الله على نياتهم﴾ (١).

ژباړه: هو! په هغوی کې به د سفر په مقصد ښه پوهيدونکي، مجبور کړی شوي او مسافر ټول وي، مګر دا ټول خلک به په يوه وار هلاک کړی شي، البته د قيامت په ورځ به هر يو الله تعالى د هغه د نيت مطابق را پورته کړي.

(المستبصر) داسې سړی کوم چې د خپل سفر مقصد په ښه ډول پيژني،

(المجبور) داسې سړی کوم چې له خپلې رضا پرته مجبور کړی شوی وي.

مقصود له دې کلام څخه دا ده چې د دغه لښکر ټول افراد به په يوه وخت هلاک کړی شي او دا ټول به يو ځای په ځمکه کې ننه باسل شي، هو! د قيامت په ورځ به د الله تعالى په نزد د هغوی ځايونه او احوال مختلف وي، په هغوی کې به ځينې خلک د خپلو اعمالو او نيتونو مطابق جنت ته داخل کړی شي او څه خلک به جهنم ته وليږل شي.

(۱۲) حضرت ابو هريرة رضي الله عنه بيان کوي چې رسول الله ﷺ فرمايلي:

---

(١)- صحيح مسلم. الفتن. حديث: ۲۹۸۴.

﴿يبايع لرجل بين الركن والمقام ولن يستحل البيت الا أهله فإذا استحلوه فلا تسأل عن هلكة العرب ثم تجيء الحبشة فيخربونه خرابا لا يعمر بعده أبدا هم الذين يستخرجون كنزه﴾ ([1]).

ژباړه : يوه سړي سره به د حجر اسود او مقام ابراهيم تر مينځ بيعت كيږي، د دغه كور حرمت به د هغه ځاى اوسيدونكي پايمال كړي او كله چې د دغه كور حرمت پايمال كړل شي نو بيا د عربو د هلاكت او بربادي پوښتنه مه كوى، بيا به حبشي راشي كوم به چې كعبه تباه او برباده كړي او د هغه له تباهي وروسته به الله تعالى دغه كور كله هم اباد نكړي، داسې خلك به وي كوم به چې د هغې خزانې هم را وباسي.

(۱۳) حضرت ابو هريرة ﷺ بيان كوي چې رسول الله ﷺ فرمايلي:

﴿كيف انتم اذا نزل ابن مريم فيكم وامامكم منكم﴾ ([2]).

ژباړه : تاسو به په هغه وخت كې په څه حال كې ياست كله چې په تاسو كې ابن مريم نازل كړل شي او دستاسو امام له ستاسو څخه وي.

دلته له امام څخه مراد مهدي محمد بن عبد الله دى او په دې سلسله كې واضح دليل د حضرت جابر ﷺ هغه حديث دى كوم چې په علامه نمبر : ۵ كې بيان كړى شو.

(۱۴) حضرت جابر بن عبد الله ﷺ بيان كوي چې رسول الله ﷺ فرمايلي:

﴿لا تزال طائفة من أمتي يقاتلون على الحق ظاهرين إلى يوم القيامة قال فينزل عيسى بن مريم عليه السلام فيقول أميرهم تعال صل بنا فيقول لا إن بعضكم على بعض أمير ليكرم الله هذه الأمة﴾ ([3]).

---

[1] - مسند احمد :۲/ ۳۱۲. بسند صحيح. د بيت الله د حلالولو بيان او د كعبې د ورانولو واقعه مخكې بيان شوه. وګورئ علامه نمبر: ۱۳۲.

[2] -صحيح البخاري. احاديث الانبياء. حديث: ۳۴۴۹. وصحيح مسلم. الايمان. حديث: ۱۵۵

[3] مسند احمد : ۳/ ۳۴۵. وصحيح مسلم. الايمان. حديث: ۱۵۸.

ژباړه: د قیامت تر قایمیدو پورې به زما په امت کې یوه ډله د حق لپاره جنګیږي او په دښمن به غالبه شي، بیا به حضرت عیسی ﷺ را نازل شي نو د مسلمانانو امیر (مهدي) به ووایي: تشریف راوړه او مونږ ته د لمانځه امامت وکړه، عیسی ﷺ به ووایي: نه! په تاسو کې ځینې د ځینو لپاره امراء دي، الله تعالی دغه امت ته دا عزت ورکړی (۱).

**فایده**: د حضرت عیسی ﷺ د امام مهدي شا ته د لمونځ کولو مطلب هیڅ کله دا نه دی چې مهدي به له حضرت عیسی ﷺ څخه بهتر وي، نبي کریم ﷺ هم د ناجوړتیا په آخیرو شپو کې په حضرت ابو بکر صدیق ﷺ پسې تر شا لمونځ کړی او د حضرت عبد الرحمن بن عوف ﷺ په امامت کې هم هغه ﷺ یو ځلې لمونځ اداء کړی (۲) عیسی ﷺ به له دې امله په مهدي پسې تر شا لمونځ وکړي چې ټولو خلکو ته دا ښکاره کړي چې هغه د حضرت محمد ﷺ په تابعداري کې تشریف راوړی او هغه د شریعت مطابق فیصلې کوي، وروسته به مهدي په حضرت عیسی ﷺ پسې اقتداء وکړي او د هغه په لښکر کې به د یوه سپاهي په حیث خدمت انجاموي.

(۱۵) حضرت جابر بن سمره ﷺ بیان کوي: زه له خپل والد (پلار) سره یو ځای د حضور ﷺ په خدمت کې حاضر شوم نو ما له رسول الله ﷺ څخه واوریدل چې فرمایل یې:

﴿إن هذا الأمر لا ينقضي حتى يمضي فيهم اثنا عشر خليفة ) قال ثم تكلم بكلام خفي علي قال فقلت لأبي ما قال؟ قال كلهم من قريش﴾ (۳).

ژباړه: دا کار تر هغه وخته پورې نه ختمیږي تر څو چې په هغوی کې دولس خلیفه ګان تیر نشي، جابر ﷺ وایي: بیا نبي کریم ﷺ څه وویل خو ما وا نه

---

۱- الله تعالی امت محمدي ته دا عزت ورکړی چې حضرت عیسی ﷺ به د دغه امت په یوه فرد پسې تر شا لمونځ اداء کړي.

۲- رواه الشافعي في مسنده، وصحيح مسلم، الطهارة، حديث: ۲۷۴.

۳- صحيح مسلم، الامارة، حديث: ۱۸۲۱.

آوریدل، ما له خپل پلار څخه وپوښتل: نبي کریم ﷺ څه وویل؟ هغه راته وویل: نبي کریم ﷺ وویل: ټول خلیفه ګان به له قریشو څخه وي.
علامه ابن کثیر رحمه الله د دغه حدیث په تشریح کې فرمايي:
دا حدیث د دې خبرې دلیل دی چې په امت کې به دولس عادل خلیفه ګان ضرور وي، مګر خیال کوی چې له دې څخه د شیعه ګانو دولس خلیفه ګان هیڅ کله مراد نه دي، له دې امله چې په هغوی کې به اکثرو ته په حکومت کې د راتلو موقع په لاس ور نشي، دا ټول خلیفه ګان به له قریشو وي، واکمن به وي او عادل به وي.
(۱۶) ام المؤمنین حفصه رضی الله عنها بیان کوي چې رسول الله ﷺ فرمایلي:
﴿ليؤمن هذا البيت جيش يغزونه حتى إذا كانوا ببيداء من الأرض يخسف بأوسطهم وينادي أولهم آخرهم ثم يخسف بهم فلا يبقى إلا الشريد الذي يخبر عنهم﴾ ([1]).

ژباړه: یو لښکر به د جنګ له ارادې سره دغه کور ته قصد وکړي حتی چې کله هغه په یوه خلاصه صحراء کې وي نو د هغوی د مینځ خلک به په زمکه کې ننه باسل شي، د هغوی د سر خلک به آخرنیو خلکو ته نعرې وهي، بیا به دوی ټول یو ځای په زمکه کې ننه باسل شي تر دې چې یو کس به هم بچ پاتې نشي، پرته له هغه تښتیدونکي کوم به چې د دوی په باره کې خلک را خبر کړي.

(الشرید) یعني په دغه لښکر کې به یواځې یو سړی په زمکه کې له ننوتو بچ پاتې شي او هغه به نور خلک د دغه لښکر په باره کې خبر کړي.
(۱۷) ام المؤمنین حضرت ام سلمه رضی الله عنها بیان کوي چې رسول الله ﷺ فرمایلي: یو خلیفه به د مرګ په وخت کې په امت کې اختلاف پیدا

[1] صحیح مسلم، الفتن و اشراط الساعة، حدیث: ۲۸۸۳.

کړي. په دغه موقع به یو سړی د فتنې له ویرې له مدینې څخه وتښتي او مکې مکرمې ته به ورسیږي. د مکې مکرمې یو شمیر خلک به راشي او دې کس ته به له مکې څخه د وتو خبر وکړي مګر هغه به امارت ناپسند کړي. خلک به د حجر اسود او مقام ابراهیم تر مینځ له هغه سره بیعت وکړي، د ده په خلاف به د جنګ لپاره یو لښکر د شام له لوري راشي، دغه لښکر چې کله د مدینې منورې او مکې مکرمې په مینځ کې په یوه صحراء کې وي نو هغه به په زمکه کې ننه باسل شي. کله چې خلک د دغه لښکر دا حشر ووینې نو د شام اولیاء کرام، عبادت کوونکي خلک او د عراق منتخب او نیک خلک به د هغه په خدمت کې حاضر شي او د حجر اسود او مقام ابراهیم تر مینځ به له هغه سره بیعت کوي. بیا به له قریشو څخه یو سړی کوم به چې د بنو کلب خواخوږی وي د مهدي په خلاف را پورته شي، هغه به د مهدي د حامیانو لور ته یو لښکر ولیږي مګر د مهدي ملګري به په هغوی برلاسي شي، دا به د بنو کلب لښکر وي، کوم کس چې د بنو کلب د غنیمت مالونو د تقسیم په وخت کې حاضر نه وي هغه به په تاوان کې وي، هغه مال به مهدي تقسیموي او له خلکو سره به د خپل نبي ﷺ د سنتو مطابق معامله کوي، په دغه وخت کې به اسلام په زمکه کې مضبوطوالی او استقرار تر لاسه کړي. د هغه حکومت به اوه کاله وي، بیا به هغه وفات شي او مسلمانان به د هغه د جنازې لمونځ اداء کړي او د یوه روایت مطابق هغه به تر نهو کلونو پورې وي[۱].

د مهدي په باره کې احادیث ثابت دي. په هغوی کې هیڅ رنګه شک او شبه نشته، د دغو حدیثونو د روایت کوونکو صحابهؤ شمیر دیرش دی. ائمه حدیث او مصنفینو په خپلو سننو او مسانیدو کې ذکر کړي دي.

---

[۱] سنن ابي داؤد. الملاحم. حدیث: ۴۲۸۲. بسند لاباس به. وتدعمه الکثیر من الاحادیث الصحیحة الاخری.

علماؤ په دغو حديثونو سره استدلال کړی حتی چې د اهل سنت په عقايدو کې د مهدي ظهور يو متفق عليه امر دی، د ائمه حديث يوې ډلې د مهدي متعلق احاديثو په باره کې ذکر کړي دي چې دا متواتر دي. لکه چې سفاريني په (لوامع الانوار البهية : ۲: ۸۰) کې، امام شوکاني د (الاذاعة لاشراط الساعة) په صفحه (۱۱۴) کې او نواب صديق حسن خان د (الاِذاعة په ۱۱۵) صفحه کې ذکر کړي.

**د مهدي په دعوه کوونکو باندې يو نظر**

کله چې مونږ په تاريخ باندې غور او فکر کوو، د مختلفو دورو مطالعه کوو او د مسلمانانو په مينځ کې په اختلاف او د واکمنو په ظلم او ستم باندې نظر غورځوو نو مونږ وينو چې په ماضي کې ډيرو خلکو د مهدي دعوه کړې او د يو شمير خلکو لخوا د دوی دغه دعوه تصديق شوې هم ده، له هغوی څينې يو شمير يې په لاندې ډول دي.

(۱) د روافضو شيعه ګانو دا عقيده ده چې دوی مهدي منتظربن دي، د دوی په نزد د هغه نوم محمد بن حسن عسکري دی، شيعه ګان وايي چې هغه د حسن بن علي رضی الله عنهما له اولادې څخه نه دی، بلکه د حسين بن علي رضی الله عنهما له اولادې څخه دی.

د دوی دا عقيده ده چې دغه امام يو زر کاله د مخه په سنه دوه سوه شپيتم (۲۶۰) هجري کې د سامراء په غار کې ننوتلی، کله چې دی دغه غار ته ننوت نو د هغه عمر پنځه کاله وو.

✿ هغه تر دا مهاله په دغه غار کې ژوندی دی، هغه ته مرګ نه راځي او هغه به په آخره زمانه کې له دغه غار څخه د باندې را ووځي.

✿ دغه امام په هر ځای کې حاضر او ناظر دی، هغه د خلکو له حالاتو څخه خبر دار دی، مګر د خلکو له سترګو څخه غائب دی او هغه نه ويني.

✿ ياد لرئ : د دوی دغه عقايد سرا سر بې وقوفي او جهالت دی. په هيڅ دليل، برهان، عقل او استدلال سره د هغه تاييد نشي کيدای. بيا دا عقيده

د انسانانو په باره کې د الله تعالی له سنت څخه هم خلاف ده، الله تعالی انبیاء او رسولان کوم چې د الله تعالی په مخلوق کې افضل ترین انسانان دي، هغه الله تعالی وفات کړي او د شیعه ګانو مهدي له زرو کلونو څخه زیاته موده ژوندی پاتې کیدل دا څنګه ممکن دي؟

بیا د سوچ خبره دا ده که چیرته هغه ژوندی وي نو بیا دومره اوږده موده د هغه د غائبیدو او پټیدو ضرورت څه دی؟ هغه د باندې ولې نه را ووځي او د خلکو په مینځ کې د امر بالمعروف او نهی عن المنکر فریضه ولې نه انجاموي؟ سره له دې چې نن ورځ امت هغه ته ډیر اشد ضرورت لري.

امام ابن کثیر رحمه الله په احادیثو کې د وارد مهدي محمد بن عبد الله په باره کې فرمایلي:

د اهل سنت مهدي به د مشرق له لوري را ښکاره شي نه د سامراء له غاره لکه څنګه چې د جاهلو شیعه ګانو عقیده ده چې هغه دا مهال هم په هغه غار کې موجد دی، دوی په آخره زمانه کې د هغه خروج ته انتظار کوي، دا محض حماقت او د شیطان له لوري سخته ګمراهي او دوکه ده، د دغې عقیدې هیڅ دلیل نشته، نه له قرآن او سنت څخه، نه له عقل سلیم او نه له استحسان څخه [1].

(٢) عبد الله بن سبا دعوه کړې چې علي بن ابي طالب رضي الله عنه مهدي منتظر دی او د ده ګمان دا ده چې هغه به دنیا ته واپس بیرته راځي.

(٣) مختار بن عبید ثقفي دعوه کړې چې محمد بن الحنفیه کوم چې په سنه (٨١) هجري کې وفات شوی، هغه مهدي منتظر دی، د محمد بن الحنفیه نوم محمد بن علي بن ابي طالب دی، هغه ته ابن الحنفیه له دې امله ویل کیږي چې د هغه د مور خوله بنت جعفر تعلق له بنو حنفیه قبیلې سره دی.

---

[1] - النهایة في الفتن والملاحم. ص: ١٧.

(۴) د فرقه کسانیه خلک کوم چې د حضرت علي ﷺ ازاد کرده غلام کیسان پیروان دي او دوی هم د شیعه ګانو یوه ډله ده، د هغوی عقیده ده چې د محمد بن الحنفیه ټول علوم زده دي، خلاصه دا ده چې دین د یوه شخص د اطاعت نوم دی، دوی په ارکان شرعیه ؤ کې تاویل کوي او وایي له هغوی څخه مراد رجال دي نو ځکه هغوی ارکان شرعیه معطل کړي دي، د دې فرقې (ډلې) عقیده دا ده چې عبد الله بن معاویه بن عبد الله بن جعفر بن ابي طالب هاشمي قریشي مهدي دی.

(۵) محمد بن عبد الله بن حسن بن علي بن ابي طالب د کوم لقب چې نفس زکیه دی او په سنه (۱۴۵) هجرۍ کې وفات شوی، دا یو ډیر روژه لرونکی، لمونځ کوونکی او عبادت کوونکي شخص دی، د ده په زمانه کې یو شمیر خلک به په فتنو کې مبتلا شي او ګمان به کوي چې دا سړی امام مهدي دی، هغوی به تحریک شروع کړي او یو شمیر خلک به د هغوی پیروي وکړي، هغوی به د حالاتو د ښه والي لپاره کوښښ کوي، د دوی په دور کې به د عباسي لښکر چې په لسو زرو جنګیالیو به مشتمل وي له هغوی سره به جنګ وکړي او دا تحریک به ختم کړي، نفس زکیه به د عباسي خلیفه خلاف خروج وکړي، ځکه چې د هغوی په زمانه کې به ظلم او استبداد ډیر خپور شوی وي.

(۶) د مهدیت په دعوه دارانو کې د یوه نوم عبید الله بن میمون القداح هم دی، دی په سنه (۳۲۵) هجري کې وفات شوی، د ده تره یهودي دی، عبید الله د فرقې قرامطه بنیاد ګر دی کوم چې د مسلمانانو قتل عام کړی او په سنه (۳۱۷) هجري کې یې حجر اسود واړاوه، دا خلک په کفر او الحاد کې له یهودو او نصارئ ؤ هم دوه قدمه وړاندې دي.

د هغه اولاد ته شهرت او اقتدار په لاس ورغی، هغوی په مصر، حجاز او شام باندې کنټرول درلود او همدلته یې حکومت جوړ کړی وو. هغه غلط بیان کاوه او د خپل ځان نسبت یې اهل بیت ته کاوه او دعوه یې کوله چې

دی د فاطمة الزهره له نسل څخه دی. همدا وجه ده چې فاطمي ورته ویل کیږي، هغه د خپل حکومت په زمانه کې د امام شافعي رحمه الله د مسلک ټول قاضیان غاړې ته کړل او په هر ځای کې یې قبرونه او مزارونه رواج کړل او په امت یې بې شماره مصیبتونه را نازل کړل.

قرامطیان په ظاهره د مسلماني دعوه کوي لیکن په حقیقت کې هغوی ملحدین دي، دا خلک له ټولو مذاهبو وتلي دي، د هغوی مذهب د اور پرستو (مجوسیانو) او د ستورو پرستو (صابیانو) له مذهبو مرکب دی.

امام ابن کثیر رحمه الله فرمایي: د فاطمیانو د حکومت موده له (۲۸۰) کلونو زیاته موده وه، عبید الله القداح د مهدي والي دعوه کړې وه او د مهدیه نامي ښار ډېره یې اینبې ده (۱).

(۷) کومو خلکو چې د مهدي والي دعوه کړې په هغوی کې محمد بن عبد الله بربري هم دی کوم چې په ابن تومروت سره مشهور دی، دا کس په سنه (۵۱۴) هجري کې ظاهر شوی او هغه دعوه کړې چې دی د حضرت علي بن ابي طالب رضي الله عنه له نسل څخه دی، هغه خپل نسب له حسن بن علي رضي الله عنه سره تړلی وو.

دغه سړي د ظلم او استبداد په ذریعه حکومت هم ترلاسه کړی، دی ډیر حیله جوړونکی او دوکه باز انسان دی کوم به چې خلکو ته د حیلو په جوړولو سره دوکه ورکوله او هغوی ته به یې د دې اظهار کاوه چې دی د ډیرو کراماتو څښتن دی. د هغه یوه حیله بازي دا هم ده چې هغه یو څل یو شمیر خلک قبرونو ته ور واچول او بیا یې یو شمیر نور خلک له ځان سره کړل او همدې قبرونو ته یې راوستل او غږ یې کړ: اې د قبرونو خاوندانو! زما د خبرې ځواب راکړی. هغوی په ځواب کې وویل: ته مهدي یې، ته له ګناهونو پاک یې او د ستا فلانکی او فلانکی خوی ده، بیا به ده ته دا

---

(۱) تاریخ الاسلام للذهبي، حوادث سنة: ۳۲۲، ص: ۲۴.

اندیښنه پیدا شوه هسې نه چې د ده دغه چل رسوا نشي نو به یې په قبرونو په اچول شویو سړیو باندې قبرونه ور وغورځول او هغه به یې ټول ووژل.
(۸) د مهدي په دعوه دارانو کې یو سړی محمد احمد بن عبد الله سوډاني متوفي سنه (۱۳۰۲) هجري موافق (۱۸۸۵) عیسوي هم دی، دا یو صوفي دی کوم چې په سوډان باندې غلبه تر لاسه کړه، هغه په زهد او عبادت کې مشهور وو او هغه د اته دیرش (۳۸) کلونو په عمر کې د مهدي کیدو دعوه وکړه، د قبایلو سرداران او لوی خلک د هغه لور ته مایل شول، د ده عقیده وه هر څوک چې د ده له مهدیت څخه انکار وکړي نو هغوی له الله او رسول سره د کفر ارتکاب وکړ، سره له دې چې د انګریزي عیسایانو په خلاف په جنګونو کې د هغه یو شمیر کارنامې شته دي، مګر واقعي امر دا دی چې دی په احادیثو کې مذکور مهدي موعود نه دی، بلکه دی هم د مهدیت د نورو دعوه کوونکو په څیر یو دروغژن مدعي دی.
(۹) د مهدیت په دعوه دارانو کې یو سړی محمد بن عبد الله قحطاني هم دی، دا سړی د سعودي هیواد په دارالخلافت ریاض کې ظاهر شوی، بیان کیږي چې هغه یوه ورځ په خوب کې ولیدل چې دی مهدي دی، یو شمیر خلکو له هغه سره بیعت وکړ او د هغه پیروان جوړ شول، دې خلکو په سنه (۱۴۰۰) هجري موافق (۱۹۸) عیسوي کې په مسجد حرام کې د هغه د مهدي کیدو اعلان یې وکړ او په مسجد کې بند شول. دا واقعه د فتنه حرام په نامه مشهوره ده کومه چې د هغه په قتل سره پای ته ورسیده.

**د مهدي له دعوه دارانو سره د معاملې قواعد او ضوابط**

کله چې مونږ د مهدي د دعوه دارانو تردید کوو نو له دې څخه زمونږ مقصد هیڅ کله دا نه دی چې مونږ د مهدي په باره کې له احادیثو څخه انکار کوو. اما د مهدي په باره کې د احادیثو تصدیقول او د نبي کریم ﷺ د فرمان تسلیمول یو شی دی او د کوم سړي په باره کې دا فیصله کول چې هغه مهدي دی او که نه دا بل شی دی، د دې دواړو په مابین کې فرق کول پکار دي، د الله

تعالی رسول ﷺ د مهدي معامله په هوا کې نه ده پریښې، بلکه نبي کریم ﷺ د هغې لپاره ډیرې ښکاره نښانې او قواعد بیان کړي د کومو په رڼا کې چې مونږ پرته له شک او شبهې د اصلي مهدي پیژندل کولای شو، له هغوی ځینې یو شمیر په لاندې ډول دي.

(۱) مهدي به خلک خپل لور ته نه دعوتوي، نه به د خپل بیعت لپاره خلک مجبوروي. بلکه خلک به له هغه سره بیعت کوي او دی به یې نه خوښوي.

(۲) د مهدي نوم به د نبي کریم ﷺ له نوم سره یو شانته وي، یعنې نوم به یې محمد بن عبد الله وي.

(۳) د هغه د نسب سلسله به سیدنا حسن بن علي رضی الله عنهما ته رسیږي.

(۴) په حدیث کې د موجودو جسماني صفتونو موجودیت هم په هغه کې ضروري دي، لکه چې رسول الله ﷺ فرمایلي: هغه به د لغړې تندې او اوږدې پوزې واله وي.

(۵) هغه چې په کومو حالاتو کې ظاهره کیږي هغه به په دې ډول وي:

- د یوه خلیفه له وفات وروسته به اختلاف را منځته شي ([1]).
- زمکه به په دغه وخت کې له ظلم او ستم څخه ډکه وي.
- د دریو خلیفه ګانو زامن به په خپل مینځ کې جنګ سره وکړي.
- مهدي به یو نیک او متقي شخص وي. هغه به له علم شریعت، حکمت او دانش څخه خبر دار وي.
- د هغه ظهور به په مکه مکرمه کې وي او د حجر اسود او مقام ابراهیم تر مینځ به له هغه سره بیعت کیږي، دلته یوه پوښتنه پیدا کیږي.

**پوښتنه**: هغه کوم حالات او اسباب دي د کومو په سبب سره چې تاسو او یا نورو ته د امام مهدي خیال پیدا کیږي؟

---

[1] سره له دې دا خبره چې په حدیث کې ذکر شوې د هغې په سند کې خبرې شته.

**ځواب**: که چیرته مونږ د هغو خلکو په حالاتو او واقعاتو غور او فکر وکړو کومو چې د مهدیت دعوه کړې وه نو معلومیږي چې:

✿ د مهدي کیدو دعوه کوونکي ځینې خلک داسې دي کومو چې په خلکو غلبه او حکومت تر لاسه کړی او بیا یې له دروغو او بهتان څخه کار اخستی او د مهدي کیدو دعوه یې کړې، په داسې خلکو د مهدي کیدو هیڅ نښانې صادقې نه دي، په داسې دعوه کوونکو کې عبید الله القداح او ابن تومرت وغیره شامل دي.

✿ د مهدیت ځیني دعوه دار داسې دي د کومو معامله چې مشتبه ده او خلکو د هغه په باره کې داسې ګمان کړی چې هغه امام مهدي دی. لکه څرنګه چې د محمد بن عبد الله نفس زکیه معامله ده. هغه ظاهر شو او خلک د هغه پیروان شول او بیا په وروسته کې معلومه شوه چې هغه مهدي نه دی، ځیني داسې دي کومو چې د ځان د مهدي کیدو په باره کې خوب لیدلی نو خلکو هغه مهدي بللی، لکه محمد بن عبد الله قحطاني.

آیا له خوب څخه کوم شرعي حکم اخذ کیدلای شي؟

د خوبونو په ذریعه د شریعت کوم حکم نشي اخذ کیدلای او نه د خوب په بنیاد د اسلامي امت کومه فیصله کیدلای شي، محض په خوب او خیال باندې د کومې معمولي شانته مسئلې بنیاد هم نشي ساتل کیدای.

قاضي شریک بن عبد الله خلیفه مهدي ته ورغی چې ګوري د خلیفه مزاج بدل دی او سخت په غصه کې دی، قاضي شریک وپوښتل: څه خبره ده! امیرالمؤمنین نن ډیر په غصه کې دی؟ خلیفه مهدي وویل: ما د شپې په خوب کې ولیدل چې ته زما په بستر کې بیده یې. کله چې ما له تعبیر کوونکو څخه د تعبیر پوښتنه وکړه نو هغوی راته وویل چې ته له ما سره بغض لرې او زما په خلاف پلان جوړوې. قاضي سمدستي ځواب ورکړ: امیر المؤمنین! والله! نه د ستا خوب د حضرت ابراهیم ﷺ په څیر ربښتونی وي او نه دستا تعبیر کوونکي د حضرت یوسف ﷺ د تعبیر کوونکو په څیر وي

د قاضي شریک لخوا خلیفه ته داسې خوب ورکول ښکاره د هغه تردید دی او دا د داسې چا تردید دی د کوم تعلق چې له یوه انسان سره دی او که چیرته د یوې معاملې تعلق له ټول امت سره وي نو بیا د هغې تردید په څومره اندازه ضروري دی.

یوه سړي په خوب کې ولیدل چې خپل زوی ذبحه کوي نو هغه خپل زوی ذبحه کړ.

یوه ورځ ما په کوم اخبار کې ولیدل چې په افریقه کې یوه سړي په خوب کې ولیدل چې هغه خپل زوی ذبحه کوي او چې سهار را پورته شو نو خپل زوی یې را ونیو او ذبحه یې کړ. د ده دا توقع وه چې د ده لپاره به له آسمان څخه کومه لویه ذبیحه راشي او زوی به یې بچ شي، لکه څرنګه چې الله تعالی د حضرت اسماعیل ﷺ د بچ کولو لپاره له جنت څخه یو مګ (پسه) را ولیږه.

له دغه جاهل څخه چې کله په دې باره کې پوښتنه وشوه نو هغه وویل: ما د حضرت ابراهیم ﷺ په سنت عمل وکړ، ځکه کله چې سیدنا حضرت ابراهیم ﷺ په خوب کې ولیدل چې هغه خپل زوی اسماعیل ذبحه کوي نو یې ورته وویل:

﴿يٰبُنَيَّ اِنِّيْٓ اَرٰى فِي الْمَنَامِ اَنِّيْٓ اَذْبَحُكَ فَانْظُرْ مَاذَا تَرٰى ؕ قَالَ يٰٓاَبَتِ افْعَلْ مَا تُؤْمَرُ ؗ سَتَجِدُنِيْٓ اِنْ شَآءَ اللّٰهُ مِنَ الصّٰبِرِيْنَ ﴿۱۰۲﴾ فَلَمَّآ اَسْلَمَا وَ تَلَّهٗ لِلْجَبِيْنِ ﴿۱۰۳﴾ وَ نَادَيْنٰهُ اَنْ يّٰٓاِبْرٰهِيْمُ ﴿۱۰۴﴾ قَدْ صَدَّقْتَ الرُّءْيَا ۚ اِنَّا كَذٰلِكَ نَجْزِي الْمُحْسِنِيْنَ ﴿۱۰۵﴾ اِنَّ هٰذَا لَهُوَ الْبَلٰٓؤُا الْمُبِيْنُ ﴿۱۰۶﴾ وَفَدَيْنٰهُ بِذِبْحٍ عَظِيْمٍ ﴿۱۰۷﴾﴾ ([1]).

ژباړه: اې خوږیه زما بیشکه زه پر لیسې وینم په خوب کې داسې چې بیشکه زه ذبحه کوم تا پس ته هم نظر وکړه چې څرنګه مصلحت ګڼې: وویل

[1] الصافات، آیة: ۱۰۲ الی ۱۰۷.

(اسماعيل) اې پلاره زما ته همغه وکړه چې حکم يې شوى دى درباندې ؛ ژر ده چې وبه مومې ته ما که اراده فرمايلې وي الله له صبر کونکيو (په حکم د الله) پس کله چې غاړه کيښوده (دواړو حکم د الله ته) او واېې چاوه دغه (اسماعيل) پر (ښي) اړخ د ده او غږ وکړ مونږ ده ته داسې چې اې ابراهيم ! په تحقيق رښتيا کړ تا خوب خپل (او ومو مانه هغه له تا) بيشکه مونږ همداسې (لکه نيکه جزاء د ابراهيم نيکه) جزاء ور کوو (نورو) محسنانو نيکو کارانو ته ؛ بيشکه چې همدا ذبحه خامخا همدا ابتلاء ازموينه وه ښکاره ؛ او فديه مو ورکړه دغه (اسماعيل) ته په مذبوحې لوئي (جنتي پسه سره).

د دغه افريقايي دغه عمل د آخرې درجې جهالت دى، د داسې جاهل سړي خوب د يوه نبي د خوب په څير څنګه کيدلاى شي په کوم چې د الله تعالى له لوري وحې نازليږي.

که کله مو ښه خوب وليد نو د الله تعالى شکر اداء کړى او خوشحاله اوسى او که مو بد خوب وليد نو د هغه له شر څخه په الله تعالى پناه وغواړى، په دې طريقې سره دا خوب تاسو ته نقصان نشي رسولاى.

يو اصل : که يو څوک د مهدي کيدو دعوه وکړي او په احاديثو کې بيان شوې ښښانې په هغه کې نه وي او نه دجال د هغه په زمانه کې ظاهر شوى وي نو داسې سړى دروغژن، کذاب او دجال دى، همدا شان که يو څوک د مسيح عيسى ﷺ دعوه وکړي او دجال د هغه له راتلو د مخه نه وي ظاهر شوى نو داسې سړى هم کذاب او دجال دى.

د مهدي جايزه د افراط او تفريط په ځاى په عدل او انصاف کې ده.

د اهل السنت والجماعة په نزد د مهدي حقيقت له دې څخه زيات نه دى چې هغه به له ائمه مسلمين څخه يو امام وي کوم به چې په ټولنه کې د عدل او انصاف لپاره کار کوي او غير معصوم به وي [1].

---

[1] - وګورئ کتاب عقيدة اهل الاثر في المهدي المنتظر. للشيخ العباد.

ځينې اهل علمو له مهدي څخه انکار کړی په هغوی کې ځينې دا دي:
❁ علامه ابن خلدون: ابن خلدون د مهدي په مسئله کې متردد دی، هغه په دې سلسله کې په واردو حديثونو باندې تنقيد کړی او ويلي يې دي په هغو احاديثو کې کوم يو داسې دی کوم چې له نقد او جرح څخه بچ وي؟.
❁ محمد رشيد رضا: هغه وايي: د مهدي په حديثونو کې ډېر قوي او ښکاره تعارض دی، په دې موضوع کې د هغو رواياتو په مابين کې جمع او تطبيق ډېر مشکل دی، له هغوی څخه د انکار کوونکو شمير ډېر زيات دی، همدا وجه ده چې امام بخاري رحمه الله او امام مسلم رحمه الله په خپلو کتابونو کې د همدغو روايتونو ذکر نه دی کړی، د ائمه مسلمين يو لوی شمير خلکو دغه روايتونه ضعيف بللي (١).
❁ احمد امين: د مهدي په باره کې ټول حديثونه خرافات دي او د هغوی له امله د مسلمانانو په زندګي کې ډېرې خطرناکې نتيجې ظاهرې شوې دي (٢).
❁ عبد الله بن زيد آل محمود: د مهدي دعوه له ابتداء څخه تر انتهاء ټوله په دروا غو بنا ده، دا يوه بده او قبيحه عقيده ده. په اصل کې دا خرافات دي کوم چې له يوه څخه بل ته منتقل کيږي او دا رنګه احاديث دهشت خپريدونکي دي (٣).
❁ محمد فريد وجدي: د مهدي منتظر په باره کې چې کوم حديثونه بيان کړی شوي دي، که اهل علم او بصيرت د هغو جايزه واخلي نو د دوی به په دې خبره کې شک پاتې نشي چې نبي کريم ﷺ د داسې شيانو له بيانولو څخه پاک دی، په دغو روايتونو کې چې کومه غلوه، تضاد، مبالغه، د خلکو له حالاتو څخه نا خبري او د انسانانو په باره کې د الله تعالی له رائجو طريقو څخه چې کوم بعد راغلی هغه له چا څخه پټ نه دی، د دغو احاديثو

---

١ تفسير المنار، الاعراف: ٧/ ١٨٧.
٢ ضحی الاسلام: ٣/ ٢٤٣.
٣ وګورئ د هغه رساله: لا مهدي ينتظر، بعد الرسول خير البشر: ٥٨.

مطالعه کوونکي په اول نظر کې دا محسوسه وي چې دا موضوعي روایات کوم چې عربو او په غربي ریاست کې د یو شمیر طلب ګارو ګمراه حوارییو د خاصو مقاصدو لپاره وضع کړي ([1]).

**له مهدي څخه د منکرینو دلائل**

(۱) په قرآن کې د مهدي ذکر نه دی راغلی، که چیرته دا خبره حق وی نو الله تعالی به په قرآن کې د هغې ذکر کړی وای.

**ځواب**: په قرآن کریم کې د قیامت د ټولو نښانو ذکر نه دی شوی، حتی په هغه کې د خروج دجال او په آخره زمانه کې په زمکه کې د خسف کیدو ذکر هم نه دی شوی، دا نښانې په سنت کې ذکر کړی شوې دي، کله چې دا نښانې په سنت سره ثابتې دي نو بر حق دي، ځکه چې د الله تعالی د خپل نبي په باره کې دا اعلان دی:

﴿وَمَا يَنْطِقُ عَنِ الْهَوٰى﴾ ([2]).

ژباړه: خبرې نه کوي (محمد) له هوا خپلې نه.

د رسول الله ﷺ ارشاد دی:

﴿الا انی اوتیت القرآن ومثله معه﴾ ([3]).

ژباړه: خبر دار! ما ته قرآن کریم هم راکړل شوی دی او له هغه سره یو بل شی (سنت) هم راکړل شوی دی.

نبي کریم ﷺ د هغو نښانو ذکر فرمایلی او هغه یې ثابتې فرمایلې دي، له همدې امله دا د ثابت شده دین یوه برخه ده.

(۲) د مهدي احادیث په صحیحینو کې نشته.

---

[1] - دائرة المارف القرآن العشرین: ۱۰ / ۴۸.

[2] - النجم. آیة: ۳.

[3] - مسند احمد: ۴ / ۱۳۰.

**ځواب**: په صحیح مسلم او صحیح بخاري کې د نبي کریم ﷺ ټول احادیث نه دي جمع کړی شوي، له امام بخاري رحمه الله او امام مسلم رحمه الله پرته د سنت راویان نور محققین ائمه هم شته دي او له مونږ سره داسې وسایل شته دي په کومو سره چې د صحیح او ضعیف حدیث امتیاز کولای شو، که چیرته له تحقیق وروسته حدیث صحیح ثابت شي د هغه قبلول واجب دي، خوا هغه که په صحیح مسلم او صحیح بخاري کې وي او که په بل کوم کتاب کې وي، په صحیح مسلم او صحیح بخاري کې د مهدي په باره کې روایات ضرور راغلي، مګر هلته د مهدي له نامه پرته د هغه نور اوصاف بیان شوي دي، په تیرو شویو احادیثو کې د صحیحینو احادیث هم تر سترګو کیږي.

(۳) مونږ د مهدیت مدعیانو لپاره دروازه خلاصول نه غواړو.

**ځواب**: کله چې مونږ د مهدي په باره کې قواعد او ضوابط بیانه وو نو تر اوسه پورې دروغژن دعوه دار ته هیڅ ګنجایش نه دی پاتې شوی، د مهدي خاص جسماني صفات دي او د هغه د زمانې یو شمیر متعین حالات دي د کومو ذکر چې مخکې تیر شو، دا صفتونه یواځې په یوه کس کې پیدا کیدلای شي کوم چې حقیقي مهدي دی.

**د دغې موضوع اخیري خبر**

آیا په مهدي باندې د ایمان راړو معنا دا ده چې دعوت او عمل پریښودل شي؟

په ډیرو اسلامي هیوادونو کې د خیر او شر په مینځ کې کشمکش روان دی، د دغو هیوادونو اوسیدونکي د ډیرې سختې مایوسۍ ښکار دي او هغوی مهدي ته په انتظار کې دي، چې په نتیجه کې یې دغو خلکو دعوت او عمل پریښی او قلار ناست دي او له امر بالعروف او نهی عن المنکر څخه یې خاموشي غوره کړې. هغوی د علم حاصلول او د هغه د نشر او اشاعت کار یې هم شا ته غورځولی او په ځینو وختونو کې له کار وبار،

تعمیر او ترقي څخه هم ځانونه غاړې ته کوي او ځینو خلکو داسې خبرې شروع کړې چې معامله ډیره زر راتلونکې ده او دا د مهدي د ظهور زمانه ده، هغه ډیر زر راتلونکی دی نو په دنیوي امورو کې د ځان ګیرولو ته ضرورت څه دی؟

پوښتنه دا ده چې په دغو احادیثو باندې د تعامل په باره کې شرعي اسلوب څنګه پکار دی؟

د هغوی په باره کې تعامل:

دا او نورې نښانې د دې لپاره بیان شوې دي تر څو چې مسلمانانو ته خوشحالي، صبر او ثبات حاصل شي او هغوی دا خوشخبري هم واوري چې الله تعالی به دین محفوظ وساتي او د هغه مرسته به وکړي.

له دې سره سره مونږ هغه عمل وکړو د کوم چې په شروع کې حکم شوی چې د دین مرسته وکړی، له اسلامي هیوادونو دفاع وکړی، د خدای په لار کې جهاد وکړی او د اسلامي بیرغ د سر بلندي لپاره قتال وکړی.

مونږ باید په دې انتظار کې نشو چې له آسمان څخه مرسته نازله شي یا دې زمونږ له کوشش او محنت پرته دې زمکه په جوش کې راشي.

نن هم پر مسلمانانو فرض دي چې هغوی له یهودیانو سره د جنګ لپاره او د قابضو عیسایانو له اسلامي هیوادونو څخه د وتو لپاره پوره تیاری وکړي او د قیادت لپاره د مهدي تر راتګه پورې ذلیل او رسوا ناست پاتې نشي، بلکه مونږ ټول متفق او متحد شو. د خپل دین او که مهدي راغی نو د هغه مرسته وکړو.

# علامات کبری

## (د قیامت غټې نښانې)

- د دجال خروج
- د عیسی علیه السلام نزول
- خروج یاجوج وماجوج
- په زمکه کې د خسف درې غټې پیښې
- دود
- خروج دابه (د عجیب الخلقت څناور راوتل)
- د لمر له مغرب څخه راختل
- اور، کوم به چې خلک د محشر په لوري بیایي.

**تمهید**

په تیرو صفحو کې بیان شوه چې د قیامت نښانې په دوه ډوله دي، علامات صغری او علامت کبری، یعنې د قیامت وړې او غټې نښانې، مونږ د قیامت (۱۳۱) وړې نښانې بیان کړې، اوس مونږ د قیامت د هغو غټو نښانو په تفصیل سره بیان ذکر کوو کومې چې د قیامت له قایمیدو یو څه د مخه واقع کیږي.

د قیامت غټې نښانې د مات شوي امیل (هار) د دانو په څیر په یوه بل پسې مسلسلې واقع کیږي، کله چې اوله نښانه (د مهدي ظهور) واقع شي نو بیا به له هغه وروسته په تواتر سره نورې نښانې واقع کیدل شروع کړي.

حضر عبد الله بن عمرو رضی الله عنهما بیان کوي چې رسول الله ﷺ فرمایلي:

﴿الایات خرزات منظومات في سلک، فان یقطع السلک یتبع بعضها بعض﴾ ([1]).

ژباړه:

د قیامت نښانې په تار کې د د پیرل شویو دانو په څیر دي، پس که چیرته تار پرې شي نو دانې په یوه بل پسې په تیزي سره غورځیدل شروع کړي.

حضرت ابو هریرة رضی الله عنه بیان کوي چې رسول الله ﷺ فرمایلي:

﴿خروج الایات بعضها علی اثر بعض تتابعن کما تتابع الخرز في النظام﴾ ([2]).

ژباړه:

د قیامت د نښانو ظهور به په یوه بل پسې داسې ري لکه څنګه چې امیل (هار) مات شي او د هغه دانې په یوه بلې باندې ور غورځي.

هیڅ بعیده نه ده چې د قیامت د غټو نښانو په مینځ کې یو شمیر وړې نښانې هم ظاهرې شي، مثلاً اول به د مهدي ظهور وي، بیا به د هغه په زمانه کې کومه وړه نښانه ظاهره شي، له هغه وروسته به دجال ظاهر شي او بیا به همداسې بله نښانه هم ظاهره شي (والله اعلم)

**د مسیح دجال ظهور**

- مسیح دجال څوک دی؟
- آیا هغه اوس چیرته موجود دی؟
- آیا هغه د مخه چا لیدلی؟
- د هغه نښانې به څه وي؟
- د هغه د خروج اسباب به څه وي؟

---

[1] مسند احمد ۲ ۲۱۹. وصححه احمد شاکر والباني.

[2] المعجم الاوسط للطبراني ۵ ۱۴۸. وسلسلة الاحادیث الصحیحة ۷ ۳۲۱۰.

- د دجال په ډېره غصه کې مبتلا کونکې خبره به څه وي؟
- د دجال په باره کې غلطې عقيدې کومې دي؟

**دجال څوک دی؟**

دجال د آدم ﷷ له اولادې څخه يو سړی دی کوم ته به چې الله تعالى داسې طاقت ورکړي چې له ده پرته په نوع بشر کې به بل چا ته نه وي ورکړی شوی، الله تعالى به د خلکو د ازمايښت او امتحان لپاره هغه ته دا طاقت ورکړي، نبي کريم ﷺ مونږ خبر کړي يو چې مونږ د هغه ګمراهي اختيار نه کړو. همدا شان مونږ نبي کريم ﷺ د هغه له جسماني او اخلاقي نښانو څخه هم خبر کړي يو.

**د دجال په باره معلومات لرل ضروري دي**

د يوه شي په باره کې علم لرل د هغه په باره کې له جهالت څخه ډېر بهتر دي، حضرت خذيفة ﷺ له نبي کريم ﷺ څخه د شر (فتنو) په باره کې پوښتنې کولې تر څو چې په فتنو کې مبتلا نشي ([1]).

دجال تر ټولو لويه فتنه ده، نبي کريم ﷺ د خپل امت په باره کې له هغه څخه ډېر په انديښنه کې دی. همدا وجه ده چې د هغه په باره کې يې خپل امت خبر کړی، ويرولی يې ده او آګاه کړی يې ده. له دې امله چې له دجال سره به ډېرې غټې فتنې او شبهات وي حتى چې هغه به دا دعوه هم وکړي چې هغه رب العلمين دی. کله چې مونږ ته د هغه صفات، نښانې او له هغه څخه د محفوظ اوسيدلو طريقې معلومې وي نو الله تعالى ﷻ به مونږ د هغه له شر څخه بچ وساتي (انشاء الله)

---

[1] صحيح البخاري. المناقب. حديث: ۳۶۰۲.

**د هغه نوم مسیح دجال ولې دی؟**

دجال ته مسیح له دې امله ویل کیږي چې د هغه ښی سترګه چته ده، هغه به ړوند وي او په یوه سترګه به لیدل کوي، د هغه د نام په باره کې یو قول دا هم دی چې هغه مِسِیح ده او دا هم ویلی شوي چې هغه مَسِیح ده.

ځینو د علم خاوندانو ویلي: چې د هغه نوم مسیح ځکه اېښودل شوی چې هغه به په ټوله زمکه کې وګرځي.

ځینو ویلي: مسیح نام له دې امله اېښودل شوی چې د هغه په نیمایي څېره نه سترګه شته او نه ابرو.

د هغه نوم دجال له دې امله اېښودل شوی چې د هغه کار دجل او فریب کول دي، د حیله بازي څخه کار اخستل، د حقایقو پټول او د لویو لویو دروغو ویل د هغه کار ده، دجل ډېرو لویو دروغو ته ویل کیږي، هغه له ډېر لوی دجل او فریب څخه کار اخستونکی دی، د ډېرو دروغو ویونکی او ډېر متکبر دی.

د دجال جمع دجالون او دجاجلة راځي.

**د دجال دعوه به څه وي؟**

دجال به دا دعوه کوي چې هغه رب العلمین دی، هغه به له خلکو څخه په خپل ذات باندې د ایمان راوړو غوښتنه کوي، څکه چې نبي کریم ﷺ فرمایلي:

﴿الا انه اعور وان ربکم لیس باعور﴾ (۱).

ژباړه: ببشکه دجال ړوند دی او دستاسو رب ړوند نه دی.

له دجال سره به ډېر شبهات او ډېرې حیلې وي د کومو په مرسته به چې خلک په فتنو کې مبتلا کوي.

---

۱ صحیح البخاري. الفتن. حدیث: ۷۱۳۱.

## د ابن صیاد قیصه

د نبي کریم ﷺ په زمانه کې په مدینه منوره کې یو هلک وو د کوم نام چې (ابن صیاد) وو، دا هم یوه معما وه، نبي کریم ﷺ ته هم د هغه په باره کې د دجال تردد وو، د دغه هلک او د نبي کریم ﷺ تر مینځ یوه واقعه پیښه شوه د کومې تفصیل چې دارنګه دی:

حضرت عبد الله بن عمرو رضی الله عنهما بیان کوي:

نبي کریم ﷺ، حضرت عمر بن الخطاب رضی الله عنه او یو شمیر نور خلک د ابن صیاد لوري ته ورغلل، هغه د بنو مغاله قلعې په خوا کې له هلکانو سره لوبې کولې، په دې وخت کې ابن صیاد بلوغ ته نږدې وو، هغه ته د نبي کریم ﷺ د راتلو معلومات هغه وخت وشو کله چې نبي کریم ﷺ په خپل لاس د هغه شا ووهله، له دې وروسته د ابن صیاد او د الله د رسول ﷺ تر مینځ داسې خبرې وشوې:

رسول الله ﷺ وویل: آیا ته دا ګواهي ورکوې چې زه د الله تعالی ﷻ رسول یم؟

ابن صیاد رسول الله ﷺ ته وکتل او وې ویل: زه ګواهي ورکوم چې ته امیین (یعنې د عربو لور ته رالیږل شوی رسول یې) بیا ابن صیاد د الله له رسول ﷺ څخه وپوښتل: آیا ته ګواهي ورکوې چې زه د الله تعالی رسول یم؟

رسول الله ﷺ د هغه له رسالت څخه انکار وکړ او وې فرمایل: زه په الله او د هغه په رسولانو ایمان لرم. له دې وروسته د الله رسول ﷺ له ابن صیاد څخه یوه بله پوښتنه وکړه او وې فرمایل: تا ته څه په نظر درځي؟

ابن صیاد وویل: ما ته رښتیا او دروغ په نظر راځي.

رسول الله ﷺ وویل: بیا نو معامله په تا باندې خلط ملط ده، بیا رسول الله ﷺ وفرمایل: ما په زړه کې د پوښتنې یو شی له تا پټ کړی [1].

ابن صیاد د دخان لفظ ویلو کوشش وکړ لیکن د دغه لفظ د اداء کولو توفیق یې تر لاسه نکړ او د دخان په ځای یې (دخ) (دخ) وویل. په اصل کې له ابن صیاد سره یو څه وو کومو چې له دغو شیانو څخه خبر کړی وو، ابن صیاد وویل: هغه دخ دی.

نبي کریم ﷺ وفرمایل: خلط ملط شوي په تا! ته به له خپل حیثیت څخه پورته ولاړ نشې [2].

حضرت عمر رضي الله عنه عرض وکړ: اې د الله رسوله ﷺ! ما ته اجازه راکړه چې زه د هغه سر پرې کړم.

نبي کریم ﷺ ورته وویل: هغه پریږده، که چیرته ابن صیاد دجال اکبر وي نو ته په هغه نشې غالب کیدای او که چیرته دجال نه وي نو بیا د هغه په قتل کې هیڅ ګټه نشته [3] یعنې که چیرته ابن صیاد دجال وي نو له تا سره د هغه د وژلو قدرت نشته، ځکه الله تعالی جل جلاله دا فیصله کړې چې هغه به حضرت عیسی علیه السلام له خپل نزول وروسته ووژني.

سالم بن عبد الله بن عمر فرمایي چې ما له عبد الله بن عمر رضی الله عنهما څخه دا آوریدلي چې فرمایل یې چې له دې وروسته رسول الله ﷺ له ابی ابن کعب انصاري سره د کجورو د هغه باغ لوري ته ولاړ په کوم کې چې ابن صیاد اوسیده. نبي کریم ﷺ د کجورو ونو شا ته پټ پټ هغه باغ ته ور داخل شو، نبي کریم ﷺ په پټ ډول د هغه لوري ته ور مخته شو، تر څو مخکې له دې چې هغه نبي کریم ﷺ ووینې نبي کریم ﷺ د هغه

---

[1] یعنې ما په خپل زړه کې د یوه لفظ سوچ کړی. ته د هغه د معلومولو کوشش وکړه چې هغه څه دی. د الله رسول ﷺ په خپل زړه کې د دخان لفظ پټ ساتلی وو.

[2] یعنې له خپل کهانت څخه به پورته ولاړ نشې. ځکه چې ته کاهن، دجال او حیله باز یې.

[3] صحیح مسلم. الفتن. حدیث: ۲۹۳۱.

خبرې واورې، نبي کريم ﷺ وليدل چې هغه د کمبلې په يوه ټوټه باندې پروت دی او په خوله باندې د بړ بړ آواز کوي، د ابن صياد مور د ونو شا ته پټه راغلې او چې نبي ﷺ يې وليد نو وې ويل: ارې ,, صاف؛ ؛ ‹دا د هغه نوم وو› دا محمد ‹ﷺ› دی، د دې خبرې په آوريدو ابن صياد را پورته شو او کيناست، رسول الله ﷺ وويل: که دې مداخله نه وای کړې نو نن د ابن صياد اصل حقيقت ښکاره کيدو ‹چې دا دجال دی او که نه› (١).

حضرت ابو سعيد خدري رضي الله عنه بيان کوي

يو ځل رسول الله ﷺ، حضرت ابوبکر صديق او حضرت عمر رضی الله عنهما د مدينې په لاره وو چې له ابن صياد يې سره ملاقات وشو:

نبي کريم ﷺ : ؛ آيا ته ګواهي ورکوې چې زه د الله رسول يم؟

ابن صياد: آيا ته ګواهي ورکوې چې زه د الله رسول يم؟

رسول الله ﷺ: زه په الله باندې، د هغه په فرښتو باندې او د هغه په کتابو باندې ايمان لرم، بيا رسول الله ﷺ ترې وپوښتل: تا ته په نظر څه درځي؟

ابن صياد: ما ته په اوبو باندې يو تخت په نظر راځي.

رسول الله ﷺ: تا ته په سمندر باندې د ابليس تخت په نظر درځي، ته نور څه وينې؟

ابن صياد: ما ته دوه رښتيا يو دروغ يا دوه دروغ يو رښتيا په نظر راځي.

رسول الله ﷺ: د ده خوا ته د شيطان د راتلو له وجهې په ده معامله خلط ملط شوې ده، دا پريږدی (٢).

حضرت ابو سعيد خدري رضي الله عنه بيان کوي

يو ځل زه د حج يا عمرې په سفر روان ووم، ابن صياد هم په دې سفر کې له ما سره وو، کله چې مونږ په يوه ځای کې پړاو واچاوه نو خلک يوه خوا بله خوا سره تيت شول زه او ابن صياد تنها پاتې شوو، د هغه په باره کې چې کومې

---

(١) - صحيح مسلم، الفتن، حديث: ۲۹۳۱.

(٢) - صحيح مسلم، الفتن، حديث: ۲۹۳۲.

خبرې مشهورې وې زه د هغو له امله په سخت وحشت کې مبتلا شوم، هغه خپل سامان را واخيست او زما له سامان سره يې نږدې کېښود، ما ورته وويل: ګوره ! ګرمي ډېره زياته ده، ښه دا ده چې ته خپل سامان د هغې ونې لاندې کېږدې، هغه همداسې وکړل (ابن صياد خپل سامان له ابو سعيد څخه ليرې د هغې ونې لاندې کېښود) څه وخت تېر شو چې د بزو يوه رمه مو وليده، ابن صياد پورته شو، رمې ته ورغی او د بزو له شيدو څخه ډک لوښی يې راووړ او راته وې ويل: ابو سعيد ! وڅکه، ما ورته وويل: موسم ډېر ګرم دی او شيدې هم ډېرې ګرمې دي، ځکه يې زه نه څکم، په اصل کې ما د هغه د لاسه د څه خوړل يا څښل نه خوښول.

ابن صياد وويل: ابو سعيد ! خلک زما په باره کې چې کومې خبرې کوي (ما ته دجال وايي) په دې سره غواړي چې زه په کومه ونه پورې په رسۍ باندې ځان زندۍ کړم، اې ابو سعيد! د رسول الله ﷺ حديث له هيچا پټ نه دی که وي وي به ليکن له تاسو انصارو څخه هغه پټ نه دی. ابو سعيد ! ته د رسول الله ﷺ په حديثو باندې تر ټولو ډېر علم لرونکی يې. آيا د رسول الله ﷺ په حديث کې نه دي راغلي چې دجال به ړوند وي. د هغه به اولاد نه وي. سره له دې چې زما اولاد په مدينه منوره کې موجود دی، آيا رسول الله ﷺ دا نه دي ويلي چې دجال مدينې او مکې ته نشي داخليدای. سره له دې چې زه له مدينې څخه را روان يم او مکې ته ځم

حضرت ابو سعيد رضی الله عنه وايي: ما چې د ده خبرې واريدې نو هغه مې معذور وباله او دومره مې ابن صياد ته وويل: په الله قسم! زه ښه پوهيږم چې د دجال د پيدا کيدو ځای کوم دی او هغه دا وخت چېرته دی.

ابو سعيد وايي: ما وويل: دستا لپاره ټولې ورځې د هلاکت او بربادي دي (۱).

---

۱- صحيح مسلم. الفتن. حديث: ۲۹۲۷.

**د ابن صیادپه باره کې سم موقف**

ابن صیاد مسیح دجال (دجال اکبر) نه دی، بلکه د حیله بازو دجالانو څخه یو دجال دی، له هغه سره کهانت وو او شیطان له ځینو شیانو څخه هغه خبر کړی وو.

**په قران کریم کې د دجال په نه ذکر کولو کې حکمت**

د دجال فتنه عظیم ترینه فتنه ده، نبي کریم ﷺ ته د امت په باره کې له دې فتنې ډیره ویره وه، ټولو پخوانیو انبیاؤ علیهم السلام هم خپل امتونه د دجال له فتنې څخه خبر کړي وو، د الله تعالی رسول ﷺ مونږ ته له هر لمانځه وروسته د دجال له فتنې څخه د امن غوښتلو حکم کړی.

په قرآن کریم کې الله تعالی جل جلاله د یو شمیر لویو او وړو نښانو ذکر فرمایلي، د مثال په ډول لکه د شق القمر واقعه، الله تعالی فرمایي:

﴿اِقْتَرَبَتِ السَّاعَةُ وَانْشَقَّ الْقَمَرُ ۝﴾ (١).

ژباړه:

را نږدې شو قیامت او څیرې دوه ټوټې شوه سپوږمۍ.

همدا شان د یاجوج ماجوج راوتل، الله تعالی فرمایي:

﴿حَتَّى إِذَا فُتِحَتْ يَأْجُوجُ وَمَأْجُوجُ وَهُمْ مِنْ كُلِّ حَدَبٍ يَنْسِلُونَ ۝﴾ (٢).

ژباړه:

تر هغه پورې کله چې پرانستلی شي یاجوج او ماجوج (او دیوال یې له مخې لیرې شي) او دوی به له هرې لوړې څخه ګړندي را کوزیږي.

لیکن الله تعالی د دجال د نامه ذکر په وضاحت سره په قرآن مجید کې نه دی فرمایلی.

د ده په عدم ذکر کې څه حکمت پټ دی؟

---

(١) القمر، آیة: ١.

(٢) الانبیاء، آیة: ٩٦.

په دې باره کې لاندنی خبرې ویل شوې دي.

✿ د اهل علمو په دې سلسله کې یو قول دا دی چې په لاندې آیت کریمه کې د دجال ذکر راغلی:

﴿يَوْمَ يَأْتِي بَعْضُ ءَايَٰتِ رَبِّكَ لَا يَنفَعُ نَفْسًا إِيمَٰنُهَا لَمْ تَكُنْ ءَامَنَتْ مِن قَبْلُ﴾ ([1]).

ژباړه:

په هغه ورځ چې راشي ځینې دلائل د (قدرت) د رب ستا نه به رسوي فایده (نفع) هیڅ نفس ته ایمان راوړل د ده چې نه وي دا نفس چې ایمان یې راوړی وي پخوا له دې نه.

څکه چې د دې خبرې تایید د نبي کریم ﷺ دا حدیث هم کوي په کوم کې چې فرمایي:

﴿ثلاث اذا خرجن لم ينفع نفساً ايمانها لم تكن امنت من قبل: الدجال، والدابة، وطلوع الشمس من مغربها﴾ ([2]).

ژباړه:

هر کله چې درې شیان را ښکاره شي نو هیڅ داسې سړي ته ایمان فایده نه رسوي کوم چې له پخوا څخه ایماندار نه وي، د دجال خروج، خروج دابه او د (شمس) لمر له مغرب څخه راختل.

✿ دویم قول: په قران مجید کې د حضرت عیسی علیه السلام د نزول لوري ته اشاره موجوده ده، الله تعالی جل جلاله فرمایي:

﴿وَإِن مِّنْ أَهْلِ ٱلْكِتَٰبِ إِلَّا لَيُؤْمِنَنَّ بِهِۦ قَبْلَ مَوْتِهِۦ﴾ ([3]).

---

[1] - الانعام، آية: ۱۵۸.

[2] - صحيح مسلم، الايمان، حديث: ۱۵۸، وجامع الترمذي، تفسير القرآن، حديث: ۳۰۷۲، وصححه واللفظ له.

[3] النساء، آية: ۱۵۹.

ژباړه: نشته هم څوک له اهل د کتابه مګر قسم دی هرو مرو چې ایمان به راوړي دوی خامخا (په وخت د نزغې خپلې یا په وخت د نزول د عیسی) پر دغه عیسی (پخوا له مرګه د ده څخه).
الله تعالی په یوه بل ځای کې فرمايي:
﴿وَإِنَّهُ لَعِلْمٌ لِّلسَّاعَةِ فَلَا تَمْتَرُنَّ بِهَا وَاتَّبِعُونِ ۚ هَٰذَا صِرَاطٌ مُّسْتَقِيمٌ ﴾ ([1]).
ژباړه:
او بیشکه دغه (عیسی) خامخا علامه نښه ده د قیامت (په اعتبار د نزول سره) پس شک مکوئ تاسې په راتلو د قیامت کې او متابعت وکوئ زما په (توحید کې) دغه لیاره ده سمه برابره (چې نه پرې ګمراه کیږي څوک).
او دا خبره پرته له شک سمه ده چې حضرت عیسی ﷺ به دجال قتل کړي، لهذا په قرآن کې د نزول عیسی ﷺ په باره کې د راغلیو خبرو په سلسله کې د دجال ذکر هم ضمناً راغلی دی.
حضرت خدیفه بن اسید غفاري رضي الله عنه بیان کوي چې رسول الله ﷺ فرمايلي:
﴿إن الساعة لا تكون حتى تكون عشر آيات، الدخان، والدجال، والدابة وطلوع الشمس من المغرب ..... الحديث﴾ ([2]).
ژباړه: د لسو نښانو تر ظاهریدو قیامت نه قایمیږي، دود، دجال، د ځناور راوتل او د لمر له مغرب څخه راختل ... الحدیث.
حضرت ابو هریرة رضي الله عنه بیان کوي چې رسول الله ﷺ فرمايلي:
﴿ ثلاث إذا خرجن لا ينفع نفسا إيمانها لم تكن آمنت من قبل أو كسبت في إيمانها خيرا طلوع الشمس من مغربها والدجال ودابة الأرض﴾ ([3]).

---

[1] الزخرف. آية: ٦١.
[2] صحيح مسلم. الفتن و اشراط الساعة. حديث: ٢٩٠١.
[3] صحيح مسلم. الايمان. حديث: ١٥٨.

ژباړه: کله چې درې شیان ښکاره شي نو هیڅ داسې سړي ته ایمان راوړل فایده نه رسوي کوم چې له پخوا څخه ایماندار نه وي، (۱) د لمر له مغرب څخه راختل (۲) د دجال راوتل (۳) له زمکې څخه د یوه لوی ځناور راوتل.

## له ټولو لویه فتنه

حضرت عمران بن حصین رضي الله عنه بیان کوي چې رسول الله ﷺ فرمایلي:

﴿ما بين خلق آدم إلى قيام الساعة خلق أكبر من الدجال﴾ ([1]).

ژباړه:

د حضرت آدم علیه السلام له پیدایښت څخه نیولې د قیامت تر قایمیدو پورې له دجال څخه لوی مخلوق نشته. او د یوه روایت الفاظ داسې دي؛ له دجال څخه بل لوی کوم مصیبت نشته.

حضرت عبد الله بن عمر رضي الله عنه وایي چې رسول الله ﷺ یوه ورځ خلکو ته د خطاب کولو په وخت کې ودرید، نبي کریم ﷺ د الله تعالی جل جلاله شان بیان کړ او بیا یې د دجال ذکر وکړ او وې فرمایل:

﴿إِنِّي لَأُنْذِرُكُمُوهُ وَمَا مِنْ نَبِيٍّ إِلَّا وَقَدْ أَنْذَرَهُ قَوْمَهُ وَلَكِنِّي سَأَقُولُ لَكُمْ فِيهِ قَوْلًا لَمْ يَقُلْهُ نَبِيٌّ لِقَوْمِهِ إِنَّهُ أَعْوَرُ وَإِنَّ اللَّهَ لَيْسَ بِأَعْوَرَ﴾ ([2]).

ژباړه: زه تاسو له دې څخه ویره وم او هر نبي خپل قوم له دې څخه ویرولی لیکن زه تاسو ته یوه داسې خبر کوم کومه چې هیڅ نبي خپل قوم ته نه ده بیان کړې: هغه به په یوه سترګه باندې ړوند وي او الله تعالی هیڅ کله داسې نه دی.

حضرت نواس بن سمعان رضي الله عنه بیان کوي چې رسول الله ﷺ فرمایلي:

﴿ غير الدجال أخوفني عليكم إن يخرج وأنا فيكم فأنا حجيجه دونكم وإن يخرج ولست فيكم فامرؤ حجيج نفسه والله خليفتي على كل مسلم﴾ ([3]).

---

[1] - صحیح مسلم. الفتن واشراط الساعة. حدیث: ۲۹۴۲.

[2] - صحیح البخاري. الانبیاء. حدیث: ۷۱۲۷.

[3] - صحیح مسلم. الفتن واشراط الساعة. حدیث: ۲۹۲۷.

**د ابن صیاد قیصه**

د نبي کریم ﷺ په زمانه کې په مدینه منوره کې یو هلک وو د کوم نام چې (ابن صیاد) وو، دا هم یوه معما وه، نبي کریم ﷺ ته هم د هغه په باره کې د دجال تردد وو، د دغه هلک او د نبي کریم ﷺ تر مینځ یوه واقعه پیښه شوه د کومې تفصیل چې دارنګه دی:

حضرت عبد الله بن عمرو رضی الله عنهما بیان کوي:

نبي کریم ﷺ، حضرت عمر بن الخطاب رضي الله عنه او یو شمیر نور خلک د ابن صیاد لوري ته ورغلل، هغه د بنو مغاله قلعې په خوا کې له هلکانو سره لوبې کولې، په دې وخت کې ابن صیاد بلوغ ته نږدې وو، هغه ته د نبي کریم ﷺ د راتلو معلومات هغه وخت وشو کله چې نبي کریم ﷺ په خپل لاس د هغه شا ووهله، له دې وروسته د ابن صیاد او د الله د رسول ﷺ تر مینځ داسې خبرې وشوې:

رسول الله ﷺ وویل: آیا ته دا ګواهي ورکوي چې زه د الله تعالی ﷻ رسول یم؟

ابن صیاد رسول الله ﷺ ته وکتل او وې ویل: زه ګواهي ورکوم چې ته امیین (یعنې د عربو لور ته رالیږل شوی رسول یې) بیا ابن صیاد د الله له رسول ﷺ څخه وپوښتل: آیا ته ګواهي ورکوي چې زه د الله تعالی رسول یم؟

رسول الله ﷺ د هغه له رسالت څخه انکار وکړ او وې فرمایل: زه په الله او د هغه په رسولانو ایمان لرم. له دې وروسته د الله رسول ﷺ له ابن صیاد څخه یوه بله پوښتنه وکړه او وې فرمایل: تا ته څه په نظر درځي؟

ابن صیاد وویل: ما ته رښتیا او دروغ په نظر راځي.

رسول الله ﷺ وویل: بیا نو معامله په تا باندې خلط ملط ده، بیا رسول الله ﷺ وفرمایل: ما په زړه کې د پوښتنې یو شی له تا پټ کړی [۱].

ابن صیاد د دخان لفظ ویلو کوشش وکړ لیکن د دغه لفظ د اداء کولو توفیق یې تر لاسه نکړ او د دخان په ځای یې (دخ) (دخ) وویل. په اصل کې له ابن صیاد سره یو څه وو کومو چې له دغو شیانو څخه خبر کړی وو، ابن صیاد وویل: هغه دخ دی.

نبي کریم ﷺ وفرمایل: خلط ملط شوې په تا! ته به له خپل حیثیت څخه پورته ولاړ نشې [۲].

حضرت عمر رضی الله عنه عرض وکړ: اې د الله رسوله ﷺ! ما ته اجازه راکړه چې زه د هغه سر پرې کړم.

نبي کریم ﷺ ورته وویل: هغه پریږده، که چیرته ابن صیاد دجال اکبر وي نو ته په هغه نشې غالب کیدای او که چیرته دجال نه وي نو بیا د هغه په قتل کې هیڅ ګټه نشته [۳] یعنې که چیرته ابن صیاد دجال وي نو له تا سره د هغه د وژلو قدرت نشته، ځکه الله تعالی جل جلاله دا فیصله کړې چې هغه به حضرت عیسی علیه السلام له خپل نزول وروسته ووژني.

سالم بن عبد الله بن عمر فرمایي چې ما له عبد الله بن عمر رضی الله عنهما څخه دا آوریدلي چې فرمایل یې چې له دې وروسته رسول الله ﷺ له ابی ابن کعب انصاري سره د کجورو د هغه باغ لوري ته ولاړ په کوم کې چې ابن صیاد اوسیده. نبي کریم ﷺ د کجورو ونو شا ته پټ پټ هغه باغ ته ور داخل شو، نبي کریم ﷺ په پټه ډول د هغه لوري ته ور مخته شو، تر څو مخکې له دې چې هغه نبي کریم ﷺ ووینې نبي کریم ﷺ د هغه

---

[۱] یعنې ما په خپل زړه کې د یوه لفظ سوچ کړی. ته د هغه د معلومولو کوشش وکړه چې هغه څه دی. د الله رسول ﷺ په خپل زړه کې د دخان لفظ پټ ساتلی وو.

[۲] یعنې له خپل کهانت څخه به پورته ولاړ نشې. ځکه چې ته کاهن، دجال او حیله باز یې.

[۳] صحیح مسلم. الفتن. حدیث: ۲۹۳۱.

خبرې واورې، نبي کريم ﷺ وليدل چې هغه د کمبلې په يوه ټوټه باندې پروت دی او په خوله باندې د بړ بړ آواز کوي، د ابن صياد مور د ونو شا ته پټه راغلې او چې نبي ﷺ يې وليد نو وې ويل: ارې ,,صاف!؛ (دا د هغه نوم وو) دا محمد (ﷺ) دی، د دې خبرې په آوريدو ابن صياد را پورته شو او کيناست، رسول الله ﷺ وويل: که دې مداخله نه وای کړې نو نن د ابن صياد اصل حقيقت ښکاره کيدو (چې دا دجال دی او که نه) ([1]).

حضرت ابو سعيد خدري رضی الله عنه بيان کوي

يو ځل رسول الله ﷺ، حضرت ابوبکر صديق او حضرت عمر رضی الله عنهما د مدينې په لاره وو چې له ابن صياد يې سره ملاقات وشو:

نبي کريم ﷺ: آيا ته ګواهي ورکوې چې زه د الله رسول يم؟

ابن صياد: آيا ته ګواهي ورکوې چې زه د الله رسول يم؟

رسول الله ﷺ: زه په الله باندې، د هغه په فرښتو باندې او د هغه په کتابو باندې ايمان لرم، بيا رسول الله ﷺ ترې وپوښتل: تا ته په نظر څه درځي؟

ابن صياد: ما ته په اوبو باندې يو تخت په نظر راځي.

رسول الله ﷺ: تا ته په سمندر باندې د ابليس تخت په نظر درځي، ته نور څه وينې؟

ابن صياد: ما ته دوه رښتيا يو دروغ يا دوه دروغ يو رښتيا په نظر راځي.

رسول الله ﷺ: د ده خوا ته د شيطان د راتلو له وجهې په ده معامله خلط ملط شوې ده، دا پريږدی ([2]).

حضرت ابو سعيد خدري رضی الله عنه بيان کوي:

يو ځل زه د حج يا عمرې په سفر روان ووم، ابن صياد هم په دې سفر کې له ما سره وو، کله چې مونږ په يوه ځای کې پړاو واچاوه نو خلک يوه خوا بله خوا سره تيت شول زه او ابن صياد تنها پاتې شوو، د هغه په باره کې چې کومې

---

[1] - صحيح مسلم. الفتن. حديث: ۲۹۳۱.

[2] - صحيح مسلم. الفتن. حديث: ۲۹۳۲.

خبرې مشهورې وې زه د هغو له امله په سخت وحشت کې مبتلا شوم، هغه خپل سامان را واخيست او زما له سامان سره يې نږدې کيښود، ما ورته وويل: ګوره ! ګرمي ډيره زياته ده، ښه دا ده چې ته خپل سامان د هغې ونې لاندې کيږدې، هغه همداسې وکړل (ابن صياد خپل سامان له ابو سعيد څخه ليرې د هغې ونې لاندې کيښود) څه وخت تير شو چې د بزو يوه رمه مو وليده، ابن صياد پورته شو، رمې ته ورغی او د بزو له شيدو څخه ډک لوښی يې راووړ او راته وې ويل: ابو سعيد ! وڅکه، ما ورته وويل: موسم ډير ګرم دی او شيدې هم ډيرې ګرمي دي، ځکه يې زه نه څکم، په اصل کې ما د هغه دلاسه د څه خوړل يا څښل نه خوښول.

ابن صياد وويل: ابو سعيد ! خلک زما په باره کې چې کومې خبرې کوي (ما ته دجال وايي) په دې سره غواړي چې زه په کومه ونه پورې په رسۍ باندې ځان زندۍ کړم، اې ابو سعيد! د رسول الله ﷺ حديث له هيچا پټ نه دی که وي وي به ليکن له تاسو انصارو څخه هغه پټ نه دی، ابو سعيد ! ته د رسول الله ﷺ په حديثو باندې تر ټولو ډير علم لرونکی يې، آيا د رسول الله ﷺ په حديث کې نه دي راغلي چې دجال به ړوند وي، د هغه به اولاد نه وي، سره له دې چې زما اولاد په مدينه منوره کې موجود دی، آيا رسول الله ﷺ دا نه دي ويلي چې دجال مدينې او مکې ته نشي داخليدای، سره له دې چې زه له مدينې څخه را روان يم او مکې ته ځم

حضرت ابو سعيد رضي الله عنه وايي: ما چې د ده خبرې واريدې نو هغه مې معذور وباله او دومره مې ابن صياد ته وويل: په الله قسم! زه ښه پوهيږم چې د دجال د پيدا کيدو ځای کوم دی او هغه دا وخت چيرته دی.

ابو سعيد وايي: ما وويل: دستا لپاره ټولې ورځې د هلاکت او بربادي دي [1].

---

[1] - صحيح مسلم، الفتن، حديث: ۲۹۲۷.

**د ابن صیادپه باره کې سم موقف**

ابن صیاد مسیح دجال (دجال اکبر) نه دی، بلکه د حیله بازو دجالانو څخه یو دجال دی، له هغه سره کهانت وو او شیطان له ځینو شیانو څخه هغه خبر کړی وو.

**په قران کریم کې د دجال په نه ذکر کولو کې حکمت**

د دجال فتنه عظیم ترینه فتنه ده، نبي کریم ﷺ ته د امت په باره کې له دې فتنې ډیره ویره وه، ټولو پخوانیو انبیاؤ علیهم السلام هم خپل امتونه د دجال له فتنې څخه خبر کړي وو، د الله تعالی رسول ﷺ مونږ ته له هر لمانځه وروسته د دجال له فتنې څخه د امن غوښتلو حکم کړی.

په قرآن کریم کې الله تعالی ﷻ د یو شمیر لویو او وړو نښانو ذکر فرمایلي، د مثال په ډول لکه د شق القمر واقعه، الله تعالی فرمایي:

﴿اِقْتَرَبَتِ السَّاعَةُ وَانْشَقَّ الْقَمَرُ ۝﴾ (١).

ژباړه:

را نږدې شو قیامت او څیرې دوه ټوټې شوه سپوږمۍ.

همدا شان د یاجوج ماجوج راوتل، الله تعالی فرمایي:

﴿حَتّٰى إِذَا فُتِحَتْ يَأْجُوجُ وَمَأْجُوجُ وَهُمْ مِنْ كُلِّ حَدَبٍ يَنْسِلُونَ ۝﴾ (٢).

ژباړه:

تر هغه پورې کله چې پرانستلی شي یاجوج او ماجوج (او دیوال یې له مخې لیرې شي) او دوی به له هرې لوړې څخه ګړندي را کوزیږي.

لیکن الله تعالی د دجال د نامه ذکر په وضاحت سره په قرآن مجید کې نه دی فرمایلی.

د ده په عدم ذکر کې څه حکمت پټ دی؟

---

[١] القمر، آیه:١.

[٢] الانبیاء، آیه: ٩٦

په دې باره کې لاندنی خبرې ویل شوې دي.

۞ د اهل علمو په دې سلسله کې یو قول دا دی چې په لاندې آیت کریمه کې د دجال ذکر راغلی:

﴿يَوْمَ يَأْتِيْ بَعْضُ اٰيٰتِ رَبِّكَ لَا يَنْفَعُ نَفْسًا اِيْمَانُهَا لَمْ تَكُنْ اٰمَنَتْ مِنْ قَبْلُ﴾ (۱).

ژباړه:

په هغه ورځ چې راشي ځیني دلائل د (قدرت) د رب ستا نه به رسوي فایده (نفع) هیڅ نفس ته ایمان راوړل د ده چې نه وي دا نفس چې ایمان یې راوړی وي پخوا له دې نه.

ځکه چې د دې خبرې تایید د نبي کریم ﷺ دا حدیث هم کوي په کوم کې چې فرمایي:

﴿ثلاث اذا خرجن لم ينفع نفساً ايمانها لم تكن امنت من قبل: الدجال، والدابة، وطلوع الشمس من مغربها﴾ (۲).

ژباړه:

هر کله چې دری شیان را ښکاره شي نو هیڅ داسې سړي ته ایمان فایده نه رسوي کوم چې له پخوا څخه ایماندار نه وي، د دجال خروج، خروج دابه او د (شمس) لمر له مغرب څخه راختل.

۞ دویم قول: په قران مجید کې د حضرت عیسی علیه السلام د نزول لوري ته اشاره موجوده ده. الله تعالی جل جلاله فرمایي:

﴿وَاِنْ مِّنْ اَهْلِ الْكِتٰبِ اِلَّا لَيُؤْمِنَنَّ بِهٖ قَبْلَ مَوْتِهٖ﴾ (۳).

---

[1] - الانعام. آیة: ۱۵۸.

[2] - صحیح مسلم. الایمان. حدیث: ۱۵۸. وجامع الترمذی. تفسیر القرآن. حدیث: ۳۰۷۲. وصححه واللفظ له.

[3] - النساء. آیة: ۱۵۹.

ژباړه: نشته هم څوک له اهل د کتابه مګر قسم دی هرو مرو چې ایمان به راوړي دوی خامخا (په وخت د نزغې خپلې یا په وخت د نزول د عیسی) پر دغه عیسی (پخوا له مرګه د ده څخه).

الله تعالی په یوه بل ځای کې فرمايي:

﴿وَإِنَّهُۥ لَعِلْمٌ لِّلسَّاعَةِ فَلَا تَمْتَرُنَّ بِهَا وَٱتَّبِعُونِ ۚ هَٰذَا صِرَٰطٌ مُّسْتَقِيمٌ ﴿٦١﴾﴾ ([1]).

ژباړه:

او بیشکه دغه (عیسی) خامخا علامه نښه ده د قیامت (په اعتبار د نزول سره) پس شک مکوئ تاسې په راتلو د قیامت کې او متابعت وکوئ زما په (توحید کې) دغه لیاره ده سمه برابره (چې نه پرې ګمراه کيږي څوک).

او دا خبره پرته له شک سمه ده چې حضرت عیسی ﷺ به دجال قتل کړي، لهذا په قرآن کې د نزول عیسی ﷺ په باره کې د راغلیو خبرو په سلسله کې د دجال ذکر هم ضمناً راغلی دی.

حضرت خدیفه بن اسید غفاري رضي الله عنه بیان کوي چې رسول الله ﷺ فرمايلي:

﴿إن الساعة لا تكون حتى تكون عشر آيات،الدخان، والدجال، والدابة وطلوع الشمس من المغرب ..... الحديث﴾ ([2]).

ژباړه: د لسو نښانو تر ظاهریدو قیامت نه قایمیږي، دود، دجال، د ځناور راوتل او د لمر له مغرب څخه راختل ... الحدیث.

حضرت ابو هریرة رضي الله عنه بیان کوي چې رسول الله ﷺ فرمایلي:

﴿ ثلاث إذا خرجن لا ينفع نفسا إيمانها لم تكن آمنت من قبل أو كسبت في إيمانها خيرا طلوع الشمس من مغربها والدجال ودابة الأرض﴾ ([3]).

---

[1] الزخرف. آیة: ٦١.

[2] صحیح مسلم. الفتن واشراط الساعة. حدیث: ٢٩٠١.

[3] صحیح مسلم. الایمان. حدیث: ١٥٨.

ژباړه: کله چې درې شیان ښکاره شي نو هیڅ داسې سړي ته ایمان راوړل فایده نه رسوي کوم چې له پخوا څخه ایماندار نه وي، (۱) د لمر له مغرب څخه راختل (۲) د دجال راوتل (۳) له زمکې څخه د یوه لوی ځناور راوتل.

## له ټولو لویه فتنه

حضرت عمران بن حصین رضي الله عنه بیان کوي چې رسول الله ﷺ فرمایلي:

﴿ما بين خلق آدم إلى قيام الساعة خلق أكبر من الدجال﴾ ([1]).

ژباړه:

د حضرت آدم علیه السلام له پیدا ښت څخه نیولې د قیامت تر قایمیدو پورې له دجال څخه لوی مخلوق نشته. او د یوه روایت الفاظ داسې دي: له دجال څخه بل لوی کوم مصیبت نشته.

حضرت عبد الله بن عمر رضي الله عنه وایي چې رسول الله ﷺ یوه ورځ خلکو ته د خطاب کولو په وخت کې ودرید، نبي کریم ﷺ د الله تعالی جل جلاله شان بیان کړ او بیا یې د دجال ذکر وکړ او وې فرمایل:

﴿إِنِّي لَأُنْذِرُكُمُوهُ وَمَا مِنْ نَبِيٍّ إِلَّا وَقَدْ أَنْذَرَهُ قَوْمَهُ وَلَكِنِّي سَأَقُولُ لَكُمْ فِيهِ قَوْلًا لَمْ يَقُلْهُ نَبِيٌّ لِقَوْمِهِ إِنَّهُ أَعْوَرُ وَإِنَّ اللَّهَ لَيْسَ بِأَعْوَرَ﴾ ([2]).

ژباړه: زه تاسو له دې څخه ویره وم او هر نبي خپل قوم له دې څخه ویرولی لیکن زه تاسو ته یوه داسې خبر کوم کومه چې هیڅ نبي خپل قوم ته نه ده بیان کړې: هغه به په یوه سترګه باندې ړوند وي او الله تعالی هیڅ کله داسې نه دی.

حضرت نواس بن سمعان رضي الله عنه بیان کوي چې رسول الله ﷺ فرمایلي:

﴿غير الدجال أخوفني عليكم إن يخرج وأنا فيكم فأنا حجيجه دونكم وإن يخرج ولست فيكم فامرؤ حجيج نفسه والله خليفتي على كل مسلم﴾ ([3]).

---

[1] - صحیح مسلم. الفتن واشراط الساعة. حدیث: ۲۹۴۶.

[2] - صحیح البخاري. الانبیاء. حدیث: ۷۱۲۷.

[3] - صحیح مسلم. الفتن واشراط الساعة. حدیث: ۲۹۲۷.

ژباړه: له دجال پرته د نورو فتنو په هکله له ما سره د ستاسو په هکله ویره شته، دجال که چیرته زما په موجودیت کې راشي نو زه به په دلیل له هغه سره مقابله وکړم او د ستاسو ټولو له لوري به زه په هغه بر لاسی شم او که چیرته زما په عدم موجودګي کې راشي نو هر سړی دې په دلیل سره په هغه باندې د برلاسه کیدو کوشش وکړي، الله تعالی زما په ځای له هر مسلمان شخه په خپله دفاع کوي.

## د دجال له راوتو د مخه راتلونکي واقعات

حضرت نافع بن عتبه بن ابي وقاص رضي الله عنه بیان کوي چې رسول الله ﷺ فرمایلي:

﴿تغزون جزيرة العرب فيفتحها الله ثم فارس فيفتحها الله ثم تغزون الروم فيفتحها الله ثم تغزون الدجال فيفتحه الله﴾ ([1]).

زباړه:

تاسو به په جزیره عرب کې جنګ وکړی نو الله تعالی به هغه فتح کړي، بیا به تاسو په ایران حمله وکړی الله تعالی به هغه هم فتح کړي، بیا به تاسو په روم حمله وکړی الله تعالی به هغه هم فتح کړي، بیا به تاسو له دجال سره جنګ وکړی نو الله تعالی به هغه فتح کړي (یعنې په کوم ځای کې چې دجال وي پر هغه ځای او د هغه په ملګرو به تاسو فتح ترلاسه کړی).

❁ حضرت معاذ بن جبل رضي الله عنه بیان کوي چې رسول الله ﷺ فرمایلي:

﴿عمران بيت المقدس خراب يثرب وخراب يثرب خروج الملحمة وخروج الملحمة فتح قسطنطينية وفتح القسطنطينية خروج الدجال﴾ ([2]).

ژباړه: د بیت المقدس له ابادي سره د مدینې بربادي شروع کیږي، چې مدینه برباده شي نو یو لوی جنګ به شروع شي، چې دا جنګ شروع شي نو

---

[1] - صحیح مسلم، الفتن واشراط الساعة، حدیث: ۲۹۰۰
[2] - سنن ابي داؤد، الملاحم، حدیث: ۴۲۹۴.

قسطنطنیه به فتح شي او چې کله قسطنطنیه فتح شي نو بیا به زر دجال خروج وکړي.

✿ د دجال له خروج څخه د مخه به د مسلمانانو او رومي عیسایانو تر مینځ ډیر جنګونه وشي په کومو کې به چې مسلمانان فتح تر لاسه کړي.

د نبي کریم ﷺ صحابي حضرت ذومخمر رضی الله عنه بیان کوي چې رسول الله ﷺ فرمایلي:

تاسو به له عیسایانو سره صلح وکړی، بیا به تاسو یو جنګ وکړی او رومیان به له تاسو سره غداري وکړي، تاسو به په دې جنګ کې فتح تر لاسه کړی، د غنیمت مال به تر لاسه کړی او له هر رنګه نقصان څخه به محفوظ اوسی، بیا به تاسو د جنګ له میدان څخه واپس بیرته راځی تر دې چې تاسو او عیسایان به په یو سر سبزه ځای کې پړاو واچوی، دلته به له عیسایانو څخه یو کس صلیب په هوا کې پورته کړي او اعلان به وکړي چې صلیب غالب راغی، صلیب غالب راغی، په دې سره به یوه مسلمان ته غصه ور شي او هغه به صلیب ټوټه ټوټه کړي، په دې سره به عیسایان پورته شي او د جنګ لپاره به تیاری شروع کړي، ځینو راویانو په دې ځای کې دا اضافه کړې چې په دې وخت کې به مسلمانان هم په جوش کې راشي او خپلې اسلحې به را واخلي، یو جنګ به وشي او الله تعالی به د مسلمانانو دغه ډله په شهادت سر فرازه کړي.

په یوه بل حدیث کې د دې واقعې تفصیل

حضرت ابو هریرة رضی الله عنه بیان کوي چې رسول الله ﷺ فرمایلي:

قیامت تر هغه وخته نه قایمیږي تر څو چې عیسایان د اعماق؛؛ یا دابق؛؛ [1] په مقام کې پړاو وا نه اچوي، له عیسایانو سره د مقابلې لپاره به له

---

[1] - دابق دا د تاریخي ملک شام د (سوریا) ښار حلب په یوه طرف د اخترین په سیمه کې واقع دی. د ترکیې له حدودو څخه یوازې لس کلو میتره لیرې ده. دا ځای زرعي اجناس. خاصکر د غنمو او الو لپاره ډیر مشهور دی. د دغه ځای له مینځ څخه د قویق نهر تیر شوی کوم چې به کرم

مدينې څخه د مسلمانانو يو لښکر روان شي کوم به چې په دې وخت کې د ځمکې په سر بهترين خلک وي، کله چې دواړه صفونه د مقابلې لپاره سره مخامخ شي نو عيسايان به ووايي: تاسو خلک لرې ودريږئ، لومړی مونږ له هغو خلکو سره جنګ کوو کوم چې له مونږ څخه نيولی شوي دي ( له دې خبرې معلوميږي چې د مسلمانانو او عيسايانو تر مينځ به له دې د مخه هم ډير جنګونه شوي وي په کومو کې به چې مسلمانانو فتح ترلاسه کړي وي او عيسايان به يې بنديان نيولي وي او هغوی به مسلمان شوي وي او دا وخت به په دې لښکر کې شامل وي او له عيسايانو سره به د جهاد کولو لپاره راغلي وي) مګر مسلمانان به ووايي: نه ! په الله قسم! مونږ به له خپلو ورونړو کله هم جلا نشو، جنګ به شروع شي او د مسلمانانو د لښکر يوه برخه به د جنګ له ميدان څخه وتښتي، الله تعالی به هيڅکله د هغوی توبه قبوله نکړي، د دغه لښکر يوه برخه خلک به جهاد وکړي او شهيدان به شي، دا خلک د الله تعالی په نزد بهترين شهيدان دي، پاتې يوه برخه د لښکر خلک به په جنګ کې فتح تر لاسه کړي، دا خلک به کله هم په فتنه کې مبتلا نشي او دا خلک به قسطنطنيه هم فتح کړي، کله چې دوی خپلې اسلحې د زيتونو ونو پورې را ځوړند کړي او د غنيمت مال تقسيموي نو شيطان به د هغوی منځته راشي او نعره به کړي: اې خلکو ! له تاسو وروسته مسيح دجال د ستاسو کورونو ته داخل شوی (له دې څخه به د شيطان مقصد د دوی په ويره او ډار کې مبتلا کول وي) د اسلامي لښکر فوځيان به له دې ځای څخه ووځي او هغوی به د دجال لوري ته متوجه شي، د شيطان دا خبره به باطله وي، مګر کله چې هغوی شام ته ورسيږي نو په رښتيا به مسيح دجال ښکاره شوی وي (١).

---

موسم کې ډک وي، دا ځای د تاريخ په هر دور کې د مسلمانانو لپاره يو دفاعي مرکز شوی، دا ځای د هغې غټې خونريزي(لوی جنګ) ځای دی د کوم ذکر چې د قيامت به نښانو کې راغلی.

١- صحيح مسلم، الفتن واشراط الساعة، حديث: ۲۸۹۷.

## د دجال له راوتو د مخه مخته راتلونکي څو نور واقعات

حضرت ابو امامه باهلي رضي الله عنه بیان کوي چې رسول الله ﷺ فرمایلي:

د دجال له خروج څخه د مخه درې کلونه به ډېر سخت وي، خلک به په دې کلونو کې د خوراکي شیان له کمبوډ سره مخامخ شي، په اول کال به الله تعالی آسمان ته حکم وکړي چې هغه خپله یوه برخه باران ودروي او زمکې ته به حکم وکړي چې هغه خپل یوه برخه پیداوار ودروي، بیا به په دویم کال کې آسمان ته حکم وکړي چې هغه خپل دوه برخې باران ودروي او زمکې ته به حکم وکړي چې هغه خپل دوه برخې پیدا وار ودروي، په دریم کال به الله تعالی آسمان ته حکم وکړي چې هغه خپل ټول باران ودروي او زمکې ته به حکم وکړي چې هغه خپل ټول پیدا وار ودروي، نتیجه به دا شي چې له اسمان څخه به یوه قطره باران نه را وریږي او له زمکې څخه به هیڅ نباتات نه را زرغونیږي، د زمکې په سر چیرته هم چې سایه داره ونه وي هغه به تباه برباد شي، مګر کومې ته چې د الله تعالی خوښه وي هغه به بچ پاتې شي (یعني له یو کم شمیر ونو پرته نورې ټولې ونې به له منځه ولاړې شي) [1].

خلکو پوښتنه وکړه: اې د الله رسوله! په دې صورتحال کې به د خلکو د معاش ذریعه څه وي؟ نبي کریم ﷺ ورته وفرمایل: هغوی به (لا اله الا الله، الله اکبر او الحمد لله) په کثرت سره لولي او دا ذکر به هغوی ته د خوراک کار ورکوي.

---

[1] - سنن ابن ماجه، الفتن، حدیث: ۴۰۷۷، وفي سنده مقال.

## يو څه اضافه واقعات

حضرت راشد بن سعد ﷺ بيان کوي:

کله چې اصطخر (۱) فتح شي نو يو منادي به آواز وکړي: دجال ظاهر شو، حضرت صعب بن جثامه چې ور سره وليدل نو وې ويل: که دې دا خبره نه وای کړې نو ښه به وای، زه تا ته وايم ما له رسول الله ﷺ څخه آوريدلي چې ويل يې:

﴿لايخرج الدجال حتى يذهل الناس عن ذكره، وحتى تترك الائمة ذكره على المنابر﴾ (۲).

ژباړه:

دجال تر هغه وخته نه راووځي تر څو چې خلک د هغه له يادولو څخه غافل (بې پروا) نشي او تر دې چې خطيبان په منبرونو باندې د هغه يادول پرېږدي.

## د دجال جسماني نښې

(قصير افحج) د هغه قد به وړکی وي او د پنډيو په مينځ کې د ليرې والي له امله به د هغه تګ عيبجن وي.

(جعدا) د هغه ويښتان به نرم او سيخ نه وي، بلکه تاو شوي به وي.

(جفال الشعر) د هغه ويښتان به ګوړګوتي وي.

(مطموس العين) سترګه به يې د چټ شوي انګور په څېر وي.

(هجان) سپين رنګ والا.

(اجلى الجبهة) پراخ تندی به يې وي.

---

۱- اصطخر: د ايران له پخوانيو او مشهورو ښارونو څخه يو ښار دی. ايراني بادشاهان دلته اوسيدلي دي او همدلته خزانې هم شته دي.

۲- مسند احمد: ۴/ ۷۱. رواه عبد الله بن احمد من رواية بقية عن صفوان بن عمرو وهي صحيحة كما قال ابن معين. وبقية رجاله ثقات.

(مکتوب بین عینیه (ک) (ف) (ر) د هغه د دواړو سترګو په مینځ کې به همدا توري لیکل شوي وي، دا به هر لیکونکی او لوستونکی او ساده مؤمن لوستلای شي.

(عقیم) هغه به بې اولاده وي، یعنې د هغه به هیڅ اولاد نه وي.

دلته چې د دجال کومې نښې بیان شوې د هغوی خلاصه دا ده چې هغه د یوه واړه قد، د مضبوط جسم او لوی سر لرونکی دی، د هغه دواړه سترګې به عیبجنې وي، چپه سترګه به یې د انګور داني په څیر چته وي، په ښۍ سترګه به یې د غوښې ټوټه راغلې وي، ویښتان به یې ګڼ او تاو شوي وي او د پوستکي رنګ به یې سپین وي، د هغه د دواړو پنډیو په مینځ کې به فاصله زیاته وي. د هغه د دواړو سترګو په مینځ کې به (ک) (ف) (ر) لیکل شوي وي.

## د دجال د ظاهریدو ځای

حضرت ابو بکر ﷺ بیان کوي چې رسول الله ﷺ فرمایلي:

﴿إن الدجال يخرج من أرض بالمشرق يقال لها خراسان (١) يتبعه أقوام كأن وجوههم المجان المطرقة﴾ (٢).

ژباړه: دجال به د مشرق له یوه داسې ځای څخه خروج وکړي کوم ته چې خراسان ویل کیږي او د هغه پیروي به داسې خلک وکړي د کومو شکلونه به چې د ګردو ډالونو په څیر وي.

د دجال ابتدائي ظهور او شهرت به د شام او عراق تر مینځ وي (والله اعلم).

حضرت نواس بن سمعان ﷺ بیان کوي چې رسول الله ﷺ د دجال په باره کې وفرمایل:

---

١ خراسان د ایران یوه لویه صوبه ده.

٢ مسند احمد ١/٤. وجامع الترمذي. الفتن. حديث: ٢٢٣٧. وصححه الالباني في صحيح الترمذي.

﴿انه خارج خلة بين الشام والعراق﴾ ([1]).

ژباړه: هغه به د شام او عراق تر مینځ په یوه ځای کې ښکاره شي.

## د جساسه قیصه او دجال

عامر بن شراحیل شعبي ویلي چې هغه فاطمة بن قیس رضی الله عنها ته وویل: ما ته یو داسې حدیث بیان کړه کوم چې تا براه راست له نبي کریم ﷺ څخه آوریدلی وي او د الله له رسول ﷺ پرته د بل هیچا لور ته منسوب نه وي، هغې راته وویل: که چیرته ته غواړې نو زه به همداسې وکړم، عامر وویل: سمه ده راته بیان یې کړه، فاطمة رضی الله عنها وویل: یوه ورځ ما د نبي کریم ﷺ د منادي آواز واورید، هغه اعلان کاوه: خلکو! لمونځ دریدونکی دی، دا مې چې واوریدل نو ځ مسجد لور ته ولاړم او د الله د رسول شا ته مې لمونځ اداء کړ، زه د ښځو په هغه صف کې وم کوم چې له سړیو بیخي شا ته وو، کله چې نبي کریم ﷺ له لمانځه فارغ شو او په منبر باندې کیناست نو نبي کریم ﷺ تبسم وکړ او وې فرمایل:

هر څوک دې په خپل ځای کښیني، بیا یې وفرمایل: آیا تاسو پوهیږئ چې نن ما تاسې په مسجد کې ولې جمع کړي یاست؟ صحابه کرامو رضی الله عنهم وویل: الله او د هغه رسول ﷺ ښه پوهیږي.

نبي کریم ﷺ وویل: په الله قسم! ما تاسې خلک د رغبت یا ډارولو لپاره نه یاست را جمع کړي، بلکه ما تاسو د دې لپاره را بللي یاست چې (تاسو ته یوه مهمه واقعه بیان کړم) تمیم داري کوم چې نصراني دی ما ته راغی او زما په لاس یې بیعت وکړ او مسلمان شو، هغه ما ته یوه واقعه بیان کړه کومه چې زما له هغو احادیثو سره برابره ده کوم چې ما تاسو خلکو ته د مسیح دجال په باره کې بیان کړي دي، تمیم داري ما ته وویل چې هغه د

[1] - صحیح مسلم، الفتن واشراط الساعة، حدیث: ۲۹۳۷.

قبیلې بنو لخم او بنو جزام له دیرشو (۳۰) خلکو سره یو ځای د بحري جهاز په سفر کې وو چې د اوبو موجونو د هغوی د جهاز لار بدله کړه، هغوی تر یوې میاشتې پورې په سمندر کې له ګرځېدو وروسته یوې جزیرې ته نږدې ووتل او د لمر لویدو په وخت کې جهاز یوې جزیرې ته نږدې ور ورسید، بیا په یوه وړه کشتۍ کې کیناستل او جزیرې ته ورسیدل او هلته ور داخل شول، هلته هغوی د ګڼو ویښتانو درلودونکی یو ځناور ولید، د ویښتانو د ډیر والي له امله نه معلومیده چې د هغه مخکنی لوری کوم دی او وروستنی لوری یې کوم دی.

هغوی په تعجب سره وویل: تیراستیاناس! ته څه شی یې؟

هغه وویل: زه جساسه یم.

هغوی وویل: جساسه څه شی دی؟

هغه وویل: تاسو خلک هغه سړي ته ورشی کوم چې په یو څه لیرې ځای کې اوسیږي او هغه د ستاسو پوهیدوته ډیر خواهشمند دی.

جساسه چې کله خپل نوم واخیست نو له مونږ سره دا اندیښنه پیدا شوه چې دا کوم شیطان نه وي، مونږ زر د هغې خانقاه لور ته ولاړو، کله چې مونږ هغې ته ور داخل شوو نو مونږ یو عظیم الجثه انسان ولید کوم چې ډیر مضبوط تړل شوی وو، د هغه دواړه لاسونه په غاړې پورې بند شوي وو او سر له پښو په ځنځیرونو کې بند وو.

مونږ وویل: دستا لپاره هلاکت دی، ته څوک یې؟

هغه وویل: تاسو خلک به زما په پیژندلو کې کامیاب شی، اول تاسو دا ووایی تاسو څوک یاست؟

مونږ وویل: مونږ عرب یو، مونږ په یوه بحري جهاز کې سپاره وو چې د اوبو چپو در بدره کړو، بالاخر مونږ دې جزیرې ته را ورسیدو، بیا په یوه وړه کشتۍ کې کیناستو او دلته را ورسیدو، هلته مونږ یو ځناور ولید د کوم په بدن چې له اندازې زیات ویښتان وو او د هغو له امله یې په مخته او شا

لوري کې تميز کول مشکل وو، مونږ له هغه څخه وپوښتل: دستا لپاره تباهي او بربادي ده: ته څوک يې؟
هغه راته وويل : زه جساسه يم.
مونږ وويل : جساسه څوک دی؟
هغه راته وويل: تاسو خلک د دغه لوی محل خانقاه ته ورشی، هلته چې کوم سړی ده هغه دستاسو د خبرو ډير شوقين دی، مونږ ډير په تيزي سره د ستا لوري ته راغلو، مونږ له هغه ځناور څخه هم ډير ووريدو هسې نه چې هغه کوم شيطان نه وي. هغه راته وويل: زه د (بيسان) [1] کجورو د باغونو په باره کې څه وئيل غواړم.
مونږ ورته وويل: ته د دغه ښار د کوم شي په باره کې پوښتنه کول غواړې؟
هغه راته وويل: دا راته ووايا ست' آيا د دغه ځای ونې ګلونه ورکوي؟
مونږ ورته وويل: هو ! ورکوي يې
هغه وويل: نږدې ده چې د دغه ځای ونې به د ګلونو ورکول بند کړي
هغه وويل : ما ته د بحريه طبريه [2] په باره کې څه ووايا ست؟
مونږ ورته وويل: ته د هغه په باره کې د کوم شي پوښتنه کول غواړې؟
هغه وويل: آيا په هغه کې اوبه شته دي؟
مونږ وويل: په هغه کې ډيرې اوبه دي.
هغه وويل: نږدې ده چې د هغه اوبه به ختمې شي.
هغه وويل: ما ته د زغر [3] چينې په باره کې څه ووايا ست؟

---

[1] بيسان. د فلسطين په ښارونو کې يو ښار دی کوم د نهر جالوت په مغرب کې واقع دی.
[2] دا د اردن او فلسطين په مينځ کې واقع دی.
[3] - زغر د اردن د بحيره مردار په څنډه باندې واقع يو کلی دی. علامه ابن اثير ويلي، زغر په شام کې د بلقاء په زمکه باندې د يوې چينې نوم دی. وګورئ النهاية: ۲/ ۳۰۴. څينی اهل علمو بحيره مردار ته زغر ويلي.

مونږ ووېل: ته د هغې د کوم شي په باره کې پوښتنه کول غواړې؟
هغه ووېل: آیا په دغې چینې کې اوبه شته دي او آیا د هغه ځای اوسیدونکي د هغې په اوبو کښت کاري کوي؟
مونږ ووېل: هو ! په هغې کې ډیرې اوبه دي او د هغه ځای اوسیدونکي د هغې په اوبو کښت کاري هم کوي.
هغه ووېل: ما ته دا ووایاست چې د هغه (امیین) نبي څه حال دی؟
مونږ ووېل: هغه له مکې څخه هجرت کړی او په مدینه کې اوسیږي
هغه ووېل: آیا عربو له هغه سره جنګ وکړ؟
مونږ ووېل: هو ! وې کړ.
هغه ووېل: بیا نتیجه څه شوه؟
مونږ: هغه ته خبر ورکړ چې هغه په ټولو عربو باندې بر لاسی شو او هغوی ټولو د هغه اطاعت قبول کړ.
هغه ووېل: آیا ټول شوي دي؟
مونږ ووېل: هو ! بالکل.
هغه ووېل : دا د هغوی لپاره بهتره ده چې د دغه نبي اطاعت وکړي، اوس زه تاسو ته د خپل ځان په باره کې وایم، زه مسیح دجال یم، عنقریب به ما ته په کوم وخت کې د خروج اجازه راکړل شي، زه به را ووځم او د ټولې زمکې په هر ښار به په څلویښتو ورځو کې وګرځم پرته له مکې او مدینې. ځکه چې دا دوه ښارونه په ما حرام کړی شوي دي، که زه په دغو دواړو کې هر یوه ته د داخلیدو کوشش وکړم نو زما مخته به یوه فرښته وي او له توري سره به زما په لار کې ولاړه وي، هغه ما دغو ښارونو ته له داخلیدو څخه منعه کوي.
د مکې او مدینې په ټولو لارو کې به فرښتې متعین کړی شوې وي کومې به چې د هغوی حفاظت کوي.

فاطمه بنت قیس رضی الله عنها بیان کوي: بیا نبي ﷺ په خپلې امسا سره منبر وواهه او وې فرمایل: دا طیبه ده، دا طیبه ده، دا طیبه ده، یعنې مدینه منوره، بیا نبي ﷺ وفرمایل: آیا دا خبره ما تاسو ته د مخه نه وه بیان کړې؟ خلکو ورته وویل: هو! بیان کړې دې وه.

بیا نبي کریم ﷺ وفرمایل: ما ته د تیمیم داري خبره ښه ښکاره شوه، ځکه هغه زما د هغې خبرې مطابق ده کومه چې ما تاسو ته د دجال په باره کې او د مکې او مدینې په متعلق کې کړې وه، خبر دار اوسئ! دجال د شام یا یمن په سمندر کې دی، بلکه هغه د مشرق لوري ته دی، هغه د مشرق لوري ته دی، هغه د مشرق لوري ته دی او نبي کریم ﷺ په خپل لاس سره د مشرق لوري ته اشاره وکړه (۱).

ما چې د دجال په باره کې د ځینو مؤلفینو کتابونه ولوستل نو د هغوی د مسیح دجال د موجودګي ځای او د برمودا مثلث په مابین کې د ربط ثابتولو کوشش کړی. سره له دې چې د برمودا مثلث حقیقت تر نن ورځې یو پټ راز دی او هیڅ ته ښکاره نه دی.

## د برمودا مثلث حقیقت او د هغه له مسیح دجال سره تعلق

د برمودا مثلث په باره کې خبرې کول د بې هوده حکایاتو او فرضي واقعاتو په څیر دي.

## جغرافیایي موقعیت

برمودا مثلث د بحر اوقیانوس او د متحده امریکا د فلوریډا ریاست جنوب مشرقي دی، د دغې علاقې شکل مثلث دی. دا د مغرب له لوري له میکسیکو څخه شروع ده په جنوب کې تر جزیره لیوړډ (ویسټ انډیز) پورې، بیا په شمال کې برمودا د درې سوه وړو جزیرو مجموعه ده د کومو

---

(۱) - د مدینة الرسول ﷺ مشرق لوري ته عراق او ایران پراته دي.

ابادي چې په پنځه ديرش زره نفوس باندې مشتمله ده، بيا تر خليج ميکسيکو او جزائر بها ماز پورې رسيدلې دی.

## په جزائر برمودا کې د مزاحمت ځايونه

د بحر اوقيانوس په شمال غرب کې يو خاص ځای دی کوم ته چې (بحيره سرګاسو) ويل کيږي، د هغه د اوبو يوه خاصه خبره دا ده چې په هغه کې يو قسم خاص سمندري نباتات را زرغونيږي کوم چې (سرګاسم) بلل کيږي، دا په ډير مقدار کې په اوبو کې خپاره شوي او د بحري جهازونو په رفت آمد کې ډير مشکل جوړوي.

بحيره سرګاسو د خپل مکمل او پر سکون خاموشي له امله ډير مشهور دی، په هغه کې هوا ګانې او سمندري طوفانونه شاذ او نادر پېښيږي، هغه ته دهشت ناک سمندر او د اوقيانوس قبرستان هم ويل کيږي. له ځينې تحقيقي رپوټونو څخه واضحه کيږي چې د هغه په تل کې ډير سمندري جهازونه، کشتۍ او اوبتلونه موجود دي، کوم چې په مختلفو زمانو کې همدلته غرق شوي دي.

## په جزائر برمودا کې د ورکيدا اغاز

په سنه (۱۸۵۰ عيسوي) کې په دغه مخصوص ځای کې يا له ده سره په ګاونډيو سيمو کې تقريباً (۵۰) بحري جهازونه ورک شوي دي. البته په هغوی کې د ځينو جهازونو کپتانان په آخرو شيبو کې د خطر احساسولو په وخت کې د يو شمير پيغامونو په ليږلو کې کامياب شوي. خو دا دومره مبهم او غير واضح دي چې هيڅوک پرې پوهيدلای نشي.

په دغو جهازونو او ابتلونو کې د ورک شويو اکثرو حلکو تعلق د متحده امريکا له رياستونو سره دی، تر ټولو لومړی چې کوم جهاز ورک شو د هغه نوم (انسرجنټ) وو په کوم کې چې ۳۴۰ کارګران سپاره وو، له دې وروسته

یو اوبتل ورک شو د کوم نوم چې (اسکورپین) وو، په دې اوبتل کې په دریابونو او سمندرونو کې کار کونکي ۹۹ کارګران سپاره وو.

## د طیارو د ورکیدا واقعات

د ورکیدا دغه سلسله د بحر اوقیانوس فضا ته هم رسیدلې، کومې طیارې چې د بحر اوقیانوس خاصکر د جزائر برمودا فضا ته ور داخلې شوې نو هغه ورکې شوې دي، په سنه (۱۹۴۵عیسوي) کې د امریکا (فلوریډا) ایالت له نیول ائربیس څخه پنځه بمبار کوونکي طیارې د معمول مطابق په تربیتي پرواز روانې وې، دا پنځه سره طیارې یو ځای په مثلث شکل کې د غورځیدا په حالت کې وې او د بحري جهاز په څیر په سمندر باندې را وغورځیدې او د هغه د ملبې لوري ته ولاړې. د ائربیس عمله د دغو طیارو له لوري څخه یوه داسې پیغام ته په انتظار کې وه تر څو پائلوټان ورته ووایي چې هغوی چیرته او په څه ډول کوزیږي چې یو ناڅاپه یې د دغه ګروپ له کمانډر څخه یو عجیب او غریب پیغام تر لاسه کړ، د ګروپ کمانډر (چارلس ټیلر) د ائربیس کنټرولونکي دفتر ته پیغام ولیږه.

مونږ دا وخت په ایمرجنسي حالت کې یو. مونږ خپل لوری په مکمل ډول ورک کړی، مونږ د ځمکې له لیدو څخه عاجز یو، مونږ دا هم نشو ویلای چې دا وخت مونږ چیرته یو. مونږ په فضا کې ورک شوي یو، دلته هر شی عجیب، غریب او د اندیښنې وړ دي، مونږ د هیڅ لوري تعین نشو کولای او کوم سمندر چې زمونږ مخته دی دا هم یو عجیب او غریب سمندر دی او مونږ نه پوهیږو چې دا کوم سمندر دی. له دې وروسته سمدستي د کنټرول له دفتر سره د فضائي بیتړۍ هر رنګه تماس قطع شو، له دې وروسته هم ډیرې طیارې همدلته ورکې شوې دي

د دغه مثلث په باره کې ځینې نور تشریحات

د زلزلو نظریه او په مثلث برمودا باندې له واقع کیدونکو واقعاتو سره د هغه تعلق

د دغې نظريې مطابق چې د سمندر لاندې واقع کيدونکې زميني زلزلې او جټکې د سمندري موجونو د شدت، طوفاني هواګانو او بيړنی حالت پيدا کوي د کومو له امله چې بحري جهازونه ډوبيږي او هغه يې اناً فاناً په پوره قوت سره د سمندر لاندې برخې ته را کش کوي، تر کومه ځايه چې په فضا کې د طيارو د راغورځيدو تعلق دی نو د همدغو جټکو او موجونو له امله په فضا کې هم داسې هواګانې پيدا شي کومې چې د طيارو توازن خراب کړي او پيلوټ بيا د طيارې په کنترولو قدرت نلري.

په جزائر برمودا باندې د پاسه د تيريدا په وخت کې په طيارو کې موجودې قطب نما او نور آلات په عجيب او غريب شکل کې حرکت کول پريږدي، دا صورتحال د بحري جهازونو پيلوټانو ته هم مخته راغلی کوم چې د دغه امر دليل دی چې هلته د يوه سخت مقناطيسي قوت يا جذب عجيب او غريب قوت موجود دی.

## د دجال له خروج څخه د مخه راتلونکي واقعات

### د عربو قلت

سيده ام شريک رضی الله عنها بيان کوي چې هغې له رسول الله ﷺ دا اوريدلي چې فرمايل يې:

﴿ليفرن الناس من الدجال في الجبال قالت أم شريك يا رسول الله فأين العرب يومئذ ؟ قال هم قليل﴾ ([1]).

ژباړه:

خلک به له دجال څخه ويريږي او د غرونو لور ته به تښتي، ام شريک عرض وکړ يا رسول الله ! په دغه ورځ به عرب چيرته وي؟ نبي کريم ﷺ وويل: هغه به ډير کم وي

[1] صحيح مسلم، الفتن واشراط الساعة، حديث: ۲۹۴۵.

**سخت جنګ او د قسطنطنیه فتح**

﴿عمران بیت المقدس خراب یثرب وخراب یثرب خروج الملحمة وخروج الملحمة فتح القسطنطینیة وفتح القسطنطینیة خروج الدجال﴾ (۱).

ژباړه:

د بیت المقدس اٰبادي په اصل کې د مدینې بربادي ده، مدینه چې برباده شي نو یو لوی جنګ به شروع شي، چې دا جنګ شروع شي نو قسطنطنیه به فتح شي او کله چې قسطنطنیه فتح شي نو بیا به زر دجال ظاهر شي.

**فتوحات**

حضرت نافع بن عتبه رضی الله عنه بیان کوي:

مونږ خلک یو ځل له رسول الله ﷺ سره د جهاد په یوه سفر باندې ولاړو، نبي کریم ﷺ ته د مغرب له لوري یو قوم راغی، د هغوی په بدن باندې د اون جامې وې، د هغوی ملاقات د خدای تعالی له رسول ﷺ سره په یوه لوړ ځای باندې وو، هغوی ولاړ وو او د الله تعالی رسول ناست وو، زما په خیال کې راغله چې زه د هغوی او د الله تعالی د رسول ﷺ په مینځ کې ودریږم، هسې نه هغوی د خدای تعالی رسول په دوکه کې مړ نکړي، بیا ما وویل: شاید د الله تعالی رسول ﷺ له هغوی سره کومه پټه خبره به کوي. بهر حال زه راغلم د الله تعالی د رسول ﷺ او د هغوی په مینځ کې ودریدم، ما له رسول الله ﷺ څخه څلور خبرې زده کړې کومې چې زه په ګوتو سره شمارلی شم، رسول الله ﷺ وفرمایل:

﴿تغزون جزیرة العرب فیفتحها الله ثم فارس فیفتحها الله ثم تغزون الروم فیفتحها الله ثم تغزون الدجال فیفتحه الله﴾ (۲).

---

۱- مسند احمد: ۲۳۲/۵، وسنن ابي داؤد، الملاحم، حدیث: ۴۲۹۴.

۲- صحیح مسلم، الفتن واشراط الساعة، حدیث: ۲۹۰۰.

ژباړه: تاسو به په جزیره عرب کې جنګ وکړی الله تعالی به هغه فتح کړي، بیا به تاسو په ایران باندې حمله وکړی او هغه به هم الله تعالی فتح کړي، بیا به تاسو په روم باندې حمله وکړی هغه به هم الله تعالی فتح کړي، بیا به تاسو په دجال حمله وکړی الله به هغه هم فتح کړي، یعنې هغه ځای په کوم ځای کې چې له دجال سره جنګ کوی او د هغه په ملګرو به فتح ترلاسه کړی.

## د باران او حاصل ورکیدل

حضرت ابو امامه باهلي رضي الله عنه بیان کوي چې رسول الله ﷺ فرمایلي:

د دجال له خروج څخه د مخه درې کلونه به ډیر سخت وي، خلک به په دې کلونو کې د خوراکي شیان له کمبود سره مخامخ شي، په اول کال به الله تعالی آسمان ته حکم وکړي چې هغه خپله یوه برخه باران ودروي او زمکې ته به حکم وکړي چې هغه خپل یوه برخه پیداورا ودروي. بیا به په دویم کال کې آسمان ته حکم وکړي چې هغه خپل دوه برخې باران ودروي او زمکې ته به حکم وکړي چې هغه خپل دوه برخې پیدا وار ودروي، په دریم کال به الله تعالی آسمان ته حکم وکړي چې هغه خپل ټول باران ودروي او زمکې ته به حکم وکړي چې هغه خپل ټول پیدا وار ودروي، نتیجه به دا شي چې له اسمان څخه به یوه قطره باران نه را وریږي او له زمکې څخه به هیڅ نباتات نه را زرغونیږي، د زمکې په سر چې کوم ساه لرونکی ځناور وي لکه غوا، بزې او وغیره هلاک به شي، مګر کومو ته چې د الله تعالی خوښه وي هغه به بچ شي [۱].

## د فتنو ډیر والی، فتنه احلاس، فتنه سراء، فتنه دهمیاء او د خلکو په مینځ کې اختلاف

له حضرت عبد الله بن عمر رضی الله عنهما څخه روایت دی چې نبي کریم ﷺ په اوږده حدیث مبارک کې فرمایلي:

[۱] سنن ابن ماجه. الفتن. حدیث: ۴۰۷۷. وفي سنده مقال. وله شاهد من حدیث اسماء بنت یزید الانصاریة عند احمد وابي داؤد.

﴿ثم فتنة السراء دخنها من تحت قدمي رجل من أهل بيتي يزعم أنه مني وليس مني وإنما أوليائي المتقون ثم يصطلح الناس على رجل كورك على ضلع ثم فتنة الدهيماء ( تصغير الدهماء ) لا تدع أحدا من هذه الأمة إلا لطمته لطمة فإذا قيل انقضت تمادت يصبح الرجل فيها مؤمنا ويمسي كافرا حتى يصير الناس إلى فسطاطين ( المدينة التي يجتمع فيها الناس ) فسطاط إيمان لا نفاق فيه وفسطاط نفاق لا إيمان فيه فإذا كان ذاكم فانتظروا الدجال من يومه أو من غده﴾ ([1]).

ژباړه:

بیا به د خوشحالي فتنه ظاهره شي کومه به چې د یوه داسې سړي له قدمو څخه را پورته شي چې زمونږ له اهل بیت څخه به وي، هغه به په خپله زمونږ له خاندان څخه د ځان ګمان کوي که نه په اصل حقیقت کې به له مونږ سره هیڅ تعلق نلري، ځکه چې زما دوستان یواځې متقیان دي، بیا به خلک په داسې سړي باندې سره متفق شي کوم به چې داسې وي لکه په پښتۍ باندې درونډ شي (خلک به د یوه داسې سړي په بادشاه جوړولو متفق شي کوم به چې د خپل جهالت له امله د بادشاهي لپاره په هیڅ صورت موزون نه وي او نه به هغه د امورو په ترتیبولو قدرت لري، لکه څرنګه چې پښتۍ د لوی وزندار شي وزن نشي برداشت کولای، نبي کریم ﷺ وویل: له دې وروسته به یوه ډیره دردناکه فتنه شروع شي د کومې ضرر به چې زما د امت هر کس ته ورسیږي، هیڅ کس به له هغې محفوظ پاتې نشي، کله هم چې څوک ووایي دا فتنه ختمه شوه نو هغه به له پخوا څخه هم شدت اختیار کړي، انسان به د صبا په وخت کې مؤمن وي او د ماښام په وخت کې به کافر شي حتی چې خلک به په دوو ډلو کې وویشل شي. یوه ایمان لرونکې کومه به

---

[1] سنن ابي داؤد. الفتن والملاحم. حدیث. ۴۲۴۲.

چې له یوه مخه له نفاق څخه خالي وي او بله نفاق لرونکې کومه به چې له ایمان څخه خالي وي، کله چې داسې حالات راشي نو په دې وخت کې دجال ته انتظار کوی، په دغه ورځ به راځي یا به په بله ورځ کې راشي.

## د دیرشو دجالانو او کذابو خروج

حضرت سمره بن جندب ﷜ بیان کوي چې رسول الله ﷺ فرمایلي:

﴿وانه والله لا تقوم الساعة حتى يخرج ثلاثون كذابا آخرهم الأعور الدجال ممسوح العين اليسرى﴾ (۱).

ژباړه:

په الله قسم! قیامت به تر هغه وخته قایم نشي تر څو چې دیرش دروغژن ظاهر نشي، په دوی کې به تر ټولو آخیرنی دجال ړوند وي د کوم به چې یوه سترګه چته وي.

## دجال څنګه ظاهرېږي؟

د حضرت تمیم داري ﷜ د دجال او جساسه په حدیث کې تیر شول چې دجال دا وخت په سمندري جزیره کې قید دی او هغه د نبي کریم ﷺ په زمانه کې ژوندی دی، دا یو عظیم الجثه شخص دی، تمیم داري او د هغه دیرشو ملګرو هغه لیدلی چې هغه په زنځیرونو باندې تړل شوی وو، د دوی او د دجال تر مینځ خبرې هم شوې دي، هغه دوی ته ویلي دي چې دی دجال دی او عنقریب به د سختې غصې په عالم کې زنځیرونه مات کړي او له خپل قید څخه به د باندې را ووځي (۲).

---

۱ مسند احمد: ۵/ ۱۲.

۲ تفصیل یې په تیرو صفحو کې تیر شو.

## د هغه د خروج سبب

حضرت عبد الله بن عمر رضی الله عنهما فرمايي چې زه د مدينې په يوه لاره باندې له ابن صياد سره مخامخ شوم، ما هغه ته يوه داسې خبره وکړه د کومې له امله چې هغه په غصه شو او دومره وپړسيد چې د هغه له وجود څخه ټوله لار ډکه شوه، ابن عمر د سيده حفصه بنت عمر رضی الله عنهما کور ته داخل شو نو ابن عمر ته د ابن صياد د غصې خبر ورسيد، سيده حفصه رضی الله عنها ووېل: الله دې په تا رحم وکړي، تا هغه ولې په غصه کاوه؟ آيا تا ته معلومه نه ده چې رسول الله ﷺ فرمايلي: ﴿انما يخرج من غضبة يغضبها﴾ (١).

ژباړه:

دجال يوازې هغه وخت له خپل قيد څخه د باندې را ووځي کله چې هغه په سخته غصه کې راشي.

## پر زمکه د هغه رفتار

له نبي کريم ﷺ څخه پوښتنه وشوه: د دجال به په زمکه باندې رفتار څنګه وي؟

نبي کريم ﷺ وفرمايل:

﴿كالغيث لستدبرته الريح﴾ (٢).

ژباړه: د هغه باران په څېر به وي د کوم تر شا چې هوا وي.

مطلب دا چې هغه به په ډېره تېزي سره د زمکې په هره برخه وګرځي او ټولې زمکې ته به ورسيږي.

حضرت جابر ﷺ بيان کوی چې رسول الله ﷺ فرمايلي:

---

١ صحيح مسلم. الفتن واشراط الساعة. حديث: ٢٩٣٢.

٢ صحيح مسلم. الفتن واشراط الساعة. حديث: ٢٩٣٧.

دجال هغه وخت راووځي کله چې په خلکو کې دين کم شي او علم ختم شي، هغه به په زمکه کې تر څلويښتو ورځو پورې وګرځي، په هغوی کې به يوه ورځ د يوه کال په څير، يوه ورځ د يوې مياشتې په څير او يوه ورځ د يوې هفتې په څير وي، له دې وروسته به پاتې نورې ورځې د ستاسو د عامو ورځو په څير وي، له هغه سره به يو خر وي په کوم به چې هغه سپور وي، د هغه د دواړو غوږونو په مينځ کې به د څلويښتو لاسونو برابر فاصله وي، هغه به د خلکو خوا ته راشي او وايي به: زه ستاسو رب يم، سره له دې چې هغه به په يوه سترګه ړوند وي او دستاسو رب هيڅکله داسې نه دی. د هغه د دواړو سترګو په مينځ کې به (ک) (ف) (ر) ليکل شوي وي، هر مؤمن به هغه لوستلی شي خواه هغه لوستل کولای شي او که نه، هغه به له هرې چينې او اوبو څخه تير شي مګر مکې او مدينې ته به داخل نشي، ځکه چې الله تعالی په هغه دغه دواړه ښارونه حرام کړي دي او فرښتې به د دغو ښارونو په دروازو کې پهره کوي [1].

## هغه ځايونه چيرته چې دجال راځي

حضرت انس رضي الله عنه بيان کوي چې رسول الله ﷺ فرمايلي:

﴿ليس من بلدة الا سيطوه الدجال الا مكة والمدينة﴾ [2].

ژباړه: له مکې او مدينې پرته دجال به د دنيا هر ملک وګوري.

رسول الله ﷺ فرمايي:

﴿على انقاب المدينة ملائكة لايدخلها الطاعون ولاالدجال﴾ [3].

---

[1] مسند احمد ۴/ ۱۸۱. والمستدرک للحاکم:۴/ ۵۳۸. وصححه. وقال الهيثمي في مجمع الزوائد: رواه احمد باسنادين رجال احدهما رجال الصحيح.

[2] صحيح البخاري. فضائل المدينة. حديث: ۱۸۸۱. وصحيح مسلم. الفتن واشراط الساعة. حديث ۲۹۴۳.

[3] صحيح البخاري. الفتن. حديث: ۷۱۳۳. وصحيح مسلم. الحج. حديث: ۱۳۷۹.

ژباړه : د مدينې په دروازو به فرښتې متعينې وي، هغې ته به نه د طاعون مرض داخلیږي او نه دجال.

نبي كريم ﷺ فرمايلي:

مسيح دجال به د مشرق له لوري راځي، د هغه اراده به مدينې ته د داخليدو وي، مګر كله چې هغه د جبل احد بيخ ته ورسيږي نو فرښتې به د هغه مخته ورشي او د هغه مخ به د شام پر لوري وګرځوي او هغه به هلته مړ شي [1].

په يوه بل روايت كې دي كوم چې له محجن بن ادرع رضي الله عنه څخه روايت شوی چې رسول الله ﷺ يوه ورځ خلكو ته د خطبې ويلو په وخت كې وفرمايل:

د نجات ورځ! څه ده د نجات ورځ؟ د نجات ورځ! څه ده د نجات ورځ؟ د نجات ورځ! څه ده د نجات ورځ؟ دا يې درې ځلې وويل، له نبي كريم ﷺ څخه وپوښتنې شول: د نجات له ورځې څه مراد دی؟ نو نبي كريم ﷺ وفرمايل: دجال به راشي: هغه به په جبل احد ودریږي او د مدينې لوري ته به ګوري او خپلو ملګرو ته به وايي: آيا تاسو دا سپين محل وينئ؟ دا د احمد مسجد دی، بيا چې كله د مدينې لوري ته راځي نو په هره لار كې به فرښته له اسلحې سره ولاړه وي او هغه به د شام د جرف مقام یوې شور دارې زمكې ته ولاړ شي او هلته به خيمه ودروي. له دې وروسته به مدينه درې ځلې ولړزیږي د كوم له اثر څخه به چې ټول منافقين او فاسقان ښځې او سړي به مدينه پریږدي او د دجال په لوري به راووځي، دا د نجات ورځ ده [2].

نبي كريم ﷺ فرمايلي:

---

[1] صحيح مسلم. الحج. حديث: ۱۳۸۰، ومسند احمد :۲/ ۴۵۷.

[2] مسند احمد :۴/ ۳۳۸. وبعضه في الصحيحين.

﴿وَإِنَّهُ لاَ يَبْقَى شَيْءٌ مِنَ الأَرْضِ إِلاَّ وَطِئَهُ ، وَظَهَرَ عَلَيْهِ ، إِلاَّ مَكَّةَ ، وَالْمَدِينَةَ ، لاَ يَأْتِيهِمَا مِنْ نَقْبٍ مِنْ نِقَابِهِمَا إِلاَّ لَقِيَتْهُ الْمَلاَئِكَةُ بِالسُّيُوفِ صَلْتَةً﴾

ژباړه:

دجال به له مکې او مدینې پرته ټول ښارونه پایمال کړي او خپل تسلط به پرې راولي، ځکه چې د دغو دواړو ښارونو په لارو کې به په تورو سمبالې فرښتې وي او حفاظت به یې کوي.

﴿حَتَّى يَنْزِلَ عِنْدَ الظُّرَيْبِ الأَحْمَرِ ، عِنْدَ مُنْقَطَعِ السَّبَخَةِ ، فَتَرْجُفُ الْمَدِينَةُ بِأَهْلِهَا ثَلاَثَ رَجَفَاتٍ ، فَلاَ يَبْقَى مُنَافِقٌ ، وَلاَ مُنَافِقَةٌ إِلاَّ خَرَجَ إِلَيْهِ﴾.

ژباړه:

بیا به دجال په داسې لوړ سور بخون ځای چیرته به چې ګیا نه وي هلته به پړاو واچوي. د مدینې زمکه به خپلو اوسیدونکو ته درې جټکې ورکړي د کومو له امله به چې هر منافق سړی او منافقه ښځه به له مدینې څخه د باندې ووځي او د دجال لوري ته به ورشي ([1]).

د یوه بل رویت الفاظ داسې دي: ﴿فیاتی سبحة الجرف فیضرب رواقه﴾.

ژباړه: کله چې هغه مدینې ته داخل نشي نو د (جرف) په مقام کې به په شاړه زمکه پړاو واچوي او هلته به خیمې ودروي ([2]).

(الجرف) دا د مدینې د یوې ناحیې ځای دی کوم چې د مدینې شمال لوري ته د دریو میلو په فاصله کې موقعیت لري. د جرف یو څه برخه داسې هم ده کومې ته چې نن صبا د (ازهري محله) ویل کیږي، لیکن کوم احادیث چې مونږ بیان کړل له هغو څینې داسې معلومیږي چې جرف تر مرقناة پورې غځیدلی دی.

[1] - سنن ابن ماجه. الفتن. حدیث: ۴۰۷۷.

[2] - صحیح مسلم. الفتن واشراط الساعة. حدیث: ۲۹۴۳.

قناة د حمض وادي ته ویل کیږي او دلته د سیلابونو اوبه سره جمع کیږي. (تبع یماني) چې کله له خپل کور سره ویاله ولیدله نو له همدې امله یې دغه ټوله علاقه په جرف الارض سره ونوموله.

د تیرو تفصیلاتو خلاصه دا ده چې دجال به د جبل احد شا ته په شاړه زمکه کې کوزیږي، هغه به خپله خیمه یا قبه د جبل ثور په شمال کې په (صادقیه) کې لګوي، په دې علاقه کې واړه واړه سره غرونه دي چې لیدونکو ته یې د الله تعالی د رسول ﷺ احادیث ور په یاد کیږي.

له تمیم داري سره د جساسه او دجال په قیصه کې دي، چې دجال تمیم داري رضي الله عنه او د هغه ملګرو ته وویل: نږدې ده چې ما ته کوم وخت د راوتلو اجازه وشي، زه به را ووځم او په ټوله زمکه به وګرځم، له مکې او مدینې پرته د دنیا په ټوله زمکه به خپل ګشت په څلویښتو ورځو کې پوره کړم، ځکه چې دا دواړه ښارونه په ما حرام دي، زه چې کله هم هغوی ته د داخلیدو کوشش وکړم نو زما مخته به یوه فرښته راشي د کومې په لاسونو کې به چې اسلحه وي، هغه به ما دغو ښارونو ته له داخلیدو منعه کړي، د مکې او مدینې په ټولو لارو به هم فرښتې متعین شوې وي کومې به چې د هغو حفاظت کوي (١).

---

١ صحیح مسلم. الفتن واشراط الساعة. حدیث: ۲۹۴۲.

# د دجال فتنې

## اور او اوبه

حضرت حذيفة بن يمان ﷺ بيان کوي چې رسول الله ﷺ فرمايلي:
﴿معه جنة ونار، فناره جنة وجنته نار﴾ ([1]).
ژباړه:
له هغه سره به جنت او اور وي، د هغه اور په اصل کې جنت دی او د هغه جنت په حقيقت کې اور دی.
نبي کريم ﷺ فرمايلي:
﴿ان معه ماء ونار، فناره ماء بارد وماؤه نار﴾ ([2]).
ژباړه:
له هغه سره به اوبه او اور وي، د هغه اور په اصل کې يخې اوبه دي او د هغه اوبه په حقيقت کې اور دی.
نبي کريم ﷺ فرمايي: زه پوهيږم چې له دجال سره به څه وي، له هغه سره به دوه بهيدونکي نهرونه وي، د سترګو په ليدو به يو سپينې اوبه او بل اور ښکاري، که څوک په هغه کې ور غورځيدل غواړي نو په هغه کې دې ولويږي کوم چې اور ښکاري.
په يوه روايت کې دي:
کوم څوک چې د هغه اور ويني هغه ته دې ګوري، د هغه لور ته دې ور شي، سترګې دې پټې کړي، خپل سر دې په هغه کې ډوب کړي او له هغه څخه دې څښل شروع کړي، ځکه چې هغه اور نه دی بلکه تازه اوبه دي ([3]).

---

[1] صحيح مسلم. الفتن اشراط الساعة. حديث: ۲۰۳۴.
[2] صحيح البخاري. الفتن. حديث: ۷۱۳۰. وصحيح مسلم. الفتن واشراط الساعة. حديث: ۲۹۳۴.
[3] صحيح مسلم. الفتن واشراط الساعة. حديث: ۲۹۳۴.

په يوه بل روايت کې نبي کريم ﷺ فرمايي:

خلکو ته چې کومې اوبه په نظر ورځي هغه په اصل کې بليدونکی اور دی او خلکو ته چې کوم اور په نظر ورځي هغه په حقيقت کې تازه او تينګې اوبه دي، که په تاسو کې هر څوک د دجال په وخت کې ژوندي وی نو هغه ته پکار دي چې هغه په اور کې غوټه وخوري، ځکه چې هغه تازه او ښې اوبه دي (۱).

## په جماداتو او حيواناتو باندې اثر

حضرت نواس بن سمعان رضي الله عنه بيان کوي چې رسول الله ﷺ فرمايلي؛

دجال به د يوه قوم لوري ته راشي او هغوی به د خپل ځان ته را وبولي هغه قوم به په ده ايمان راوړي، بيا به دجال آسمان ته حکم وکړي نو هغه به د باران ورول شروع کړي. زمکې ته به حکم وکړي نو هغه به د پيداوار ورکول شروع کړي، هغه ميګې او بزې کومې چې د څريدا لپاره وتلې وي په داسې حال کې به بيرته راشي چې ويښتان به يې لوی شوي وي، تيونه به يې له شيدو ډک وي، خيټې به يې ډکې وي او د باندې به راوتلې وي، له دې وروسته به دجال يوه بل قوم ته ورشي، هغوی ته به دعوت ورکړي، مګر هغه قوم به له ده څخه انکار وکړي، دی به له دې خلکو څخه ولاړ شي، کله چې دغه خلک د صبا په وخت کې را پورته شي نو خپل فصلونه به ووينې چې برباد شوي دي. بيا به دجال له يوې بې خبره زمکې سره تيريږي، هغه به دې زمکې ته ووايي: خپلې خزانې را وباسه نو هغه به خپلې خزانې را وباسي او د شهدو مچيو په څير به سره جمع شي او په ده پسې به تر شا رواني وي (۲).

---

۱. صحيح مسلم. الفتن واشراط الساعة. حديث: ۲۹۳۴.

۲. صحيح مسلم. الفتن واشراط الساعة. حديث: ۲۹۳۷.

## يوه بله فتنه

هغه به يوه بانډه چي (کوچي) سړي ته ووايي: که چيرته زه د ستا مړه شوي مور او پلار را ژوندي کړم نو بيا ما رب ومنه؟ هغه به ورته ووايي: سمه ده، نو به دوه شيطانان د هغه د مور او پلار په شکل کې راشي او کوچي ته به ووايي: زمونږ خوږه بچيه! د دغه تابعداري وکړه، دا د ستاسو رب دی (۱).

## يوه بله فتنه

هغه به يو داسې کس را وبلي کوم به چې په پوره ځواني کې وي او بيا به هغه په توره دوه ټوټې کړي. بيا به خلکو ته ووايي زما دې بنده ته وګورئ دا زه اوس را ژوندی کوم. خو دی به بيا هم له ما پرته بل څوک رب بولي، دجال به دې ځوان ته ووايي پورته شه! ژوندی شه ودريږه، هغه به ودريږي، په حقيقت کې به هغه الله تعالى ژوندی کړی وي نه دجال، د دغه مقتول ځوان دواړه ټوټې به سره پيوند شي. بيا به دجال خبيث ووايي: ووايه د ستا رب څوک دی؟ هغه ځوان به ووايي زما رب الله دی، ته د الله دښمن يې، ته دجال يې.

## د دجال په سلسله کې يو شمير غلطې عقيدې

دا عقيده لړل غلط دي چې له هغه سره به د ډوډۍ او خوراکي شيانو يو غر وي کله چې په دې وخت کې قحط او فاقه وي.

حضرت مغيرة بن شعبه رضی الله عنه وايي:

د دجال په باره کې د الله له رسول ﷺ څخه چې ما څومره پوښتنې کړې يا بل چا څومره پوښتنې کړې نو رسول الله ﷺ مونږ ته فرمايلي:

زما بچيه! له تا سره د دجال څه ويره او خطر دی؟ هغه تاسو ته نقصان نشي رسولای، ما پوښتنه وکړه: خلک داسې وايي چې له هغه سره به د اوبو نهر او د ډوډۍ غر وي؟ رسول الله ﷺ وفرمايل:

﴿هو اهون على الله من ذالک﴾ (١).

هغه د الله په نزد له دې څخه هم ډېر بې وسه دی.

## د دجال پیروان

په دې کې هیڅ شک نشته چې له دجال سره به ډېر طاقت او ډېرې فتنې وي. هغه به خلک له سمې لیارې کږوي او په خپل ځان پسې تر شا تلو لپاره به رنګا رنګ طریقې استعماله وي، هغه به ځان د خلکو رب بولي. په دې کې یوه زره شک نشته چې د هغه په خبرو سره به ډېر خلک په فتنو کې مبتلا شي، هغوی به له ده څخه د فایدې تر لاسه کولو لپاره، یا د هغه له سزا څخه د بچ کیدا لپاره یا هم له اسلام او مسلمانانو سره د جنګ کولو لپاره به د هغه پیروان جوړ شي، په هغوی کې لاندې خلک شامل دي.

## یهود

حضرت انس بن مالک ﷺ بیان کوي چې رسول الله ﷺ فرمایلي:

﴿یتبع الدجال من یهود اصبهان سبعون الفا، علیهم الطیالسة﴾ (٢).

ژباړه:

د اصفهان (٣) اویا زره (د وړو څادرونو په څیر) جبه پوش یهودیان به د دجال پیروان جوړ شي.

حضرت ابو هریرة ﷺ بیان کوي چې رسول الله ﷺ فرمایلي:

﴿لینزلن الدجال حوز وکرمان في سبعین الفا وجوههم کالمجان المقطرقة﴾ (٤)

---

١- صحیح البخاري. الفتن. حدیث: ٧١٢٢. وصحیح مسلم. کتاب الاداب. حدیث: ٢١٥٢.

٢- صحیح مسلم. الفتن واشراط الساعة. حدیث: ٢٩٤٤.

٣- اصفهان د ایران ښار دی کوم چې د ایران په مینځ کې واقع دی. دا د ایران له دارالحکومت تهران څخه جنوب لوري ته تقریبا (٣٤٠) کلومیتره لیرې دی. د سرکاري اعلان مطابق په دې کې له پنځه وینځو څخه نیولې تر دیرشو زرو پورې یهودیان اباد دي.

٤- مسند احمد: ٢/ ٣٣٧. باسناد حسن.

ژباړه: دجال به په خوز [۱] او کرمان [۲] کې را ښکته شي، له هغه سره به اويا زره خلک وي، د کومو مخونه به چې د ګردو ډالو په څير وي.

(المجان المطرقة) د ګردو ډالونو په څير، يعنې د هغوی سرونه به واړه وي، مخونه به يې ګرد وي او د مخونو هډوکي او پوزې به يې د غوښو له امله چت تر سترګو کيږي

(المجان) د مجن جمع ده، د هغه معنا ده ډال او المطرقة چې خرمنه ورکړل شوي وي، دا د ډالونو صفت دی، يعنې د هغوی مخونه به واړه او له غوښې څخه به ډک وي

**يوه پوښتنه**

د دجال په پيروانو کې به زياتر يهوديان ولې وي؟

**ځواب**: له دې امله چې د هغوی دا عقيده ده چې دجال د يهودو مسيح منتظر دی.

د يهودو دا عقيده ده چې الله تعالی له هغوی سره د يوه بادشاه د ظهور وعده کړې کوم به چې د حضرت داؤد ﷺ له اولادې څخه وي، هغه به د يهودو مملکت قايم کړي، د دغه بادشاه نوم د هغوی په کتابونو کې (ميسياه) دی.

د يهودو په مذهبي رسوماتو کې يو شمير دعاګانې او لمنځونه هم شته په کومو کې چې هغوی د مسيح دجال د ظهور لپاره دعاګانې کوي. هغوی د (عيد فصح) شپه د همدا شان دعاګانو لپاره ځانګړې کړې.

د هغوی په مذهبي کتاب (تلمود) کې دي:

کله چې مسيح دجال راشي نو له زمکې څخه به تازه ډوډۍ، د اون جامې او غنم را ووځي، د هغو دانې به ډيرې غټې وي، په دغه زمانه کې به

---

[۱] خوز د مغربي ايران يو ښار دی کوم چې نن ورځ خوزستان ويل کيږي.

[۲] کرمان د ايران په جنوب مشرق کې يوه صوبه (ايالت) دی.

سلطنت د يهودو په لاس کې وي، د دنيا ټول قومونه به د دغه مسيح خدمت او فرمان برداري کوي، په دغه وخت کې به د هر يهودي په قبضه کې دوه زره اته سوه (۲۸۰۰) غلامان وي کوم به چې د دوی په خدمت باندې مامور وي او درې سوه لس (۳۱۰) کائنات به د هغوی تر تصرف لاندې وي، ليکن مسيح په هغه وخت کې راځي کله چې د شريرو خلکو حکومت ختم شي او د اسرائيلو په راتګ سره د يهودي امت منتظر اميدونه پوره شي او کله چې هغه راشي نو يهودي امت به د ټول عالم په قومونو اقتدار او حکومت تر لاسه کړي (۱).

## کفار او منافقين

حضرت انس بن مالک ﷛ بيان کوي چې نبي کريم ﷺ فرمايلي:

﴿لَيْس مِنْ بَلَدٍ إِلَّا سَيطَؤهُ الدَّجَّالُ إِلَّا مَكَّةَ وَالْمَدِينَةَ لَيْس لَهُ مِنْ نِقَابِهَا نَقْبٌ إِلَّا عَلَيْهِ الْمَلَائِكَةُ صَافِّينَ يَحْرُسُونَهَا ثُمَّ تَرْجُفُ الْمَدِينَةُ بِأَهْلِهَا ثَلَاثَ رَجَفَاتٍ فَيُخْرِجُ اللَّهُ كُلَّ كَافِرٍ وَمُنَافِقٍ﴾ (۲).

ژباړه: له مکې او مدينې پرته هيڅ داسې ښار به نه وي کوم ته به چې دجال ور نشي، د مکې او مدينې هره لار به فرښتې څاري او د هغو حفاظت به کوي. کله چې هغه مدينې ته داخل نشي نو په يوه شورداره زمکه به پړاو واچوي، د مدينې زمکه به خپلو اوسيدونکو ته درې جټکې ورکړي او هر کافر او منافق به له مدينې څخه د باندې ووځي او د دجال لوري ته به ور شي.

---

۱- دا عبارت له کتاب (الکنز المرصود في قواعد التلمود) فصل هفتم. (المسيح و سلطان اليهود) څخه نقل شوی.

۲ صحيح البخاري. فضائل المدينة. حديث: ۱۸۸۱.

## جاهل کوچی

حضرت ابو امامه باهلي ﷛ بیان کوي چې رسول الله ﷺ په یوه لوی حدیث کې داسې فرمایلي:

د دجال یوه فتنه به دا هم وي چې هغه به یوه کوچي ته ووایي: که چیرته زه د ستا مړه شوي مور او پلار ژوندي کړم ته بیا ما رب منې؟ هغه به ورته ووایي: هو، نو به دوه شیطانان د هغه د مور او پلار په شکل کې د هغه مخته به راشي او کوچي ته به ووايي: زمونږ خوږه زويه! د دغه اتباع وکړه، دا ستاسو رب دی (۱).

## هغه خلک د کومو مخونه به چې د ګردو ډالونو په څیر وي

حضرت ابو بکر صدیق ﷛ بیان کوي چې رسول الله ﷺ فرمایلي

﴿إن الدجال يخرج من أرض بالمشرق يقال لها خراسان يتبعه أقوام كأن وجوههم المجان المطرقة﴾ (۲).

ژباړه:

دجال به د مشرق له یوې علاقې څخه را ووځي، کومې ته چې خراسان ویل کېږي، د هغه پیروان به داسې قومونه وي د کومو مخونه به چې د ګردو ډالونو په څیر وي.

---

۱ - سنن ابن ماجه، الفتن، حدیث: ۴۰۷۷.

۲ - مسند احمد: ۱/ ۴، وجامع الترمذي، الفتن، حدیث: ۲۲۳۷، وحسنه، وسنن ابن ماجه، الفتن، حدیث: ۴۰۷۲، والحاکم: ۴/ ۵۲۷، وصححه ووافقه الذهبي وصححه الالباني في صحیح ابن ماجه.

## ښځې

نبي کريم ﷺ فرمايلي:

﴿ينزل الدجال في هذه السبخة بمر قناة فيكون أكثر من يخرج إليه النساء حتى ان الرجل ليرجع إلى حميمه والى أمه وابنته وأخته وعمته فيوثقها رباطا مخافة ان تخرج إليه﴾ ([1]).

ژباړه:

دجال به په شورداره زمکه د مرقناة په مقام باندې راکوز شي، د هغه لوري ته د تلونکو اکثريت به ښځې وي حتى چې يو انسان به خپل کوم رشته دار، مور، خوی، خور، ترور او ښځې له دې امله په کورونو کې بندې کړي چې هغه د دجال لوري ته ور نشي.

## د دجال د اوسيدو موده

د الله تعالى له رسول ﷺ څخه پوښتنه وشوه چې دجال به تر څومره مودې پورې اوسيږي؟ نو د الله تعالى رسول ﷺ وفرمايل:

﴿اربعون يوما، يوم كسنة، ويوم كشهر، ويوم كجمعة، وسائر ايامه كايامكم﴾ ([2]).

ژباړه: هغه به تر څلويښتو ورځو پورې په زمکه کې اوسيږي، د هغه لومړۍ ورځ به د کال سره برابره وي، دويمه ورځ به يې د يوې مياشتې برابره وي، دريمه ورځ به يې د يوې جمعې برابره وي، له دې وروسته ورځې به د ستاسو د عامو ورځو په څير وي.

---

[1] - مسند احمد: ۲/ ۲۷. قال الشيخ الالباني في (قصة المسيح الدجال) ص: ۸۸. اسناده جسن لو لا عنعنة محمد بن اسحاق.

[2] - صحيح مسلم. الفتن. حديث: ۲۹۳۷.

صحابه کرامو رضی الله عنهم عرض وکړ : اې د الله رسول ! آیا له کال سره په برابرې ورځې کې پنځه لمنځونه مونږ ته کافي دي؟ رسول الله ﷺ وفرمایل : نه ! بلکه تاسو د هر لمانځه لپاره د وخت اندازه وکړئ.

## د دجال له فتنې څخه نجات څنګه کیدای شي؟

## له هغه څخه لیرې اوسیدل

حضرت عمران بن حصین رضي الله عنه بیان کوي چې رسول الله ﷺ فرمایلي:

﴿من سمع بالدجال فلينا عنه، فوالله ! ان الرجل لياتيه وهو يحسب انه مؤمن فيتبعه مما يبعث به من الشبهات﴾

ژباړه :

هر څوک چې د دجال په باره واوري نو له هغه څخه دې لیرې اوسي، په الله قسم ! یو سړی کوم چې ځان مؤمن بولي، کله چې هغه ته نږدې ور شي نو د هغه له پیدا کړل شویو شبهاتو څخه به متاثر شي او د هغه په پیروانو کې به ور شامل شي.

د دې حدیث معنا دا ده چې یو چا ته د دجال د راوتلو معلومات وشي نو له هغه څخه دې لیرې اوسي او نږدې دې نه ورځي، یو سړی، کوم چې په ځان د قوي الایمان ګمان کوي کله چې هغه د دجال خوا ته ورشي نو د هغه په غوړیدلي جال کې به را ګیر شي، کله چې د هغه جادو او د مړیو را ژوندي کولو کار ویني نو د هغه په پیروانو کې به شامل شي.

سیده ام شریک رضی الله عنها بیان کوي چې رسول الله ﷺ فرمایلي:

﴿ليفرن الناس من الدجال في الجبال﴾ ([1]).

ژباړه : خلک به د دجال له فتنې څخه د بچ کیدا لپاره غرونو ته وتښتي او خانونه به پټ کړي.

---

[1] - صحیح مسلم. الفتن وشرط الساعة. حدیث: ۲۹۴۵.

په دې زمانه کې به د مسلمانانو لپاره يو امام. يعنې خليفه هم وي او له دې څخه مراد خليفه عادل امام مهدي دی.

## له الله تعالی څخه مرسته غوښتل

حضرت ابو امامه باهلي ﷺ بيان کوي چې رسول الله ﷺ فرمايلي:

﴿من ابتلى بناره فليستغث بالله﴾ (۱).

ژباړه: څوک چې د هغه د اور په فتنه کې مبتلا شي نو له الله تعالی څخه دې مرسته وغواړي.

## د الله تعالی د اسماؤ او صفاتو علم حاصول

دجال په يوه سترګه ړوند دی او الله تعالی هيڅ کله داسې نه دی، بلکه الله تعالی حسين، جميل او له تمامو نقائصو او عيوبو څخه پاک دی، هغه قدوس او له هر عيب څخه مبرا دی، الله تعالی جل جلاله فرمايي:

﴿كَمِثْلِهِ شَيْءٌ ۖ وَهُوَ السَّمِيعُ الْبَصِيرُ﴾ (۲).

ژباړه: نشته په شان د دغه (الله) هيڅ څيز (په هيڅ څيز کې) او همدغه الله دی ښه اوريدونکی د ټولو اقوالو ښه ليدونکی د کړدو اعمالو.

## د سورت کهف د اولنيو لسو اياتونو تلاوت

حضرت ابو الدرداء بيان کوي چې رسول الله ﷺ فرمايلي:

﴿من حفظ عشر آيات من اول سورة الكهف عصم من فتنة الدجال﴾ (۳).

ژباړه: چا چې د سورت کهف لومړني لس آياتونه په ياد کړل هغه به د دجال له فتنې څخه وساتل شي

هغه لس آياتونه دا دي:

---

۱- سنن ابن ماجه. الفتن. حديث: ۴۰۷۷.

۲- الشورى. آية: ۱۱.

۳- صحيح مسلم. الصلوة. حديث: ۸۰۹.

﴿ اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ الَّذِیْٓ اَنْزَلَ عَلٰى عَبْدِهِ الْكِتٰبَ وَ لَمْ يَجْعَلْ لَّهٗ عِوَجًا ۜ ؕ قَيِّمًا
لِّيُنْذِرَ بَاْسًا شَدِيْدًا مِّنْ لَّدُنْهُ وَ يُبَشِّرَ الْمُؤْمِنِيْنَ الَّذِيْنَ يَعْمَلُوْنَ الصّٰلِحٰتِ اَنَّ
لَهُمْ اَجْرًا حَسَنًا ۙ مَّاكِثِيْنَ فِيْهِ اَبَدًا ۙ وَّ يُنْذِرَ الَّذِيْنَ قَالُوا اتَّخَذَ اللّٰهُ وَلَدًا
ۗ مَا لَهُمْ بِهٖ مِنْ عِلْمٍ وَّ لَا لِاٰبَآئِهِمْ ؕ كَبُرَتْ كَلِمَةً تَخْرُجُ مِنْ اَفْوَاهِهِمْ ؕ اِنْ يَّقُوْلُوْنَ
اِلَّا كَذِبًا ۝ فَلَعَلَّكَ بَاخِعٌ نَّفْسَكَ عَلٰٓى اٰثَارِهِمْ اِنْ لَّمْ يُؤْمِنُوْا بِهٰذَا الْحَدِيْثِ
اَسَفًا ۝ اِنَّا جَعَلْنَا مَا عَلَى الْاَرْضِ زِيْنَةً لَّهَا لِنَبْلُوَهُمْ اَيُّهُمْ اَحْسَنُ عَمَلًا ۝ وَ
اِنَّا لَجٰعِلُوْنَ مَا عَلَيْهَا صَعِيْدًا جُرُزًا ۜ اَمْ حَسِبْتَ اَنَّ اَصْحٰبَ الْكَهْفِ وَ
الرَّقِيْمِ ۙ كَانُوْا مِنْ اٰيٰتِنَا عَجَبًا ۝ اِذْ اَوَى الْفِتْيَةُ اِلَى الْكَهْفِ فَقَالُوْا رَبَّنَآ اٰتِنَا
مِنْ لَّدُنْكَ رَحْمَةً وَّ هَيِّئْ لَنَا مِنْ اَمْرِنَا رَشَدًا ۝ ﴾ (۱).

ژباړه:

ټوله ثنا او ستاینه خاص الله لره ده هغه (الله) چې نازل کړی دی په بنده خپل (محمد ص) کتاب (قران) حال دا چې نه یې دی پیدا کړی په دې قران کې هیڅ کږوالی (نه په الفاظو او نه په معانیو کې) (حال دا چې سم برابر دی (افراط او تفریط له سره پکې نشته) او نازل کړی یې دی دپاره د دې چې وویروي (محمد) په دې کتاب سره کفار (له عذاب سخته چې راتلونکی دی) له جانبه د الله او زیری ورکړي (محمد) مؤمنانو هغو ته چې کړي دي دوی ښه عملونه چې بیشکه شته دوی ته اجر ښه (چې جنت دی) حال دا چې اوسیدونکي به وي په هغه جنت کې تل تر تله؛ او چې وویروي هغه کسان چې وایي له ډیره جهله نیولی دی الله ولد نشته دوی ته په دې خبره هیڅ علم

(۱) الکهف. آیة: ۱ الی ۱۰.

(بلکه هسې له خپله وهمه يې وايي) او نه پلرونو د دويته (بلکه هسې له خپله وهمه يې وايي) ؛ او په ده هغه خبره (د دوی) چې راووځي له خوا د دوی څخه نه وايي دوی مګر دروغ (غټ) نو ښائي چې ته وژونکی يې د نفس خپل په دوی پسې که را نه وړي (دوی) ايمان په دې خبره (قران ، نو ته ځان وژنې) له ډيره غمه ؛ بيشکه مونږ ګرځولی مو دی هر هغه شی چې دی په ځمکه ښايست دپاره د دې (زمکې او اهل د زمکې) دپاره د دې چې وازميو دوی چې کوم يو له دوی څخه ډير غوره دی له جهته د عمله ؛ او بيشکه مونږ خامخا ګرځونکي يو د هر هغه شي چې دغه زمکه دی (صاف پرې کړی شوی يعني خاورې پرتې پر زمکه ډاګ ټوټې ټوټې وچ کلک) ايا ګمان کوې ته (اې محمده !) د دې خبرې چې صاحبان د غار او د تختې وو د دوی (په اعتبار د قيصې) له دلايلو د (قدرت) زمونږ ډيره عجيبه (او نور نشته بلکه د الله تعالى د قدرتونو نور عجيبه دلايل هم شته) ياد کړه هغه وخت چې رجوع وکړه هغو ځلميانو (د کفارو له ويرې) غار ته نو وويل دوی اې ربه زمونږ راکړه مونږ ته له خپلې خوا رحمت (چې پرې پټ شو له غليمه) او تيار کړه مونږ ته له دې کاره زمونږ (چې له کافرانو نه جلا والی دی هدايت).

حضرت نواس بن سمعان ﵁ بيان کوي چې رسول الله ﷺ فرمايلي:

﴿من ادركه منكم فليقرء عليه فوتح سورة الكهف﴾ ([1]).

ژباړه: په تاسو کې چې څوک دجال پيدا کړي نو هغه ته پکار دي چې د هغه په وړاندې د سورت کهف اولينې لس آياتونه تلاوت کړي.

د هغه سبب دا دی چې د دغه سورت په شروع کې الله تعالى ذکر کړي چې په غار کې موجود ځوانان يې د هغه ظالم بادشاه له لاس څخه ساتلي کوم يې چې نيول غوښتل. د ځينو اهل علمو قول دی چې په دغو لسو آياتونو کې په غار کې د موجودو ځوانانو د قيصې يو عجيب ذکر دی چې هغوی

---

[1] - صحيح مسلم. لفتن. حديث: ۲۹۳۷.

څنګه نجات پیدا کړ. یوه مسلمان ته له دجال سره د مخامخ کیدو په وخت کې په دغو واقعاتو باندې نظر کول پکار دي.

## د ټول سورت کهف تلاوت

حضرت ابو سعید خدري رضي الله عنه بیان کوي چې رسول الله ﷺ فرمایلي:

﴿من قرء سورة الكهف كما انزلت، ثم ادرك الدجال، لم يسلط عليه او لم يكن له عليه سبيلا﴾ ([1]).

ژباړه: کوم سړی چې سورت کهف په هغې طریقې تلاوت کړي په کومه طریقه چې نازل شوی، بیا هغه له دجال سره مخامخ شي نو په هغه به مسلط نشي، یا دا چې په دغه مؤمن باندې به هیڅ غلبه تر لاسه نکړي.

## د لمانځه په اخیر کې د دجال له فتنې پناه غوښتل

په اخیري تشهد کې له سلام ګرځولو د مخه د دې دعا لوستل پکار دي:

﴿اللَّهُمَّ إِنِّي أَعُوذُ بِكَ مِنْ عَذَابِ الْقَبْرِ وَمِنْ عَذَابِ النَّارِ وَمِنْ فِتْنَةِ الْمَحْيَا وَالْمَمَاتِ [2] وَمِنْ فِتْنَةِ الْمَسِيحِ الدَّجَّالِ﴾ ([3]).

ژباړه:

اې الله! زه په تا سره د دوزخ له اوره، د قبر له عذابه، د ژوند او مرګ له فتنې او د دجال له فتنې پناه غواړم.

---

[1] - المستدرک للحاکم :۴/ ۵۱۱. وقال: حديث صحيح الاسناد. سلسلة الاحاديث الصحيحة:۲/ ۳۱۲. حديث: ۲۲۵۱.

[2] - (فتنة المحيا) هغه فتنه ده کومه چې د انسان په زندګي کې مخته راځي. لکه: دنیوي مال او د شهوتونو فتنه. که چیرته په دې کې یو انسان صبر له لاسه ورکړي نو دا یو ازمایښت دی او له (الممات) څخه مراد هغه فتنه ده کومه چې انسان ته د مرګ په وخت کې مخته راځي. یا له دې څخه مراد د قبر فتنه ده چې کله فرښتې راشي او پوښتنه کوي او په ډیره سختي سره پوښتنه کوي. د قبر عذاب هم په همدې فتنه کې داخل دی.

[3] - صحيح البخاري. الجنائز. حديث: ۱۳۷۷. وصحيح مسلم. المسجد ومواضع الصلوة. حديث: ۵۸۸.

خلک د دجال له فتنې خبر کړی تر څو چې هغه له دې څخه بچ شي

حضرت صعب بن جثامه رضي الله عنه بیان کوي چې رسول الله ﷺ فرمایلي:

﴿لايخرج الدجال حتى يذهل الناس عن ذكره﴾ ([1]).

ژباړه:

دجال تر هغه وخته نه راووځي تر څو چې خلک د هغه له یادولو څخه غافل نشي.

یعنې هر کله چې هیڅوک د هغه ذکر نکوي او نه د هغه په باره کې سوچ کوي، کله چې خلک هغه هیر کړي او د هغه صفات له ذهنونو وباسي او د فتنو د کثرت با وجود د هغه په باره کې احتیاط پریږدي نو په دې وخت کې دجال ظاهریږي.

## د شریعت په علم ځان مسلح کول

په الله تعالی باندې له ایمان سره سره شرعي علم له هرې فتنې سره د مقابلې لپاره بهترینه اسلحه ده، له همدې فتنو څخه د دجال فتنه هم ده، نبي کریم ﷺ د مدینې د یوه بهادر مؤمن ځوان قیصه بیان کړې کوم به چې له ایماني قوت او علم سره د دجال مختې ورشي، له دې قیصې څخه مونږ ته له فتنو څخه د ځان ساتلو په سلسله کې له ایمان سره د شرعي علم اهمیت ښکاره دی.

حضرت ابو سعید خدري رضي الله عنه بیان کوي چې رسول الله ﷺ فرمایلي:

دجال به راشي، مدینې ته داخلیدل په هغه حرام کړی شوي دي، ځکه خو به له مدینې سره نږدې په یوه شورداره زمکه کې پړاو واچوي، یو سړی به د هغه لوري ته راشي کوم به چې په دې وخت کې بهترین انسان وي، هغه به دجال ته ووایي: زه د دې خبرې ګواهي ورکوم چې ته هغه دجال یې د کوم په باره کې چې د الله رسول ﷺ په خپل یوه حدیث کې مونږ ته فرمایلي:

---

[1] - مسند احمد: ۴/ ۷۱.

دجال به خپلو ملګرو ته وایي که چیرته زه دا سړی قتل کړم او بیا یې دوباره ژوندی کړم آیا بیا به هم تاسو ته زما په باره کې کوم شک او شبه باقي پاتې شي؟

هغوی به وایي: بالکل نه.

دجال به هغه ووژني، بیا به یې ژوندی کړي، په روایت کې دي چې دجال به هغه ووژني او دوه ټوټې به یې کړي چې د مقتول جسم د دواړو ټوټو په مینځ کې به د یوه غیشي په اندازه لیرې والی وي، بیا به دجال هغه ژوندی کړي او را اوبه یې بلي، نو ځوان به داسې را روان وي چې څهره به یې ځلیږي او خاندي به، دا ځوان به وایي: په الله قسم ! ستا د دجال او کذاب کیدلو په باره کې ما ته چې اوس څومره بصیرت حاصل شو هغه د مخه نه وو، په یوه روایت کې دي:

دجال به راشي، یو مؤمن ځوان به د هغه لوري ته ور روان شي، په لاره کې به د دجال له پهره دار سره مخامخ شي او له ځوان څخه به وپوښتي:

چیرته دې اراده کړې؟

ځوان به ورته وایي: زه هغه لوري ته ځم کوم چې ظاهر شوی.

هغه به ورته وایي: آیا ته زمونږ په رب ایمان نلرې؟

ځوان به ورته وایي: زمونږ د رب صفات خو پټ نه دي، زه دجال وینم او هغه له صفاتو څخه پیژنم.

هغه به وایي: دا قتل کړی.

بیا به هغوی په خپل مینځ کې یوه بل ته وایي: آیا دستاسو رب تاسو منعه کړي نه یاست چې د هغه له حکم پرته څوک مه وژنئ؟

بیا به هغوی ځوان ونیسي او دجال ته به یې ور ولي، هر کله چې دغه مؤمن ځوان دجال ویني نو وبه وایي: اې خلکو ! دا هغه مسیح دجال دی د کوم ذکر چې رسول الله ﷺ کړی.

دجال به حکم وکړي چې دغه ځوان د وژلو لپاره څملوی.

د دغه ځوان په خیټه او شا باندې به سخت شدید ګزارونه وشي.
دجال به ترینه وپوښتي: آیا ته په ما ایمان راوړې؟
ځوان به ورته ووایي: ته مسیح کذاب یې.
بیا به د دجال په حکم یوه اره راوړل شي او د دغه ځوان په سر به کیښودل شي او ټول بدن یې په دوو برخو تقسیم کړل شي، دجال به د هغه د بدن د دواړو برخو په مینځ کې په فخر او تکبر سره ولاړ وي او هغه ته به ووایي: پورته شه! هغه ځوان به پورته شي او سم به ودریږي.
دجال به ورته ووایي: څنګه ته په ما ایمان راوړې؟
هغه به ورته ووایي: اوس خو ما ته د ستا په باره کې له پخوا څخه هم یقین زیات شو. بیا به هغه مؤمن ځوان ووایي: اې خلکو! له ما وروسته به دی له هیچا سره داسې نشي کولای.
دجال به د ذبح کولو لپاره هغه بیا ونیسي خو الله تعالی به هغه له غاړې څخه نیولې تر ښنګرو پورې پیتل جوړ کړي د کوم له امله به چې دجال هغه نشي قتل کولای. بالاخر به هغه له دواړو پښو او دواړو لاسونو څخه ونیول شي او په خپل اور کې به یې واچوي، خلک به دا ګمان کوي چې هغه په اور کې واچول شو. لیکن حقیقت دا دی چې هغه په جنت کې واچول شو.
بیا نبي کریم ﷺ وفرمایل:
دغه ځوان به د الله تعالی په نزد له عظیم ترینو شهیدانو څخه وي (١).
دا حدیث د شرعي علم حاصلولو د اهمیت لپاره دلیل دی. که چیرته له دغه مؤمن ځوان سره د دجال د صفاتو په باره کې له پخوا څخه علم نه وای نو هیڅ کله دجال ته نشوای رسیدلای. لهذا هر هغه څوک چې له باطل سره مقابله کول غواړي هغه ته ضروري دي چې خپل ځان په شرعي علم سره مسلح کړي.

---

(١) صحیح مسلم. الفتن واشراط الساعة. حدیث: ۲۹۳۸.

د دغه ځوان یقین وو چې دجال له ده پرته بل څوک نشي قتل کولای، ځکه چې دغه ځوان ته په دې علم وو په حدیث شریف کې چې د کوم ځوان ذکر راغلی له هغه څخه مراد بذات خود همدی ده.

## له دجال سره د جنګ کولو لپاره دې اهل ایمان تیاری وکړي

حضرت ابو هریرة رضي الله عنه بیان کوي چې رسول الله ﷺ فرمایلي:

﴿فبینما هم تعدون للقتال یسوون الصفوف، اذا اقیمت الصلاة فینزل عیسی ابن مریم﴾

ژباړه:

کله چې مسلمان د جنګ لپاره تیاری کوي او صفونه برابر کړي او لمونځ ودوري نو په دې وخت کې به عیسی ابن مریم علیه السلام را نازل شي.

حضرت خذیفه بن اسید رضي الله عنه بیان کوي چې نبي کریم ﷺ د خروج دجال په باره کې او د امام مهدي له خپلو ملګرو سره د دجال په خلاف د جهاد لپاره د تیاري کولو په سلسله کې فرمایلي:

دجال به د مدینې لوري ته راشي او د هغې په بیروني برخه به قبضه وکړي او د مدینې خلک به د باندې له وتو څخه منع کوي. بیا به هغه په بیت المقدس کې د جبل ایلیاء لوري ته راشي او هلته به د مسلمانانو یوه ډله محاصره کړي. مسلمانان به له سختو مشکلاتو سره مخ کړي. بیا به د مسلمانانو امراء ووایي: تاسو د کومې خبرې انتظار کوی؟ پورته شئ له دغه شیطان سره جنګ وکړی او د خپل رب لوري ته ورشی. یا فاتحین شی. هغوی به له دجال سره د جنګ کولو په باره کې مشوره کوي. کله چې صبا شي نو عیسی ابن مریم علیه السلام به هم تشریف راوړی وي (۱).

---

۱. المستدرک للحاکم: ۴ ۵۲۹. وصححه. وقال الذهبي: علی شرط البخاري ومسلم.

# له دجال سره د مخاخ کیدلو په صورت کې مسلمان ته څه کول پکار دي

حضرت ابو امامه باهلي ﷺ بیان کوي چې رسول الله ﷺ فرمايلي:

د هغه د سترګو په مینځ کې به (ک) (ف) (ر) لیکل شوي وي، هر مؤمن به هغه به په آساني سره لوستلای شي، په تاسو کې که یو څوک هغه پیدا کړي نو هغه ته پکار دي چې د هغه مخته ور وتوکی او د سورت کهف اولني لس آیاتونه تلاوت کړی، هغه به په یوه مؤمن انسان باندې تسلط پیدا کړي کوم به چې هغه قتل کړي او بیا به یې را ژوندی کړي (١).

حضرت ابو قلابه ﷺ یو صحابي له رسول الله ﷺ څخه بیان کوي چې رسول الله ﷺ فرمايلي:

له دنیا څخه د ستاسو له تلو وروسته به یو ګمراه کوونکی دجال ظاهر شي، د هغه د سر ویښتان به ډیر ګڼ او تاو شوي وي، هغه به وايي: زه دستاسو رب یم، څوک چې دا واوري او ووایي: زمونږ رب الله دی، مونږ په هغه باندې یقین کړی، د هغه لوري ته مونږ رجوع کړی او له تا څخه د بچ کیدا لپاره مونږ په الله تعالی سره پناه غواړو، نو په داسې خلکو به دجال هیڅ غلبه تر لاسه نکړي (٢).

---

١ - المستدرک للحاکم: ۴/ ۵۸۰. وقال: صحیح علی شرط مسلم.

٢ مسند احمد: ۵/ ۴۱۰. باسناد حسن.

## په شام کې د دجال وژل

حضرت ابو هريرة رضي الله عنه بيان کوي چې رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمايلي:

﴿ياتى المسيح من قبل المشرق، همته المدينة، حتى ينزل دبر احد، ثم تصرف الملائكة وجهه قبل الشام، وهنالک يهلک﴾ ([1]).

ژباړه: دجال به د مشرق له لوري راشي، د هغه اراده به مدينې ته داخليدل وي مګر د جبل احد شا ته به پړاو واچوي، بيا به فرښتې د هغه مخ د شام لوري ته کړي، هلته به دی هلاک کړل شي.

## د دجال مرګ به د حضرت عيسى ابن مريم عليه السلام د لاسه وي

حضرت مجمع بن جاريه رضي الله عنه بيان کوي چې رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمايلي:

﴿يقتل ابن مريم الدجال بباب لد﴾ ([2]).

ژباړه:

عيسى ابن مريم عليه السلام به دجال په (باب لد) کې قتل کړي.

حضرت ابو هريرة رضي الله عنه بيان کوي چې رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمايلي:

مسلمانان به د جنګ لپاره تياری کوي، کله چې صفونه برابر کړي نو د لمانځه وخت به وي چې عيسى ابن مريم عليه السلام به نزول وکړي، په يوه بل روايت کې دي:

حضرت عيسى ابن مريم عليه السلام به په مشرقي دمشق کې له يوه سپين مينار سره نږدې په دوه رنګه لرونکې جامه کې ملبوس، د دوو فرښتو په وزرو باندې له خپلې اسلحې سره نزول وکړي، کله چې هغه سر ښکته کړي نو له هغه څخه به د اوبو څاڅکي توی شي او کله چې سر مبارک پورته کړي نو له هغه څخه به د اوبو پړک وهونکې قطرې د دانو په څير باران وشي، په

---

[1] صحيح مسلم، الحج، حديث: ۱۳۸۰.

[2] (باب لد) د فلسطين په سيمو کې د واقع بيت المقدس يوه سيمه ده.

کوم کافر چې د حضرت عیسی علیه السلام د اسویلي خوشبو ولګیږي نو په دې وخت کې به هغه مړ کیږي، د هغه د اسویلي خوشبو به د هغه د سترګو تر دیده پورې رسیږي، مطلب دا چې د حضرت عیسی علیه السلام د سترګو تر دیده چې کوم کافر وي هغه به ژوندی نه پاتې کیږي.

نبي کریم صلی الله علیه وسلم دا خبر هم ورکړی چې د نزول عیسی علیه السلام په وخت کې به مسلمانان د لمانځه لپاره تیاری کوي، د هغوی مقتدا او امام به مهدي وي، امام مهدي به د امامت لپاره په مصلی باندې ولاړ وي چې عیسی به نزول وکړي، امام مهدي به فوراً له مصلی را وروسته شي (حضرت عیسی علیه السلام له امام مهدي څخه غوره دی) له همدې امله به امام مهدي غواړي چې بهترین شخصیت د لمانځه امامت وکړي، لیکن حضرت عیسی علیه السلام به خپل لاس د امام مهدي په دواړ اوګو کیږدي او ورته وبه وایي: ته مخته شه او امامت وکړه. دا اقامت دستا لپاره ویل شوی دی. دا د دغه امت لپاره د الله تعالی له لوري یو خاص اعزاز دی چې حضرت عیسی علیه السلام یو جلیل القدر پیغمبر د دغه امت د یوه فرد په امامت کې لمونځ وکړي، امام مهدي به لمونځ ورکړي او چې کله له لمانځه فارغ شي نو عیسی علیه السلام به ووایي: دروازه خلاصه کړی، کله چې دروازه خلاصه کړل شي نو د هغې شا ته به دجال له خپلو اویا زرو یهودیانو سره موجود وي، له هر یو سره به منقش توره او په سرونو به یې تاج وي.

دجال چې کله حضرت عیسی علیه السلام ته وګوري هغه به فوراً د تیښتې لپاره ودریږي، حضرت عیسی علیه السلام به هغه له (باب لد) (دا په فلسطین کې یو مشهور ځای دی چیرته چې نن صبا یهودو فوځي اډه جوړه کړې) سره نږدې ونیسي، حضرت عیسی علیه السلام به هغه نیولی وي او په نیزې سره به یې قتل کړي، حضرت عیسی علیه السلام به خلکو ته د دجال په وینو سره نیزه ور ښکاره کړي.

بیا به الله تعالی یهودو ته شکست ورکړي او ذلت به یې یو په څلور شي، الله تعالی به په خپل مخلوق کې هر هغه شي ته د خبرو کولو قوت ورکړي د

کوم شا ته چې يهودي پټ وي پرته له غرقد څخه، ځکه چې د غرقد ونه د يهودو ملګرې ده [۱].

حضرت مجمع بن جاريه بيان کوي چې رسول الله ﷺ فرمايلي:

دجال به د مدينې لوري ته راشي او د هغې په بيروني برخه به قبضه وکړي او د مدينې خلک به د باندې له وتو څخه منع کوي. بيا به هغه په بيت المقدس کې د جبل ايلياء لوري ته راشي او هلته به د مسلمانانو يوه ډله محاصره کړي، مسلمانان به له سختو مشکلاتو سره مخ کړي. بيا به د مسلمانانو امراء ووايي: تاسو د کومې خبرې انتظار کوئ؟ پورته شئ له دغه شيطان سره جنګ وکړئ او د خپل رب لوري ته ورشئ. يا فاتحين شئ. هغوی به له دجال سره د جنګ کولو په باره کې مشوره کوي. کله چې صبا شي نو عيسی ابن مريم ؑ به هم تشريف راوړی وي. کله چې دوی له رکوع څخه سر راپورته کړي نو وبه وايي: الله تعالی مسيح دجال هلاک کړ او مسلمانان غالب شول. حضرت عيسی ؑ دجال قتل کړ او د هغه ملګرو ته يې شکست ورکړ، تر دې چې ونو، بوټو او ډبرو وئيل: دا زما تر شا يو يهودي پټ دی راشئ دا قتل کړئ [۲].

بيا به حضرت عيسی ؑ د يوه داسې قوم لوري ته ور شي کوم به چې الله تعالی له دجال څخه بچ ساتلی وي. هغه به د هغوی دخونه ښکل کړي او هغوی ته به په جنت کې د هغوی د درجاتو په باره کې ووايي. بيا به الله تعالی حضرت عيسی ؑ ته وحې وکړي چې ما خپل يو شمير داسې بنده ګان پيدا کړي د کومو د مقابلې کولو په همت کې چې څوک نشته. ته زما له بندګانو څخه خپل ملګري له ځان سره کړه او د کوه طور په لوري ولاړ

---

[۱] سنن ابن ماجه. الفتن. حديث: ۴۰۷۷. باسناد حسن.

[۲] صحيح مسلم. الفتن واشراط الساعة. حديث: ۲۹۳۷

شه، یعنې په دې وخت کې به الله تعالی یاجوج ماجوج را ولیږي، تفصیلي بیان یې مخته را روان دی.

## د دجال په مقابله کې تر ټولو ډیر سخت خلک

حضرت ابو هریرة رضي الله عنه وایي: کله چې ما له نبي کریم ﷺ څخه د بنو تمیمو په باره کې دری خبرې واوریدلې نو زه له هغوی سره ډیر محبت لرم، ما له رسول الله ﷺ څخه اوریدلي چې فرمایل یې:

هغوی زما په امت کې د دجال په مقابل کې تر ټولو ډیر سخت دي، د هغه لوري ته د صدقې مال راوړل شو نو نبي کریم ﷺ وفرمایل: دا زما د قوم صدقه ده، د بنو تمیم یوه مینځه له حضرت عائشة رضی الله عنها سره وه، نبي کریم ﷺ وویل: دا ازاده کړه، دا د اسماعیل له اولادې څخه ده (۱).

یوه سړي د نبي کریم ﷺ په موجودیت کې د بنو تمیمو په باره کې نا مناسبه خبره وکړه نو نبي کریم ﷺ وفرمایل:

﴿لاتقل لبنی تمیم الا خیرا، فانهم اطول الناس رماحا علی الدجال﴾ (۲).

ژباړه:

د بنو تمیمو په باره کې ښه خبره کوه، د دجال په مقابله کې د هغوی نیزې تر ټولو اوږدې دي.

## له خروج دجال څخه انکار کوونکي

په پخوانی زمانه کې د خروج دجال له انکار کوونکو ډلو (معتزله او جهمیه) سره سره په نویو خلکو کې له دجال څخه انکار کوونکي په لاندې ډول دي:

---

(۱) صحیح البخاري، العتق، حدیث: ۲۵۴۳. وصحیح مسلم، فضائل الصحابة، حدیث: ۲۵۲۵.

(۲) مسند احمد: ۴ . وقال الهیثمي في مجمع الزوائد: رجاله رجال الصحیحین.

## شیخ محمد عبده (۱)

دی وایي: د دجال هیڅ حقیقت نشته، دا یواځې خرافات، چل او فریب دی (۲).

## محمد فهیم ابو عیبه (۳)

ده د کتاب الملاحم په (۱/ ۱۱۸- ۱۱۹) کې د دجال په احادیثو باندې د تبصرې کولو په وخت کې ویلي: له دې څخه مراد د شر او فساد خپرول دي.
ځینو ویلي: دجال به ظاهر شي، مګر له هغه سره فتنې، جنت او دوزخ وغیره نشته، په دې خلکو کې علامه رشید رضا (۴) هم شامل دی، دی د علم او فضل څښتن دی مګر په دې مسئله کې غلط شوی، د قیامت په نښانو کې له یوه شي څخه هم انکار کول ډیره سخته غلطي ده.
حضرت عبد الله بن عباس رضي الله عنه فرمايي:

---

۱- د هغه نوم محمد عبده بن حسن خیر الله آل ترکمانی دی، دا په خپل وخت کې د مصر لوی مفتي وو، هغه په سنه (۱۹۰۵ عیسوي) کې په اسکندریه کې وفات شوی او په قاهره کې دفن شوی، د زیات تفصیل لپاره د الاعلام للزرکلی: ۲/ ۲۵۲ مخ وګورئ.
۲- د ده دا قول صاحب تفسیر المنار په (۳/ ۳۱۷) باندې را نقل کړی.
۳- دا د علامه ابن کثیر رحمه الله په زمانه کې د مشهور کتاب (النهایة في الفتن والملاحم) محقق دی.
۴- نوم او نسب یې داسې دی، محمد رشید بن علی رضا بن محمد شمس الدین بن محمد بهاؤ الدین بن منلا علی خلیفه قلمونی بغدادي حسیني، دا د شام د طرابلس سیمې په قلمون کې پیدا شوی، ابتدائي زده کړې یې په قلمون او طرابلس کې کړې دي، بیا په سنه (۱۳۱۵ هجري) کې مصر ته ولاړ او له شیخ محمد عبده سره یوځای شو او د هغه شاګرد شو، یوه ورځ په موټر کې له سویس څخه قاهرې ته راتلو چې د سفر په دوران کې مړ شو. د هغه له مشهورو علمي خدماتو څخه (مجله المنار) ده کومه چې په (۳۴) جلدونو شایع شوې، له دې پرته په (۱۲) جلدونو کې د قرآن کریم یو تفسیر (تفسیر المنار) هم دی کوم یې چې مکمل نکړ، د زیات تفصیل لپاره وګورئ (الاعلام للزرکلی: ۲/ ۱۲۲) د مسیح دجال په باره کې د هغه خبره د (تفسیر المنار) په: ۹/ ۴۹۰، کې موجوده ده.

حضرت عمر بن الخطاب ﷺ یو ځلې په خطبه کې د الله تعالی له حمد او ثناء ویلو وروسته وویل:

خبر دار! له تاسو وروسته یو شمیر داسې خلک راتلونکي دي کوم به چې له رجم، دجال، شفاعت او د قبر له عذاب څخه انکار کوي. هغه به د دې خبرې انتظار هم کوي چې الله تعالی به یو قوم له جهنم څخه را وباسي او جنت ته به یې داخل کړي.

له رجم به انکار کوي: یعنې د محسن زاني (چې ښځه یې وي) او د محسنې زانیه (چې میړه یې وي) په کاڼو (ډبرو) باندې د سنګاریدو له شرعي حکم څخه به انکار کوي.

او د خلکو له جهنم څخه له را ایستلو څخه به انکار کوي، یعنې د هغو موحدینو په حق کې له شفاعت څخه به انکار کوي کومو ته چې الله تعالی مناسبه سزا ورکړې او بیا یې له جهنم څخه را وباسي.

## د دجال متعلق اخیري پنځه مسئلې

(۱) حضرت ابو سعید خدري ﷺ بیان کوي چې رسول الله ﷺ فرمایلي:

﴿ ألا أخبركم بما هو أخوف عليكم من المسيح الدجال؟ قال: قلنا: بلى، فقال: الشرك الخفي، ان يقوم الرجل يصلى فيزين صلاته لما يرى من نظر رجل﴾ ([1]).

ژباړه: آیا زه تاسو ته یوه داسې خبره بیان نکړم د کومې چې ما ته د ستاسو په باره کې له دجال څخه هم زیاته ویره ده؟ هغه شرک خفي دی، یعنې چې یو انسان د لمانځه لپاره ودریږي او بل څوک دی د لمانځه په کولو وویني نو دی د لیدونکي لپاره خپل لمونځ په ډیرې ښې طریقې سره اداء کول شروع کړي.

[1] - مسند احمد :۳/ ۳۰، وسنن ابن ماجه، الزهد، حدیث: ۴۲۰۴، وحسنه الالبانی في صحیح الترغیب والترهیب، حدیث: ۲۷.

ریا کاري یو ډیر خطرناک شی دی، ریا کاري دا ده چې یو انسان کوم نیک کار په دې ارادې سره کوي چې خلک د دغه کار له امله بیا د ده صفت وکړي، دا شرک خفي دی او د عملونو تباه کوونکی شی دی، د قیامت په ورځ به ریا کارو ته وویل شي: د هغو خلکو خوا ته ور شی د کومو لپاره مو چې په دنیا کې اعمال تر سره کول، وګورئ آیا له هغو سره د ستاسو لپاره کومه جزا شته؟.

(۲) حضرت ابو ذر رضی الله عنه بیان کوي چې رسول الله ﷺ فرمایلي:

﴿غیرالدجال اخوف علی امتی من الدجال الائمة المضلون﴾ ([1]).

ژباړه:

د دجال پر فتنې بر سیره زما چې په خپل امت باندې کومه ویره ده هغه ګمراه کوونکي پیشویان دي.

د ګمراهي خپروونکي ائمه او قادین د امت لپاره د یوې غټې خطرې حیثیت لري، کله چې د ټولنې لوی او مؤثر خلک ګمراه شي نو د هغوی ماتحت خلک هم یقیناً په ګمراهي کې مبتلا کیږي، ګمراه کوونکي مشران کله له دنیوي امورو سره تعلق لرونکي وي لکه: بادشاه، امراء، وزیران او کله یې تعلق له دیني امورو سره وي لکه: علماء، واعظین او دین ته را دعوتوونکي خلک، هر کله چې په خلکو باندې ګمراه کوونکي مشران مسلط شي نو هغه ټول تباه او برباد کړی شي.

(۳) حضرت عمران بن حصین رضی الله عنه بیان کوي چې رسول الله ﷺ فرمایلي:

﴿لاتزال طائفة من امتی یقاتلون علی الحق ظاهرین علی من ناوءهم حتی یقاتل آخرهم المسیح الدجال﴾ ([1]).

[1] مسند احمد: ۵/ ۱۴۵، وسلسلة الاحادیث الصحیحة: ۴/ ۲۲۴، حدیث: ۱۹۸۹.

ژباړه : زما د امت يوه ډله به هميشه د حق په خاطر له مخالفينو سره جنګ کوي او پر هغوی به بر لاسي کيږي، تر دې چې د دوی آخيرنی سړی به له مسيح دجال سره جنګ وکړي.

له دې حديث څخه معلوميږي چې په دغه امت کې د جهاد تحريک يو مسلسل تحريک دی، د دغه تحريک د ابتدا او انتها خلک به له يوه بل سره تعلق لري، جهاد کله هم نه ختميږي تر دې چې د امت آخيرنی سړی به له دجال سره جنګ وکړي.

(۴) په فتنو کې ثابت قدمه اوسيدل د شريعت يو بنيادي اصل دی، همدا وجه ده چې د خدای تعالی ﷻ رسول ﷺ د دجال فتنې ذکر کوي او فرمايي:

﴿يا عباد الله ! فاثبتوا﴾

د الله بنده ګانو ! ثابت قدم اوسی.

دا سوچ هم پکار دی چې د فتنو په باره کې راغلي حديثونه مونږ د مايوسي او عدم خود اعتمادي ښکار نکړي، بلکه مونږ ته په ايمان کې په ثابت قدمي کې د زياتوالي راوستل پکار دي.

(۵) د دجال له حديث څخه دا هم واضحه کيږي چې په آخره زمانه کې به جنګ سفيد په تورو سره وي، له سپينو اسلحو څخه غيشي او آسونه مراد دي [2].

---

[1] - مسند احمد : ۴/ ۴۳۷ . و سنن ابي داؤد . الجهاد . حديث : ۲۴۸۴ . وصححه الحاکم ووافقه الذهبي.

[2] - د دې بيان په علامه نمبر : ۱۰۹ کې تير شو.

# د حضرت عیسی ﷺ نزول

حضرت عیسی ﷺ د الله تعالی له اوالعزم او مقربو انبیاء کرامو او رسولانو څخه یو نبي او رسول دی، الله تعالی په دې خاصیت سره نازولی چې له پلار پرته یواځې له مور څخه یې پیدا کړی، د هغه والده ماجده حضرت سیده بي بي مریم علیها السلام د خپلې نیکۍ او زیات عبادت له امله یو ممتاز حیثیت لري.

الله تعالی جل جلاله فرمايي:

﴿ كُلَّمَا دَخَلَ عَلَيْهَا زَكَرِيَّا الْمِحْرَابَ وَجَدَ عِنْدَهَا رِزْقًا ۖ قَالَ يَا مَرْيَمُ أَنَّىٰ لَكِ هَٰذَا ۖ قَالَتْ هُوَ مِنْ عِنْدِ اللَّهِ ۖ إِنَّ اللَّهَ يَرْزُقُ مَنْ يَشَاءُ بِغَيْرِ حِسَابٍ ﴾ (۱).

ژباړه:

هر کله چې ننوت دیته زکریا په محراب (په عبادتخانه) کې نو موندل به یې له دې (مریمې) سره څه روزي (یعنې میوې د ژمي په اوړي او میوې د اوړي په ژمي کې) وویل زکریا اې مریمې! له کومې راغلې ده تا ته دا میوه؟ وویل مریمې زکریا ته چې دا روزي له طرف د الله ده؛ بیشکه چې الله روزي ورکوي هغه چا ته چې اراده وفرمايي (د روزي ورکولو یې ډیره پریمانه) (بیحسابه).

---

۱- آل عمران. آیة: ۳۷.

حضرت زکریا ﷤ د بي بي مریم علیهاالسلام لپاره په مسجد کې یوه عمده برخه خاص کړه، کومې ته چې له بي بي مریم علیهاالسلام پرته بل چا ته د ننوتو اجازه نه وه، مریم علیهاالسلام شپه ورځ په دې حجره کې په عبادت کې مصروفه وه، کله به هم چې د خدای تعالی نبي زکریا ﷤ د عبادت دې ځای ته ورغی نو له بي بي مریم علیهاالسلام سره به بې موسمه میوې وې، هغه ورته وویل (اَنّٰى لَكِ هٰذَا) اې مریم! دا بې موسمه میوې له کومه راځي؟ سیده بي بي مریم علیهاالسلام په ځواب کې وویل (هُوَ مِنْ عِنْدِ اللّٰهِ) دا د الله له لوري ځخه دي (اِنَّ اللّٰهَ یَرْزُقُ مَنْ یَّشَآءُ بِغَیْرِ حِسَابٍ) الله تعالی ﷻ چې چا ته وغواړي بې حسابه رزق ورکوي.

یو ځل داسې وشول چې فرښتې راغلې او بي بي مریم علیهاالسلام ته یې خوشخبري ورکړه، الله تعالی ﷻ فرمایي:

﴿وَاِذْ قَالَتِ الْمَلٰٓئِكَةُ یٰمَرْیَمُ اِنَّ اللّٰهَ اصْطَفٰكِ وَطَهَّرَكِ وَاصْطَفٰكِ عَلٰى نِسَآءِ الْعٰلَمِیْنَ ﴿٤٢﴾ یٰمَرْیَمُ اقْنُتِیْ لِرَبِّكِ وَاسْجُدِیْ وَارْكَعِیْ مَعَ الرّٰكِعِیْنَ ﴿٤٣﴾﴾ [1]

ژباړه:

او یاد کړه اې محمده! هغه وخت چې وویل فرښتو، یعني (جبریل) اې مریم! بیشکه چې الله غوره کړې یې ته (په کرامت او عبادت) او پاکه کړې یې ته (له بدو اقوالو، افعالو او احوالو ځخه) او غوره کړې یې ته په ګردو ښځو د عالمیانو (یعني پر ښځو د زمانې خپلې)، اې مریمې فرمان برداره شه (ولاړه شه بندګي کوه) لپاره د رب خپل؛ او سجده کوه! او رکوع کوه! له نورو رکوع کوونکو سره (له نورو لمونځ کوونکو سره په جماعت لمونځ کوه).

[1] - آل عمران. آیة: ۴۲ - ۴۳.

الله تعالی بیان کړه چې فرښتو مریم علیها السلام ته د دې خبرې خوشخبري ورکړه چې الله تعالی دا وخت هغه د زمانې له ټولو ښځو څخه په اعلی مقام باندې فائزه کړې ده او یو هلک به یې پیدا کیږي کوم به چې نبي وي او دا خوشخبري یې ورکړې ده:

﴿وَيُكَلِّمُ النَّاسَ فِي الْمَهْدِ وَكَهْلًا وَّمِنَ الصّٰلِحِيْنَ ﴾ (١)

ژباړه: او خبرې به کوي له خلکو سره په مهد (د مور په غیږ یا په زانګو یا په طفولیت کې) او په کهولت (پوره عمر) کې او له صالحانو څخه به وي.

یعنې هغه به په کوچنیوالي کې د الله وحده لا شریک لوري ته خلک دعوتوي، همدا شان په لوی والي کې به هم خلک د الله تعالی د عبادت لوري ته را بولي، حضرت سیده مریم علیها السلام ته د ډیر عبادت، اطاعت او د کثرت سجود حکم شوی وو تر څو چې د عزت مستحقه جوړه شي او د دې لوی نعمت شکر اداء کړي، الله تعالی ترینه راضي شو، په هغې یې رحم وکړ او د هغې په والدینو یې هم رحم کړی.

حضرت انس رضي الله عنه بیان کوي چې رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمایلي:

﴿حسبك من نساء العالمين مريم ابنة عمران و خديجة بنت خويلد و فاطمة بنت محمد﴾ (٢).

ژباړه:

د ټولې دنیا په ښځو کې څلور ښځې بهترینې دي، (١) مریم بنت عمران (٢) آسیه زوجه فرعون (٣) خدیجه بنت خویلدا (۴) فاطمه بنت محمد صلی الله علیه وسلم، کله چې فرښتو حضرت مریم علیها السلام ته خوشخبري ورکړه چې الله تعالی غوره

---

١ آل عمران، آیة: ۴۶.

٢ جامع الترمذي، المناقب، حدیث: ۳۸۷۸، وسلسلة الاحادیث الصحیحة: ۴/ ۱۳، حدیث: ۱۵۰۸.

کړي او هغه به يو داسې اولاد ورکړي کوم به چې د عزت څښتن، پاک، معزز او محترم نبي وي، همدا شان به يې په معجزاتو سره مرسته او تاييد هم وکړي، د دې خبرې په اوريدو مريم ډيره په تعجب کې شوه او هغه دا چې له پلاره پرته څنګه اولاد پيدا کيدلای شي. د هغه ميړه نشته نو اولاد به يې له کومه شي، فرښتو هغې ته وويل : الله تعالی په هر څه قادر دی، هغه چې کله کوم کار ته اراده وکړي نو فقط چې دومره وو ايي چې شه نو هغه به کيږي.

مريم عليها السلام دې ته ځان تسليم کړ، د الله تعالی لوري ته متوجه شوه او د هغه د حکم منلو ته سپر شوه، هغې ته اندازه لګيده چې په دې کار کې به هغه له لوی ازماينښت سره مخامخ شي، خلک به د هغې په باره کې رنګا رنګ خبرې کوي، ځکه چې هغوی له حقيقت څخه نا خبره دي او پرته له سوچ او فکر څخه د هغوی نظر به يواځې په ظاهري حالاتو باندې وي، مريم عليها السلام به له مسجد او د خپل عبادت له ځای څخه يواځې په خپلو ماهواري ورځو کې د باندې وتله يا به هغه وخت وتله کله به چې له مسجد څخه د باندې د اوبو او غذا راوړو کوم ضرورت پيښ شو.

يوه ورځ هغه د داسې کوم ضرورت په بنياد له مسجد څخه ووتله، الله تعالی بيان کوي ﴿إِذِ انتَبَذَتْ﴾ کله چې په څنګ شوه (ولاړه) له کورنۍ خپلې هغه ځای ته چې د کور په شرقي ډډه کې ؤ، نو په عين همدې وخت کې الله تعالی د هغې لوري ته جبريل امين وليږه ﴿ فَتَمَثَّلَ لَهَا بَشَرًا سَوِيًّا﴾ نو ځان يې جوړ کړ دې ته سړی کامل، کله چې د مريم عليها السلام په هغه سترګې ولګيدې نو بې اختياره يې وويل ﴿إِنِّي أَعُوذُ بِالرَّحْمَٰنِ مِنكَ إِن كُنتَ تَقِيًّا﴾ بيشکه زه پناه غواړم په رحمن له تا نه که يې ته پرهيزګار (نو له ما څخه په ډډه شه) يعنې که ته له الله څخه ويره لرونکی او متقي انسان يې نو زه چې په څه ستا له شر څخه پناه غواړم، د هغه لحاظ وکړه او له دې ځای څخه ولاړ شه، فرښتې مريم عليها السلام مخاطب کړه او ورته وې ويل ﴿إِنَّمَا أَنَا

رَسُولُ رَبِّكِ لِأَهَبَ لَكِ غُلَامًا زَكِيًّا﴾ بیشکه همدا خبره ده چې زه را لیږل شوی د رب ستا یم د پاره د دې چې وبښم تا ته (په امر د رب ستا) یو هلک صالح (له ګناهونو پاک) یعنې ونه ویریږې : زه کوم بشر نه یم، بلکه د الله فرښته یم، زه الله ستا لوري ته را لیږلې یم تا ته د یوه پاک هلک درکولو ته راغلې یم ﴿قَالَتْ أَنَّىٰ يَكُونُ لِي غُلَامٌ﴾ وویل بي بي مریمعلیهاالسلام (له ډیره تعجبه) څرنګه به پیدا شي ما ته زوی؟ یعنې د زوی پیدا کولو چې کوم ظاهري اسباب دي هغه خو له ما سره نشته ﴿وَلَمْ يَمْسَسْنِي بَشَرٌ وَلَمْ أَكُ بَغِيًّا﴾ حال دا چې نه دی رسیدلی ما ته هیڅ بشر (په نکاح) او نه وم زه هیچیرې بد کاره، یعنې نه واده شوې یم او نه زه د کومې بې حیایي مرتکب یم ﴿قَالَ كَذَٰلِكِ قَالَ رَبُّكِ هُوَ عَلَيَّ هَيِّنٌ﴾ نو وویل جبریل مریمې ته کار همداسې دی لکه چې ته وایې، لیکن فرمایلي دي رب ستا دغه کار په ما باندې اسان دی، یعنې فرښتې د هغې د تعجب لیرې کولو لپاره وویل: دا د الله وعده ده چې له تا څخه یو هلک پیدا کوي﴿هُوَ عَلَيَّ هَيِّنٌ﴾ یعنې دغه کار د هغه لپاره ډیر اسان او معمولي دی، ځکه چې هغه په هر شي باندې قادر دی او فرمایي ﴿وَلِنَجْعَلَهُ آيَةً لِلنَّاسِ﴾ او چې وګرځوو مونږ دغه (هلک) لویه علامه دلیل (د کامل قدرت) د پاره د خلکو، یعنې د دغه ماشوم پیدایش په انواعو او اقسامو سره د مخلوق په پیدا کولو کې په خپل قدرت باندې یو دلیل جوړه وي.

الله عز وجل:

- آدم علیه السلام له سړي او ښځې پرته پیدا کړی.
- حوا علیهاالسلام یې له ښځې پرته یوازې له سړي پیدا کړې.
- عیسی علیه السلام یې پرته له سړي له ښځې پیدا کړی.
- پاتې نور ټول انسانان یې له سړي او ښځې دواړو څخه پیدا کړي.

الله تعالی ﷻ فرمايي:

﴿وَمَرْيَمَ ابْنَتَ عِمْرَانَ الَّتِيٓ اَحْصَنَتْ فَرْجَهَا فَنَفَخْنَا فِيْهِ مِنْ رُّوْحِنَا﴾ ([1]).

ژباړه :او په مثل بيان کړی دی الله د مريمې لور د عمران هغه چې ساتلی يې وه ځای د شهوت خپل (له نکاح او سفاح څخه) نو ومو پوکل په ګريوان د هغې کې له روح خپل څخه.

يعنې جبريل امين ﷺ د مريمې ﷺ په ګريوان کې پوکړل په کوم سره چې هغه فورا حامله شوه، الله تعالی ﷻ فرمايي:

﴿فَنَفَخْنَا فِيْهِ مِنْ رُّوْحِنَا﴾

ژباړه :

نو ومو پوکل په ګريوان د هغې کې له روح خپل څخه.

مخته الله تعالی ﷻ فرمايي:

﴿فَحَمَلَتْهُ فَانْتَبَذَتْ بِهٖ مَكَانًا قَصِيًّا ۝٢٢﴾ ([2]).

ژباړه :

پس حامله شوه مريمه په دغه (عيسی) سره نو په څنګ شوه سره له دغه عيسی يو ځای ليرې ته.

دا ځکه چې سيده مريم ﷺ چې کله حامله شوه نو سخته پريشانه شوه، هغې ته علم وو چې خلک به د هغې په باره کې د بهتان خبرې کوي، کله چې په هغې باندې د حمل نښانې ظاهرې شوې نو هغه له خلکو پټه شوه او له هغوی څخه کناره شوه او په يوه ليرې ځای کې يې اوسيدل غوره کړل.

---

[1] التحريم، آية: ۱۲.

[2] مريم، آية: ۲۲.

## د عیسی ﷺ پیدایښت

الله تعالی ﷻ فرمايي: ﴿فَأَجَآءَهَا الْمَخَاضُ إِلَىٰ جِذْعِ النَّخْلَةِ قَالَتْ يَٰلَيْتَنِي مِتُّ قَبْلَ هَٰذَا وَكُنتُ نَسْيًا مَّنسِيًّا ﴿٢٣﴾﴾ (۱).

ژباړه: پس راوسته مریمه درد د زیږېدلو بیخ د ونې د خرما ته (دتکیې لپاره کله چې عیسی متولد شو) وویل مریمې له ډیرې حیا کاشکې! زه مړه وای زه پخوا له دې او وای زه هیره شوې بیخي له زړو وتلې.

یعنې د ولادت د سخت درد له امله هغه په بیت اللحم کې د کجورې د یوې ونې خوا ته راغله، په دې وخت بي بي مریم علیها السلام مذکوره الفاظ ویل، د دې لپاره چې هغې ته معلومه وه چې خلک به د هغې خبره رښتیا نه بولي بلکه هغه به دروغژنه بولي، بلکه کله چې هغوی د مریم علیها السلام په لاسونو کې نوی پیدا شوی ووینې نو په هغې به د بدکارې الزام ولګوي، حالانکه هغه له دوی سره په نږدې مسجد کې اوسیدونکې زاهده او عابده ښځه ده او د هغې تعلق د نبوت او دیانتدار خاندان سره ده. له همدې امله هغه دومره غمجنه وه چې تمنا یې وکړه چې اې کاش! هغه دې حالت ته له رسیدا د مخه مړه شوی وای یا دا پیدا شوی نه وای ﴿فَنَادَاهَا مِن تَحْتِهَا﴾ نو هغې ته د لاندې آواز وشو، یعنې فرښتې له لاندې ځخه آواز وکړ ﴿أَلَّا تَحْزَنِي قَدْ جَعَلَ رَبُّكِ تَحْتَكِ سَرِيًّا ﴿٢٤﴾ وَهُزِّي إِلَيْكِ بِجِذْعِ النَّخْلَةِ تُسَاقِطْ عَلَيْكِ رُطَبًا جَنِيًّا ﴿٢٥﴾ فَكُلِي وَاشْرَبِي وَقَرِّي عَيْنًا فَإِمَّا تَرَيِنَّ مِنَ الْبَشَرِ أَحَدًا فَقُولِي إِنِّي نَذَرْتُ لِلرَّحْمَٰنِ صَوْمًا فَلَنْ أُكَلِّمَ الْيَوْمَ إِنسِيًّا ﴿٢٦﴾﴾ (۲).

---

۱ مریم، آیة: ۲۳.
۲ مریم، آیة: ۲۵، ۲۶.

ژباړه : او وخوځوه (وښنده) خپل ځانته بیخ د خرما چې را توی کاندي پر تا خرما پخې تازه، پس خوره دا (خرما) او څښه دا (اوبه) او رڼې (یخې) کړه سترګې خپلې (په عیسی او خوشحاله شه) پس که ولید تا له خلکو څخه یو څوک (چې د عیسی د تولد پوښتنه یې در څخه کوله) نو ووایه بیشکه ما نذر کړی مې ده په ځان رحمن ته روژه (له خبرو) پس له سره به خبرې ونکړم زه نن ورځ له هیڅ یوه انسان سره.

یعنې وخوره، وڅښه، بیا خپل ماشوم پورته کړه او د قوم لوري ته ولاړه شه، که چیرته تا ته کوم کس په نظر درشي نو هغه ته په اشاره سره وایه : ما نن دَ الله لپاره روژه نیولې، لهذا زه نن له هیچا سره خبرې نه کوم ﴿ فَأَتَتْ بِهِۦ قَوْمَهَا تَحْمِلُهُۥ ۖ قَالُوا۟ يَٰمَرْيَمُ لَقَدْ جِئْتِ شَيْـًٔا فَرِيًّا ﴿٢٧﴾ يَٰٓأُخْتَ هَٰرُونَ مَا كَانَ أَبُوكِ ٱمْرَأَ سَوْءٍ وَمَا كَانَتْ أُمُّكِ بَغِيًّا ﴿٢٨﴾ ﴾ ([1]).

ژباړه :

پس راغله (مریمه) سره له دغه (عیسی) قوم خپل ته چې اخیستی یې وو هغه عیسی په غیږ کې کله چې قوم یې ولیده نو وویل (جهودانو) اې مریمې ! په تحقیق را وړی دی (او کړی دی) تا یو عجیب کار مخالف له عادت څخه، اې خورې د هارون ! نه ؤ پلار ستا سړی د بدي او نه وه مور ستا بد کاره (نو دا ته ولې داسې شوې)

د (الفریه) معنا ده کوم ډیر بیکاره کار

[1] - مریم. آیة: ٢٧ – ٢٨.

## عیسی ﷺ په غیږ کې خبرې کولې

کله چې مریم علیها السلام ډیره ارزوده شوه او د قوم خبرو ډیر شدت اختیار کړ نو الله تعالی وویل ﴿فَأَشَارَتْ إِلَيْهِ﴾ نو اشاره وکړه (مریمې) هغه ته (چې له دغه عیسی سره وغږیږئ) یعنې له ما څخه پوښتنه مه کوی بلکه له دغه ماشوم څخه ویوښتی، نو هغوی وویل ﴿قَالُوا كَيْفَ نُكَلِّمُ مَنْ كَانَ فِي الْمَهْدِ صَبِيًّا﴾ څرنګه خبرې وکړو مونږ له هغه چا سره چې دی هغه په زانګو (یا غیږ) کې وړوکی (تی رودونکی) یعنې تا ځواب دغه ماشوم ته وسپاره کوم چې په غیږ کې شیدې خوري او هیڅ نه پیژني.

په دې وخت کې الله تعالی عیسی ﷺ ته د خبرو کولو قوت ور کړ:

﴿قَالَ إِنِّي عَبْدُ اللَّهِ آتَانِيَ الْكِتَابَ وَجَعَلَنِي نَبِيًّا ۝ وَجَعَلَنِي مُبَارَكًا أَيْنَ مَا كُنْتُ وَأَوْصَانِي بِالصَّلَاةِ وَالزَّكَاةِ مَا دُمْتُ حَيًّا ۝ وَبَرًّا بِوَالِدَتِي وَلَمْ يَجْعَلْنِي جَبَّارًا شَقِيًّا ۝ وَالسَّلَامُ عَلَيَّ يَوْمَ وُلِدْتُ وَيَوْمَ أَمُوتُ وَيَوْمَ أُبْعَثُ حَيًّا ۝﴾ ([1]).

ژباړه:

وویل عیسی چې بیشکه زه بنده د الله یم: راکړې یې دی ما ته کتاب او ګرځولی یې یم نبي او ګرځولی یې یم برکتي په هر ځای کې چې یم او تاکید یې کړی دی ما ته په لمانځه سره او په زکاة سره تر څو چې زه یم ژوندی او ګرځولی یم الله نیکي کوونکی له مور خپلې سره او نه یې یم ګرځولی سر کشه او بد بخته او (وویل عیسی) سلام دی په ما په هغه ورځ چې زیږولی شوی یم (د شیطان نه مس کولو او نورو بدیو او خرافاتو نه) او

---

[1] مریم. آیة: ۲۹ – تا ۳۳

په هغه ورځ چې مرم به (د ځنکندن او د قبر له عذاب څخه) او په هغه ورځ چې پورته به کړی شم ژوندی (د قیامت له عذاب څخه).

تر ټولو د مخه چې د عیسی ﷺ له خولې کومه خبره ووته هغه دا وه ﴿إِنِّي عَبْدُ اللَّهِ﴾ زه د الله بنده یم: او دا یې نه دي ویلي چې زه د الله زوی یم، ځکه چې الله یواځې دی؛ هغه لره هیڅ شریک نشته. نه هغه ځوک خپله ښځه جوړه کړې او نه یې ځوک زوی جوړ کړی. پاک دی هغه ذات کوم چې ټول مخلوق پیدا کړی او هر یوه ته یې راهنمائي کړې.

دا د عیسی اصل حقیقت دی. الله تعالی ﷻ فرمایي:

﴿ذٰلِكَ عِيسَى ابْنُ مَرْيَمَ ۚ قَوْلَ الْحَقِّ الَّذِي فِيهِ يَمْتَرُونَ ۝ مَا كَانَ لِلَّهِ أَنْ يَتَّخِذَ مِنْ وَلَدٍ ۖ سُبْحَانَهُ ۚ إِذَا قَضَىٰ أَمْرًا فَإِنَّمَا يَقُولُ لَهُ كُنْ فَيَكُونُ ۝﴾ (١).

ژباړه: دغه موصوف عیسی زوی د مریمې دی (الله د ده په شان کې ویلې ده) خبره حقه رښتیا هغه چې په دې کې سره جګړې کوي (خلق) نه ښایي الله ته دا چې ونیسي ولد (یو ځوک) پاکي ده ده ته (له نیولو د ولد نه)؛ هر کله چې حکم وکړي دی د یوه کار پس بیشکه همدا خبره ده چې وایي هغه ته (موجود شه) پس موجودیږي.

الله تعالی ﷻ فرمایي: ﴿إِنَّ مَثَلَ عِيسَىٰ عِنْدَ اللَّهِ كَمَثَلِ آدَمَ ۖ خَلَقَهُ مِنْ تُرَابٍ ثُمَّ قَالَ لَهُ كُنْ فَيَكُونُ ۝﴾ (٢).

ژباړه: بیشکه مثال (صفت) د عیسی په نزد د الله په شان د مثال (صفت) د آدم دی: چې (الله) جوړ کړ هغه (آدم) له خاورو څخه بیا یې وویل آدم ته (بشر شه)؛ پس بشر شو.

---

(١) مریم، آیة: ۳۴ – ۳۵.

(٢) آل عمران، آیة: ۵۹.

الله تعالی په عیسی ﷺ انعام کړی او فرمایي:

﴿ إِذْ قَالَ اللَّهُ يَا عِيسَى ابْنَ مَرْيَمَ اذْكُرْ نِعْمَتِي عَلَيْكَ وَعَلَىٰ وَالِدَتِكَ إِذْ أَيَّدتُّكَ بِرُوحِ الْقُدُسِ تُكَلِّمُ النَّاسَ فِي الْمَهْدِ وَكَهْلًا ۖ وَإِذْ عَلَّمْتُكَ الْكِتَابَ وَالْحِكْمَةَ وَالتَّوْرَاةَ وَالْإِنجِيلَ ۖ وَإِذْ تَخْلُقُ مِنَ الطِّينِ كَهَيْئَةِ الطَّيْرِ بِإِذْنِي فَتَنفُخُ فِيهَا فَتَكُونُ طَيْرًا بِإِذْنِي ۖ وَتُبْرِئُ الْأَكْمَهَ وَالْأَبْرَصَ بِإِذْنِي ۖ وَإِذْ تُخْرِجُ الْمَوْتَىٰ بِإِذْنِي ۖ وَإِذْ كَفَفْتُ بَنِي إِسْرَائِيلَ عَنكَ إِذْ جِئْتَهُم بِالْبَيِّنَاتِ فَقَالَ الَّذِينَ كَفَرُوا مِنْهُمْ إِنْ هَٰذَا إِلَّا سِحْرٌ مُّبِينٌ ﴿١١٠﴾ وَإِذْ أَوْحَيْتُ إِلَى الْحَوَارِيِّينَ أَنْ آمِنُوا بِي وَبِرَسُولِي قَالُوا آمَنَّا وَاشْهَدْ بِأَنَّنَا مُسْلِمُونَ ﴿١١١﴾ ﴾ (١).

ژباړه:

(یاد کړئ) هغه وخت چې وبه فرمايي الله اې عیسی زوی د مریمې یاد کړه احسان زما پر تا او په مور ستا (چې غوره کړې مې وه پر ښځو د زمانې خپلې) کله چې قوت مې درکړی ؤ تا ته (اې عیسی) په روح القدس (جبریل یا انجیل یا اسم اعظم یا عیسوي روح سره) چې خبرې به دې کولې له خلکو سره په مهد (د مور په غیږ یا په زانګو یا په طفولیت کې) او په حال د کهولت (پوره عمر) کې او کله چې، مې در زده کړ تا ته کتاب (لیکل) او حکمت د (شرعي احکامو او ژورو خبرو علم) او تورات او انجیل او کله چې جوړه به دې کړله له خټو څیني په مثل د صورت د مارغه په اذن (حکم) زما پس پوکول به دې په هغه صورت کې پس شو به هغه (هیئت) مارغه په اذن (حکم) زما او روغول به دې مورزادي ړوند او برګ (پیس) په اذن (حکم) زما

---

١ المائدة. آیة: ١١٠ – ١١١.

او کله چې را ایستل به دې مړي (له قبرونو څخه او ژوندي کول به دې) په اذن (حکم) زما او کله چې مې بند کړ (شر) د بني اسرائیلو له تا نه (اې عیسی چې ستا د قتل اختیار یې کړی ؤ) کله چې راوړي ؤ تا دوی ته واضح دلایل نو وویل هغو کسانو چې کافران شوي وو له دوی څینې چې نه دي دغه معجزې ستا مګر سحر دی ښکاره (هر چا ته) او کله چې په زړونو کې مې ور واچول (او امر مې وکړ د عیسی په ژبه قوم د عیسی) حواریونو ته چې ایمان راوړئ تاسې په ما (چې ستاسې الله یم) او په رسول زما چې (عیسی دی) نو وویل حواریونو چې ایمان مو راوړی دی (په الله او عیسی) او شاهد اوسه (اې عیسی) په دې چې بیشکه مونږ مسلمانانو یو (غاړه ایښودونکي حکم د الله ته).

## عیسی ﷺ د حضرت محمد ﷺ په باره کې زیری ورکړی

الله تعالی ﷻ فرمايي:

﴿ وَإِذْ قَالَ عِيسَى ابْنُ مَرْيَمَ يَٰبَنِيٓ إِسْرَٰٓءِيلَ إِنِّي رَسُولُ اللَّهِ إِلَيْكُم مُّصَدِّقًا لِّمَا بَيْنَ يَدَيَّ مِنَ التَّوْرَىٰةِ وَمُبَشِّرًۢا بِرَسُولٍ يَأْتِي مِنۢ بَعْدِي اسْمُهُۥٓ أَحْمَدُ ۖ فَلَمَّا جَآءَهُم بِالْبَيِّنَٰتِ قَالُوا هَٰذَا سِحْرٌ مُّبِينٌ ﴿٦﴾ ﴾ (١).

ژباړه:

او یاد کړه اې محمد! هغه وخت کله چې وویل عیسی زوی د مریمې داسې چې اې (بني اسرائیلو) (اولاده د یعقوب) بیشکه زه رسول لیږلی شوی د الله یم تاسې ته حال دا چې یم تصدیق کوونکی د هغه کتاب چې وړاندې څما دی له تورات څخه او زیری کوونکی یم په هغه رسول سره چې را به شي وروسته له ما څخه چې نوم د هغه احمد دی (بیا وایي الله) کله چې راغی

---

(١) الصف، آیة: ٦.

هغه رسول دوی ته په ښکاره ؤ معجزو سره وویل (بنی اسرائیلو) دا (قرآن) سحر کوډې دي ښکاره.

حضرت عیسی ﷺ د بني اسرائیلو په انبیاؤ کې اخیري نبي دی، ټولو انبیاؤ په خپل خپل قوم باندې د اتمام حجت لپاره او د الله له لوري څخه د انعام په توګه هغوی ته د خاتم البیین محمد ﷺ زیری ورکړی، د هغه نام او صفات یې قوم ته ور ښودلي، کله یې هم چې وویني نو پیژني به یې، نو سمدستي به ایمان راوړي او د هغه فرمان برداري به کوي.

الله تعالی ﷻ فرمایي:

﴿ اَلَّذِیۡنَ یَتَّبِعُوۡنَ الرَّسُوۡلَ النَّبِیَّ الۡاُمِّیَّ الَّذِیۡ یَجِدُوۡنَهٗ مَکۡتُوۡبًا عِنۡدَهُمۡ فِی التَّوۡرٰىةِ وَ الۡاِنۡجِیۡلِ ۫ یَاۡمُرُهُمۡ بِالۡمَعۡرُوۡفِ وَ یَنۡهٰهُمۡ عَنِ الۡمُنۡکَرِ وَ یُحِلُّ لَهُمُ الطَّیِّبٰتِ وَ یُحَرِّمُ عَلَیۡهِمُ الۡخَبٰٓئِثَ وَ یَضَعُ عَنۡهُمۡ اِصۡرَهُمۡ وَ الۡاَغۡلٰلَ الَّتِیۡ کَانَتۡ عَلَیۡهِمۡ ؕ فَالَّذِیۡنَ اٰمَنُوۡا بِهٖ وَ عَزَّرُوۡهُ وَ نَصَرُوۡهُ وَ اتَّبَعُوا النُّوۡرَ الَّذِیۡۤ اُنۡزِلَ مَعَهٗۤ ۙ اُولٰٓئِکَ هُمُ الۡمُفۡلِحُوۡنَ ﴿۱۵۷﴾ ﴾ ([1]).

ژباړه:

دا متقیان مؤمنان چې مقرر دي دوی ته رحمت هغه کسان دي چې متابعت کوي دوی د (دین) د هغه رسول چې نبي امي دی؛ هغه رسول چې مومي دوی (نوم او صفت) د هغه لیکلی شوی په نزد د دوی په تورات او په انجیل کې (هغه رسول چې حکم) امر کوي دوی ته په معروف (نیکي) سره او منع کوي دوی له منکر (بدي) څخه او حلالوي دوی ته ګرد طیبات (پاک شیونه چې حرام کړی شوي وو پر دوی باندې) او حراموي پر دوی باندې خبیث (پلیت) شیان او لیرې کوي له دوی څخه درانه بارونه د دوی او قیدونه د سختیو هغه چې وو پر دوی؛ پس هغه کسان چې ایمان یې راوړی دی په دغه (محمد) او عزت (تعظیم رفاقت) کوي د دغه (محمد) او مرسته

[1] الاعراف. آیة: ۱۵۷.

کوي له دغه (محمد) سره او متابعت کوي د هغه نور (رڼا) چې نازله کړی شوې ده سره له (متابعته) د دغه (محمد) نو دغه ستایل شوي کسان همدوی دي په مراد رسیدلي.

یوه ورځ د رسول الله ﷺ صحابه کرامو ﷺ عرض وکړ: مونږ ته د خپل ځان په باره کې یو څه ووایه؟ رسول الله ﷺ وویل:

﴿دعوة ابی ابراهیم وبشارت عیسی بی، ورؤیاء امتی التی راءت) ([1]).

ژباړه:

زه د خپل پلار ابراهیم ﷺ د دعا نتیجه یم، زه د عیسی ﷺ زیری او د خپلې مور خوب یم.

## د حضرت عیسی ﷺ اسمان ته پورته کیدل

الله تعالی ﷻ فرمایي:

﴿وَمَكَرُوْا وَمَكَرَ اللّٰهُ ۗ وَاللّٰهُ خَيْرُ الْمٰكِرِيْنَ ۝ اِذْ قَالَ اللّٰهُ يٰعِيْسٰٓى اِنِّىْ مُتَوَفِّيْكَ وَرَافِعُكَ اِلَيَّ وَمُطَهِّرُكَ مِنَ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا وَجَاعِلُ الَّذِيْنَ اتَّبَعُوْكَ فَوْقَ الَّذِيْنَ كَفَرُوْٓا اِلٰى يَوْمِ الْقِيٰمَةِ ۚ﴾ ([2]).

ژباړه:

او مکر وکړ (کفارو) په (عیسی) باندې او مکر وکړ الله (له دوی سره چې سزا یې دوی ته ورکړه) او الله خیر (بهتر) د ماکرینو دی (چې مکاران په سزا رسوي) یاد کړه اې محمد ' هغه وخت چې وویل الله اې عیسی بیشکه زه اخیستونکی یم ستا (له زمکې) او پورته بیونکی یم ستا طرف زما ته او پاکونکی (لیرې کوونکی) یم ستا له هغو کسانو څخه چې کافران (منکران)

---

[1] - مسند احمد: ۴ / ۱۲۷.

[2] - آل عمران. آیة: ۵۴ - ۵۵.

شوي دي او ګرځوونکی یم د هغو کسانو چې متابعت یې کړی دی ستا د پاسه د هغو کسانو چې کافران (منکران) شوي دي تر ورځې د قیامته پورې.
الله تعالی جل جلاله فرمایي:

﴿وَّقَوْلِهِمْ اِنَّا قَتَلْنَا الْمَسِيْحَ عِيْسَى ابْنَ مَرْيَمَ رَسُوْلَ اللّٰهِ ۚ وَمَا قَتَلُوْهُ وَمَا صَلَبُوْهُ وَلٰكِنْ شُبِّهَ لَهُمْ ۗ وَاِنَّ الَّذِيْنَ اخْتَلَفُوْا فِيْهِ لَفِيْ شَكٍّ مِّنْهُ ۗ مَا لَهُمْ بِهٖ مِنْ عِلْمٍ اِلَّا اتِّبَاعَ الظَّنِّ ۚ وَمَا قَتَلُوْهُ يَقِيْنًا ﴿١٥٧﴾ بَلْ رَّفَعَهُ اللّٰهُ اِلَيْهِ ۗ وَكَانَ اللّٰهُ عَزِيْزًا حَكِيْمًا ﴿١٥٨﴾ وَاِنْ مِّنْ اَهْلِ الْكِتٰبِ اِلَّا لَيُؤْمِنَنَّ بِهٖ قَبْلَ مَوْتِهٖ ۚ وَيَوْمَ الْقِيٰمَةِ يَكُوْنُ عَلَيْهِمْ شَهِيْدًا ﴿١٥٩﴾﴾ (١).

ژباړه:

او په سبب د ویلو د دوی (داسې چې) بیشکه وژلی دی مونږ مسیح عیسی زوی د مریمې رسول د الله (په ګمان خپل) حال دا چې نه ؤ وژلی دوی (عیسی) واقعاً) او نه پر دار کړی ؤ دغه (یقینا) لیکن مشتبه کړی شو (دغه وژلی شوی په دار وهلی شوی په عیسی سره) دوی ته؛ او بیشکه هغه کسان چې اختلاف کړی دی دوی په (حق د) عیسی کې خامخا په شک کې دي په (شان) د ده کې: نشته دوی ته په (شان) د ده کې هیڅ علم مګر تش متابعت د ګمان (خپل) او نه ؤ وژلی دوی عیسی (په وژلو) یقیني سره، بلکه پورته کړی ؤ دی الله طرف خپل ته؛ او دی الله ښه قوي غالب (د احکامو په انفاذ) ښه حکمت والا (چې هر کار په تدبیر او مصلحت کوي) او نشته هیڅوک له اهل د کتابه مګر قسم دی هرو مرو چې ایمان به راوړي دوی خامخا (په وخت د نزعې خپلې یا په وخت د نزول د عیسی) پر دغه (عیسی) پخوا له

---

١- النساء، آیة: ۱۵۷ - ۱۵۸ - ۱۵۹.

مرګه د ده څخه او په ورځ د قيامت کې به وي (عيسی) پر دوی باندې شاهد (چې جهودانو ونه منلم او نصرانيانو ((ابن الله)) وبللم).

الله تعالی په دې آيتونو کې د دې خبرې خبر ورکوي چې هغه په عيسی ﷺ خوب راوست او هغه يې خپل لوري ته پورته کړ او هغه يې د هغو يهودو له ايذا څخه بچ کړ کومو چې د دغې زمانې د يوه کافر بادشاه د غمازي کولو کوشش کاوه، بادشاه د حضرت عيسی ﷺ د وژلو او د هغه په دار باندې د ځړولو حکم کړی وو، د همدې لپاره يې هغه د بيت المقدس په يوه کور کې بندي کړی وو. کله چې هغه خلک په دغې بدې ارادې سره عيسی ﷺ ته ورسيدل نو الله تعالی د هغه مشابهت په هغو خلکو کې له يوه سره وکړ او عيسی ﷺ د يوه روشنداز څخه د آسمان لوري ته پورته کړی شو.

عسکر کور ته ور داخل شول نو هغوی هغه ځوان پيدا کړ په کوم چې د عيسی ﷺ مشابهت ور اچول شوی وو، هغوی دې ځوان ته عيسی وويل او هغه يې ونيو، هغه يې په دار باندې وځړاوه او د هغه د توهين لپاره يې دسختې سزا ورکولو يو تاج د هغه په سر کيښود، د يهودو دا دعوه عامو يهوديانو هم ومنله، سره له دې چې په هغوی کې يوه يې هم عيسی ﷺ په دار باندې ځړيدلی نه دی ليدلی، د دغې غلطې عقيدې له امله عيسايان په ښکاره ګمراهي کې مبتلا شول، الله تعالی په قرآن مجيد کې خبر ورکړی ﴿ وَإِن مِّنْ أَهْلِ الْكِتَابِ إِلَّا لَيُؤْمِنَنَّ بِهِ قَبْلَ مَوْتِهِ ۖ وَيَوْمَ الْقِيَامَةِ يَكُونُ عَلَيْهِمْ شَهِيدًا ﴿١٥٩﴾ ﴾ (١).

ژباړه:

او نشته هيڅوک له اهل د کتابه مګر قسم دی هرو مرو چې ايمان به راوړي دوی خامخا (په وخت د نزعې خپلې يا په وخت د نزول د عيسی) پر

---

١- النساء، آية: ١٥٩.

دغه (عیسی) پخوا له مرګه د ده څخه او په ورځ د قیامت کې به وي (عیسی) پر دوی باندې شاهد (چې جهودانو ونه منلم او نصرانیانو ((ابن الله)) وبللم).
یعني په اخره زمانه کې د قیامت له راتلو د مخه کله چې هغه له اسمان څخه زمکې ته را نازل شي نو هغه به خنزیر قتل کړي، صلیب به توټې توټې کړي، جزیه به ختمه کړي او له اسلام پرته بل دین به قبول نکړي.

## د مسیح وجه تسمیه

(مسیح) د فعیل په وزن دی، کله له هغه څخه فاعل یعنې (ماسح) لاس تیروونکی او کله مفعول یعنې (ممسوح) په کوم چې لاس تیر کړی شي مراد دی. عیسی ﷺ مسیح په معنا د ماسح سره دی او هغه ته له دې امله مسیح ویل کیږي چې هغه به د کوم رنځور یا معذور په بدن لاس را تیر کړ نو هغه به جوړیده، د هغه په وجه تسمیه کې دا خبره راجح ده.

## یهودو حضرت عیسی ﷺ نه دی وژلی

حضرت عیسی ﷺ نه دی وفات شوی بلکه هغه الله تعالی خپل لوري ته پورته کړی، د قرآن کریم له دې موضوع سره تعلق لرونکي آیتونو په باره کې ځینې خلکو اشتباه کړې مثلاً: ﴿وَمَكَرُواْ وَمَكَرَ اللّهُ وَاللّهُ خَيْرُ الْمَاكِرِينَ ٤ د إِذْ قَالَ اللّهُ يَا عِيسَى إِنِّي مُتَوَفِّيكَ وَرَافِعُكَ إِلَيَّ وَمُطَهِّرُكَ مِنَ الَّذِينَ كَفَرُواْ وَجَاعِلُ الَّذِينَ اتَّبَعُوكَ فَوْقَ الَّذِينَ كَفَرُواْ إِلَى يَوْمِ الْقِيَامَةِ﴾.
ژباړه:
او مکر وکړ (کفارو) په (عیسی) باندې او مکر وکړ الله (له دوی سره چې سزا یې دوی ته ورکړه) او الله خیر (بهتر) د ماکرینو دی (چې مکاران په سزا رسوي) یاد کړه اې محمد! هغه وخت چې وویل الله اې عیسی بیشکه زه اخیستونکی یم ستا (له زمکې) او پورته بیونکی یم ستا طرف زما ته او پاکونکی (لیرې کوونکی) یم ستا له هغو کسانو څخه چې کافران (منکران)

شوي دي او ګرځوونکی یم د هغو کسانو چې متابعت یې کړی دی ستا د پاسه د هغو کسانو چې کافران (منکران) شوي دي تر ورځې د قیامته پورې.

په دې آیت کریمه کې ﴿إِنِّي مُتَوَفِّيكَ﴾ کې د (متوفي) معنا مرګ نه دی، بلکه خوب دی لکه چې الله تعالی ﷻ فرمایي:

﴿اَللّٰهُ يَتَوَفَّى الْاَنْفُسَ حِيْنَ مَوْتِهَا وَالَّتِيْ لَمْ تَمُتْ فِيْ مَنَامِهَا﴾ ([1]).

ژباړه: الله را کاږي (قبضوي) نفسونه په وخت د مرګ د دوی او هغه نفس چې نه وي مړ (هغه را کاږي) په خوب د هغه کې.

همدا شان الله تعالی ﷻ فرمایي:

﴿وَهُوَ الَّذِيْ يَتَوَفّٰىكُمْ بِالَّيْلِ﴾ ([2]).

ژباړه:

او الله هغه (لوی ذات) دی چې وفاتوي (حصاروي او ویده کوي) تاسې په شپه کې؛ او دویم قول دا دی چې ﴿إِنِّي مُتَوَفِّيكَ﴾ یعنې زه تا خپل لوري ته را پورته کوونکی او په خپله قبضه کې اخستونکی یم.

عرب وایي (توفی فلان دینه من فلان) یعنې کله چې یو څوک خپل ورکړی شوی قرض پوره تر لاسه کړي او هغه په خپله قبضه کې واخلي نو ویل کیږي چې فلاني له فلاني څخه خپل ټول قرض تر لاسه کړ.

له همدې وجهې د پورته ذکر شویو دواړو معنا ګانو په جمع کولو کې هیڅ خرج نشته.

د الله تعالی ﷻ قول دی:

---

[1] - الزمر. آیة: ۴۲.

[2] - الانعام. آیة: ۶۰.

﴿وَإِنْ مِنْ أَهْلِ الْكِتٰبِ إِلَّا لَيُؤْمِنَنَّ بِهِ قَبْلَ مَوْتِهِ ۖ وَيَوْمَ الْقِيٰمَةِ يَكُونُ عَلَيْهِمْ شَهِيدًا﴾ ([1]).

ژباړه: او نشته هیڅوک له اهل د کتابه مګر قسم دی هرو مرو چې ایمان به راوړي دوی خامخا (په وخت د نزعې خپلې یا په وخت د نزول د عیسی) پر دغه (عیسی) پخوا له مرګه د ده څخه او په ورځ د قیامت کې به وي (عیسی) پر دوی باندې شاهد (چې جهودانو ونه منلم او نصرانیانو ((ابن الله)) وبللم).

د الله تعالی د فرمان ﴿قَبْلَ مَوْتِهِ﴾ معنا دا ده چې کله په اخره زمانه کې هغه دنیا ته نزول وکړي نو هیڅ اهل کتاب به داسې نه وي کوم به چې د عیسی ﷺ له وفات د مخه په هغه باندې ایمان را نه وړي، ځکه چې عیسی ﷺ له اسلام پرته هیڅ بل دین نه قبلوي، کوم کافر چې هغه ویني نو وژني به یې.

دا هم ویل شوي دي چې له ﴿قَبْلَ مَوْتِهِ﴾ څخه مراد دا ده چې د اهل کتاب هر فرد به له خپل مرګ څخه د مخه په عیسی ﷺ باندې ایمان راوړي، په اهل کتابو کې چې هر چا ته مرګ راځي نو هغه ته به ښکاره شوې وي چې عیسی ﷺ د الله رسول او بنده دی، هغه بشر دی. الله یا رب نه دی، چونکه کتابي سړی به له خپل مرګ څخه د مخه د دغې سمې عقیدې اقرار وکړي مګر د هغه دا ایمان به هغه ته هیڅ فایده ور نکړي. ځکه چې د مرګ له شروع کیدو وروسته چې کومه توبه وکړی شي هغه قبوله نه وي.

[1] - النساء. آية: ۱۵۹.

### يوه پوښتنه

د حضرت عيسى ﷺ په ژوند او د نورو انبياء كرامو په ژوند كې څه فرق دى؟ آيا ټول انبياء ژوندي نه دي؟ لكه چې د الله تعالى رسول ﷺ فرمايلي:

﴿الانبياء احياء في قبورهم﴾ ([1]).

ژباړه: انبياء په خپلو قبرونو كې ژوندي دي.

### ځواب

حضرت عيسى ﷺ دا وخت په آسمانو كې ژوندى دى، د هغه زندګي له جسم او روح سره حقيقي زندګي ده، ليكن د نور انبياء كرامو زندګي يو خاص قسم برزخي زندګي ده، حضرت عيسى ﷺ تر اوسه پورې نه دى وفات شوى، ځكه خو هغه په عالم برزخ او قبر كې هم داخل نه دى، هغه د الله په نزد له جسم او روح سره په آسمانو كې موجود دى.

تر كومه ځايه چې د نورو انبياء كرامو عليهم السلام معامله ده نو هغوى د مرګ له سكرات سره مخامخ شوي، د هغوى روحونه له جسمونو څخه جلا شوي او هغوى ته په خپلو قبرونو كې يو خاص قسم زندګي حاصله ده د كومې چې مونږ ته علم نشته.

### د عيسى ﷺ د نزول په باره كې دلائل

دا خبره مخكې تيره شوه چې كله يهود د عيسى ﷺ د وژلو لپاره راغلل نو هغه الله تعالى خپل لوري ته پورته كړ، په شرعي دلايلو سره ثابته شوې چې په اخره زمانه كې به هغه را نازل شي او د هغه نزول د قيامت له نښانو څخه يوه نښانه ده، له قيامت سره په نږدې زمانه كې د هغه د نزول په باره كې ډير دلايل شته دي چې يو شمير يې دا دي:

---

[1] فتح الباري شرح صحيح البخاري. احاديث الانبياء. حديث: ٣۴۴٧. اخرجه البيهقي في كتاب حياة الانبياء في قبورهم وصححه.

## لهٔ قران کريم څخه دلايل

الله تعالی ﷻ فرمايي:

﴿وَلَمَّا ضُرِبَ ابْنُ مَرْيَمَ مَثَلًا إِذَا قَوْمُكَ مِنْهُ يَصِدُّونَ ﴿٥٧﴾ وَقَالُوا أَآلِهَتُنَا خَيْرٌ أَمْ هُوَ ۚ مَا ضَرَبُوهُ لَكَ إِلَّا جَدَلًا ۚ بَلْ هُمْ قَوْمٌ خَصِمُونَ ﴿٥٨﴾ إِنْ هُوَ إِلَّا عَبْدٌ أَنْعَمْنَا عَلَيْهِ وَجَعَلْنَاهُ مَثَلًا لِبَنِي إِسْرَائِيلَ ﴿٥٩﴾ وَلَوْ نَشَاءُ لَجَعَلْنَا مِنْكُمْ مَلَائِكَةً فِي الْأَرْضِ يَخْلُفُونَ ﴿٦٠﴾ وَإِنَّهُ لَعِلْمٌ لِلسَّاعَةِ فَلَا تَمْتَرُنَّ بِهَا وَاتَّبِعُونِ ۚ هَٰذَا صِرَاطٌ مُسْتَقِيمٌ ﴿٦١﴾﴾ ([1]).

ژباړه:

او کله چې وګرځاوه شو زوی د مريمې مثل؛ نا څاپه قوم ستا پر هغه (مثال) شور ماشور د خوشحالتيا (او خندا) کوي او وايي (دغه کفار) آيا معبودان زمونږ غوره دي او که هغه غوره دي (هر کله چې عيسی په دوزخ کې شو خو زمونږ بتان دې هم په دوزخ کې وي) نه دی تړلی دوی دغه مثال تا لره مګر محض د پاره د مجادلې خصومت جګړې بلکه دوی يو قوم جګړه کوونکی دی (په هر کار کې) نه دی دغه (عيسی) مګر يو بنده دی چې نعمت کړی وو مونږ پرې او ګرځولی مو وو دی يو مثل د پاره د بني اسرائيلو؛ او که اراده فرمايلې وای مونږ نو خامخا ګرځولی به مو وی په ځای د ستاسې فرښتې په زمکه کې چې خليفګانې شوې به وې؛ او بيشکه دغه (عيسی) خامخا علامه نښه ده د پاره د قيامت (په اعتبار د نزول سره) پس شک مه کوئ تاسې په (راتلو د) قيامت کې او متابعت وکوئ زما (په توحيد کې) دغه لياره ده سمه برابره (چې نه پرې ګمراه کيږي هيڅوک).

---

[1] الزخرف، آية: ۵۷ – تا ۶۱.

د آیت کریمه الفاظ ﴿وَاِنَّهٗ لَعِلْمٌ لِّلسَّاعَةِ﴾ معنا ده چې عیسی ﷺ د قیامت له نښانو څخه یوه نښانه ده، او په یوه بل روایت کې داسې دي ﴿وَاِنَّهٗ لَعَلَمٌ لِّلسَّاعَةِ﴾ د عین او لام په زور سره، یعنې د قیامت علامه او نښانه ده، دا د قیامت په راتلو او د هغه په نږدیوالي باندې دلالت کوي.

﴿وَاِنَّهٗ لَعِلْمٌ لِّلسَّاعَةِ فَلَا تَمْتَرُنَّ بِهَا﴾ هغه عیسی د قرب قیامت نښانه ده، تاسو په دې کې شک مکوئ ﴿وَاتَّبِعُوْنِ ؕ هٰذَا صِرَاطٌ مُّسْتَقِيْمٌ﴾ او زما تابعداري وکړئ دغه سمه لیار ده.

حضرت عبد الله بن مسعود رضی الله عنه د آیت کریمه په تفسیر کې فرمایي:

﴿وَاِنَّهٗ لَعَلَمٌ لِّلسَّاعَةِ﴾ یعنې له قیامت څخه د مخه د عیسی ﷺ راتګ د قیامت نښانه ده [۱].

امام طبري رحمه الله فرمایلي: د دې معنا دا ده چې د عیسی ﷺ ظاهریدل یوه نښانه ده، په دې سره به خلکو ته ور معلومیږي چې قیامت زر راتلونکی دی، ځکه چې د هغه راتګ د قیامت له نښانو څخه دی [۲].

الله تعالی جل جلاله فرمایي:

﴿وَّ قَوْلِهِمْ اِنَّا قَتَلْنَا الْمَسِيْحَ عِيْسَى ابْنَ مَرْيَمَ رَسُوْلَ اللّٰهِ ۚ وَ مَا قَتَلُوْهُ وَ مَا صَلَبُوْهُ وَ لٰكِنْ شُبِّهَ لَهُمْ ؕ وَ اِنَّ الَّذِيْنَ اخْتَلَفُوْا فِيْهِ لَفِيْ شَكٍّ مِّنْهُ ؕ مَا لَهُمْ بِهٖ مِنْ عِلْمٍ اِلَّا اتِّبَاعَ الظَّنِّ ۚ وَ مَا قَتَلُوْهُ يَقِيْنًا ۝ بَلْ رَّفَعَهُ اللّٰهُ اِلَيْهِ ؕ وَ كَانَ اللّٰهُ عَزِيْزًا حَكِيْمًا ۝ وَ اِنْ مِّنْ اَهْلِ الْكِتٰبِ اِلَّا لَيُؤْمِنَنَّ بِهٖ قَبْلَ مَوْتِهٖ ۚ وَ يَوْمَ

---

[۱] مسند احمد: ۱/ ۳۱۷، وصححه احمد شاکر.
[۲] تفسیر طبري، الزخرف، آیة: ۶۱.

الْقِيٰمَةِ يَكُوْنُ عَلَيْهِمْ شَهِيْدًا ﴿١٥٩﴾ (١).

ژباړه:

او په سبب د ويلو د دوی (داسې چې) بيشکه وژلی دی مونږ مسيح عيسی زوی د مريمې رسول د الله (په ګمان خپل) حال دا چې نه ؤ وژلی دوی (عيسی، واقعاً) او نه پر دار کړی ؤ دغه (يقينا) ليکن مشتبه کړی شو (دغه وژلی شوی په دار وهلی شوی په عيسی سره) دوی ته؛ او بيشکه هغه کسان چې اختلاف کړی دی دوی په (حق د) عيسی کې خامخا په شک کې دي په (شان) د ده کې: نشته دوی ته په (شان) د ده کې هيڅ علم مګر تش متابعت د ګمان (خپل) او نه ؤ وژلی دوی عيسی (په وژلو) يقيني سره، بلکه پورته کړی ؤ دی الله طرف خپل ته؛ او دی الله ښه قوي غالب (د احکامو په انفاذ) ښه حکمت والا (چې هر کار په تدبير او مصلحت کوي) او نشته هيڅوک له اهل د کتابه مګر قسم دی هرو مرو چې ايمان به راوړي دوی خامخا (په وخت د نزعې خپلې يا په وخت د نزول د عيسی) پر دغه (عيسی) پخوا له مرګه د ده څخه او په ورځ د قيامت کې به وي (عيسی) پر دوی باندې شاهد (چې جهودانو ونه منلم او نصرانيانو ((ابن الله)) وبللم).

د اکثرو مفسرينو په قول د (به) او (موته) له (ه) ضمير څخه په دواړو ځايونو کې مراد عيسی عليه السلام دی.

ابو مالک رحمه الله د ﴿وَاِنْ مِّنْ اَهْلِ الْكِتٰبِ اِلَّا لَيُؤْمِنَنَّ بِهٖ﴾ په تفسير کې فرمايي: دا به هغه وخت کيږي کله چې عيسی عليه السلام نزول وکړي، په دې وخت کې به د اهل کتابو هر سړی په هغه باندې ايمان راوړي (٢).

علامه ابن کثير رحمه الله فرمايي:

---

(١) النساء، آية: ١٥٧ – ١٥٨، ١٥٩.

(٢) تفسير طبري: النساء، آية: ١٧١.

الله تعالی خبر ورکړی چې د عیسی ﷺ معامله په هغه ډول نه ده، هغه د خلکو لپاره مشابهت پیدا کړی، هغوی ته هیڅ دا معلومه نشوه او له عیسی سره ورته شوی سړی یې وواژه، الله تعالی خبر ورکوي چې هغه عیسی ﷺ خپل لوري ته پورته کړ: هغه ژوندی سلامت دی او له قیامت څخه د مخه به نازل شي، په دې باندې هغه متواتر احادیث دلالت کوي کوم چې مونږ وړاندې بیانه وو. مسیح ﷺ به ګمراهي ختمه کړي، صلیب به ټوټه ټوټه کړي، خنزیر به قتل کړي، جزیه به ختمه کړي، یعنې له هیڅ غیر مسلم څخه به جزیه نه قبلوي او هغه ته به له اسلام څخه د وتو اجازه نه ورکوي، هغه به یوائې اسلام یا توره قبلوي، آیت کریمه خبر ورکوي چې په دې وخت کې به ټول اهل کتاب په عیسی ﷺ باندې ایمان راوړي او په هغوی کې به هیڅ داسې څوک نه وي کوم به چې د هغه تصدیق ونکړي [1].

## له سنت څخه دلایل

حضرت خذیفه بن اسید غفاري رضي الله عنه بیان کوي چې یو ځل مونږ خلک ناست وو او د قیامت ذکر مو کاوه چې رسول الله ﷺ مونږ ولیدلو او وې فرمایل: تاسو خلک د کوم شي ذکر کوی؟ مونږ عرض وکړ: د قیامت ذکر کوو، رسول الله ﷺ وفرمایل:

﴿إنها لن تقوم حتى ترون قبلها عشر آيات فذكر الدخان والدجال والدابة وطلوع الشمس من مغربها ونزول عيسى ابن مريم صلى الله عليه و سلم ويأجوج ومأجوج وثلاثة خسوف خسف بالمشرق وخسف بالمغرب وخسف بجزيرة العرب وآخر ذلك نار تخرج من اليمن تطرد الناس إلى محشرهم﴾ ([2]).

ژباړه: بې له شکه هغه به تر هغه وخته قایم نشي تر څو چې تاسو له هغه څخه د مخه لس نښانې وویني. بیا نبي کریم ﷺ د هغو ذکر وکړ: (۱) دود

[1] - تفسیر ابن کثیر، النساء، آیة: ۱۵۹.

[2] - صحیح مسلم، الفتن واشراط الساعة، حدیث: ۲۹۰۱.

(۲) دجال (۳) خروج دابه (۴) د لمر له مغرب څخه را پورته کیدل (۵) د عیسی ﷺ نزول (۶) د یاجوج ماجوج را وتل (۷) او په دریو ځایونو کې د زمکې د ننوتلو واقعات، په مشرق کې د زمکې ننوتل، په مغرب کې د زمکې ننوتل، په جزیره نمائي عرب کې د زمکې ننوتل. له ټولو څخه په اخیر کې چې کومه نښانه ښکاره کیږي هغه په یمن کې د (عدن) له لوري راوتونکی یو اور دی کوم به چې خلک د محشر زمکې (شام) لوري ته بیايي.

حضرت ابو هریرة رضي الله عنه بیان کوي چې رسول الله ﷺ فرمایلي:

﴿وَالَّذِي نَفْسِي بِيَدِهِ لَيُوشِكَنَّ أَنْ يَنْزِلَ فِيكُمْ ابْنُ مَرْيَمَ حَكَمًا عَدْلًا فَيَكْسِرَ الصَّلِيبَ وَيَقْتُلَ الْخِنْزِيرَ وَيَضَعَ الْجِزْيَةَ وَيَفِيضَ الْمَالُ حَتَّى لَا يَقْبَلَهُ أَحَدٌ حَتَّى تَكُونَ السَّجْدَةُ الْوَاحِدَةُ خَيْرًا مِنْ الدُّنْيَا وَمَا فِيهَا﴾ ([1]).

ژباړه:

په هغه ذات قسم د کوم په قبضه کې چې زما روح دی! نږدې ده چې د ستاسو په مینځ کې عیسی ﷺ عادل واکمن جوړ شي او نزول وکړي، هغه به صلیب مات کړي، خنزیر به قتل کړي او جزیه به ختمه کړي، په دې وخت کې به مال دومره په کثرت سره وي چې هغه به هیڅوک نه غواړي، په دې زمانه کې به یوه سجده له دنیا او د هغې له ټولو خزانو څخه قیمتي وي.

په یوه بل روایت کې دي:

﴿والله لينزلن ابن مريم حكما عادلا فليكسرن الصليب وليقتلن الخنزير وليضعن الجزية ولتتركن القلاص فلا يسعى عليها ولتذهبن الشحناء والتباغض والتحاسد وليدعون (وليدعون) إلى المال فلا يقبله أحد﴾ ([2]).

---

[1] - صحیح البخاري. احادیث الانبیاء. حدیث: ۳۴۴۸، وصحیح مسلم. الایمان. حدیث: ۱۵۵.

[2] - صحیح مسلم. الایمان. حدیث ۱۵۵.

ژباړه : په الله قسم ! عیسی ابن مریم علیهما السلام به عادل واکمن جوړ شي او ضرور به را نازل شي، هغه به صلیب مات کړي، خنزیر به قتل کړي، جزیه به ختمه کړي، څوان اوښان به آزاد پریښودل شي، د هغوی د نیولو ډار به نه وي، خپل مینځي دښمني، له یوه بل سره بغض او حسد به ورک شي، خلک به د مال لوري ته غوښتل کیږي مگر هیڅوک به د هغه اخستو ته تیار نه وي.

## د حدیث د معنا گانو بیان

(یکسر الصلیب) صلیب مشهور شی دی. د عیسایانو دا عقیده ده چې عیسی علیه السلام په صلیب وځړول شو او قتل کړی شو، دا د هغوی مذهبي شعار دی، عیسی علیه السلام به د هغوی صلیب مات کړي.

(یقتل الخنزیر) خنزیر یو مشهور څناور دی [1] اسلام د هغه خوراک حرام کړی.

---

[1] - خنزیر یو خبیث او سست څناور دی. دی نباتاتي شیان، څناور، مرداره او گنگي خوري. له خپلو متیازو سره سره د نورو حیواناتو گنگي هم خوري. عیسی علیه السلام به خنزیر قتل کړي: د دې معنا هیڅکله دا نه ده چې الله تعالی خنزیر هسې له کوم حکمت څخه خالي پیدا کړی. هر څناور الله تعالی یواځې د دې لپاره نه دی پیدا کړی چې د هغه غوښه دې وخوړل شي. الله تعالی میگې. ماهیان او نور د دې لپاره نه دي پیدا کړي چې هغوی وخوړل شي. بلکه د دې شیانو په پیدا کولو کې د الله تعالی نور حکمتونه هم شته دي. همدا شان خنزیر هم الله تعالی د خپل کوم حکمت ما تحت پیدا کړی. مگر په ټولو اسماني مذاهبو کې د هغه د غوښې خوړل حرام کړی شوي دي.

## د خنزير په باره کې اسلامي لار ښودنې

الله تعالی ﷻ فرمايي:

﴿ اِنَّمَا حَرَّمَ عَلَيۡكُمُ الۡمَيۡتَةَ وَالدَّمَ وَلَحۡمَ الۡخِنۡزِيۡرِ وَمَاۤ اُهِلَّ بِهٖ لِغَيۡرِ اللّٰهِ ۚ فَمَنِ اضۡطُرَّ غَيۡرَ بَاغٍ وَّلَا عَادٍ فَلَاۤ اِثۡمَ عَلَيۡهِ ؕ اِنَّ اللّٰهَ غَفُوۡرٌ رَّحِيۡمٌ ﴾ ([1]).

ژباړه:

بيشکه دا خبره ده چې حرام کړي دي الله پر تاسې باندې (خوراک) د مردارې او حرام کړي دي الله (خوراک) د وينې (بهيدونکې) او حرام کړي دي الله (خوراک) د غوښې د خنزير او حرام کړي دي الله (خوراک) د هر هغه حلال کړی شوي چې آواز کړی شوي وي په هغه باندې په وخت د ذبحې کې بيله پاک الله نو هغه څوک چې اړ شي (د دې حرامو خوړلو ته) حال دا چې نه ظلم کوونکی او نه تجاوز کوونکی وي (له قدر د کفافه) نو نشته ګناه په دې باندې؛ بيشکه چې الله لوی ښښونکی پوره رحم کونکی دی.

همدا شان الله تعالی ﷻ فرمايي:

﴿ اِنَّمَا حَرَّمَ عَلَيۡكُمُ الۡمَيۡتَةَ وَالدَّمَ وَلَحۡمَ الۡخِنۡزِيۡرِ وَمَاۤ اُهِلَّ لِغَيۡرِ اللّٰهِ بِهٖ فَمَنِ اضۡطُرَّ غَيۡرَ بَاغٍ وَّلَا عَادٍ فَاِنَّ اللّٰهَ غَفُوۡرٌ رَّحِيۡمٌ ﴾ ([2]).

ژباړه:

بيشکه همدا خبره چې حرامه کړې ده الله پر تاسې باندې مرداره او بهيدونکې وينه او غوښه د خنزير او هغه حلال کړی شوی حيوان چې غږ کړی شوی دی د بل شي بې له الله نه (د نامه) په وخت د ذبحې د هغه: پس هغه څوک چې اړ شي خوړلو د دې حرامو ته) حال دا چې ظالم نه وي (په بل

---

[1] البقرة. آية: ۱۷۳.
[2] النحل. آية: ۱۱۵.

چا، او نه تجاوز کوي (د کفاف له اندازې) نو بیشکه الله ښښونکی د ګناهونو ډیر رحم والادی (د اجر او ثواب په ورکولو).

## د خنزیر په باره کې یهودي لارښودنې

په تورات کې دي :: هغه د ستاسو لپاره نجس (مردار دی) تاسو نه د هغه غوښه وخوری او نه د هغه په بدن لاس ولګوی [1].

همدا شان خنزیر هم. هغه د ستاسو لپاره پلیت دی، د هغه غوښه تاسو ونه خوری او نه د هغه د بدن اعضاؤ ته لاس ور وړی، هغه د ستاسو لپاره ناپاک مردار دی [2]

## د خنزیر په باره کې عیسوي لارښودنې

په انجیل کې دي :: پطرس وایي : هیڅکله نه ده، اې رب ! ما کله هم کومه ګنګي یا ناپاک شی نه دی خوړلی [3].

همدا شان وایم : هیڅکله نه ده، اې زما رب ! ځکه چې زما خولې ته کله هم ګنګي یا ناپاک شی نه دی داخل شوی [4].

هغه عیسایان هم د خنزیر غوښه نه خوري کوم چې دا عقیده لري چې عیسی ﷺ به اسمان له ختو وروسته بیا را ښکته شي.

په هندو مذهب کې هم د خنزیر غوښې له خوړلو منع شوې، د پورته درجې هندوان د خنزیر غوښې خوړل عار بولي. یواځې بیکاره او د ټیټې درجې هندوان وغیره د خنزیر غوښه خوري

د زردشت مذهب خلک هم د خنزیر غوښې له خوړلو پرهیز کوي.

---

[1] استثناء:۴ ۸.

[2] احبار:۱۱ ۷ - ۸

[3] اعمال:۱۰ ۱۴

[4] اعمال:۱۱ ۸.

بت پرست هم خنزير ته له لاس ور ورو مکمل ځان ساتي. ګمان کوي چې له خنزير څخه انسان ته ډيرې ناروغۍ سرايت کوي، په تيرو شلو کلونو کې محقيقينو د انسان خوراک، د هغه معاملات او د سوچ په مينځ کې د تعلق پيدا کولو کوشش وکړ، هغوی دې نتيجې ته ورسيدل چې کله هم مونږ د خپل خوراک نوعيت بدل کړو نو زمونږ په خويونو، عاداتو او معاملاتو کې هم بدلون راځي، هغوی د دې امر مشاهده وکړه چې کوم خلک صحت ته ضرر رسونکي شيان خوري هغوی له قانون څخه چپ کارونه ډير کوي، د ايمرجنسي مراکزو په پلټنه کې هغوی ته معلومه شوې چې کوم خلک ميوه او سبزي ډيره استعمالوي هغوی د قانون پابندي هم کوي.

خنزير يو داسې ځناور دی نه يواځې دا چې هغه ګندګي خوري. بلکه د دې کار هيڅ پروا هم نه وي ور سره چې د ده په موجوديت کې د ده له ښځې سره بل نر خنزير څه کوي، دا يو بې غيرته ځناور دی. بر عکس نور ځناوران له خپلې ښځې دفاع کونکي تر سترګو کيږي. لکه چې ليدل کيږي د خنزير غوښې خوړونکو خلکو غيرت هم ډير کمزوری وي او د دې خبرې هيڅ پروا نکوي چې د هغوی د ښځو معاملات، حرکات او سکنات څه دي.

د خنزير غوښې په باره کې الله تعالی ﷻ فرمايلي چې هغه (رجس) يعنې ګندګي ده. له خنزير څخه انسانانو ته د خطرناکو جراثيمو د ليږد ډيرې نمونې شته دي، له خنزيرانو څخه ډير وبائي مرضونه هم پيدا کيږي د کومو شمير چې کم از کم (۴۵۰) دی او دا ټول چې د کومو متعدي امراضو د خپريدا باعث دي د هغوی شمير له (۷۵) څخه زيات دی.

د خنزير له غوښې او له هغې څخه د جوړ شويو نورو شيانو له استعمال څخه له (۱۶) زياتې ناروغۍ له خنزير څخه انسان ته سرايت کوي، په هغوی کې مالټا پور، ټي بي، داء اليرقات الشريطة وغيره شامل دي

اته ويشت (۲۸) نور داسې مرضونه هم شته دي کوم چې د خوراک څښاک په شيانو کې د خنزير د استعمال له امله پيدا کيږي. د خنزير غوښې د

سخت حرمت له امله عیسی ﷺ د هغه د وجود د ورکولو او په پوره ډول د هغه د ورکولو حکم کړی.

(ویضع الجزیة) جزیه یو ټیکس دی کوم چې په اسلامي هیوادونو کې له اوسیدونکو اهل کتابو څخه د هغوی د حفاظت او د هغوی لپاره د مهیا شویو اسانیو په بدل کې اخیستل کیږي، دا انتهائي په عدل او انصاف بنا ټیکس دی، لکه چې په اسلامي هیوادونو کې له تاجرانو څخه زکاة اخیستل کیږي، عیسی ﷺ چې کله نزول وکړي او د خلکو په مینځ کې حکومت کول شروع کړي نو هغه به له اسلام څخه پرته بل هیڅ دین نه مني، عیسایان کوم چې ځانونه د عیسی ﷺ پیروان بولي، کله چې عیسی ﷺ را نازل شي او له هغوی سره خبرې وکړي نو د هغوی له زړونو څخه به دا عقیده ختمه شي چې عیسی ﷺ د الله زوی دی، دا خلک به په صحیح دین ایمان راوړي لکه چې الله تعالی ﷻ په خپل کتاب کې خبر ورکړی:

﴿وَإِنْ مِّنْ أَهْلِ الْكِتٰبِ إِلَّا لَيُؤْمِنَنَّ بِهِۦ قَبْلَ مَوْتِهِۦ﴾ ([1]).

ژباړه:

په اهل کتاب کې به یو هم داسې پاتې نشي کوم به چې د عیسی ﷺ له مرګ څخه د مخه په هغه باندې ایمان را نه وړي.

یعنې د عیسی ﷺ له نزول وروسته د هغه له وفات کیدا د مخه به ټول اهل کتاب په هغه ایمان راوړي او هر څوک چې له ایمان راوړو انکار کوي عیسی ﷺ به له هغوی سره جنګ کوي.

په یوه روایت کې داسې الفاظ دي:

﴿وتکون الدعوة واحدة﴾ ([2]).

---

[1] النساء، آیة: ۱۵۹.

[2] مسند احمد: ۲/ ۳۹۴. وحسنه الارنؤوط في تعلیقه علی المسند.

ژباړه: يعنې د عيسى عليه السلام په زمانه کې به دعوت يواځې د اسلام وي، هيڅ بل دين به د ځمکې په سر باقي پاتې نشي، يعنې په دنيا کې به هيڅ هندو، بت پرست، يهودي، عيسائي او مجوسي نه وي.

﴿تکون السجدة الواحدة خيرا من الدنيا وما فيها﴾ يعنې په خلکو کې به د لمانځه او د نورو نيکيو رغبت او شوق ډير زيات شي، له دې امله چې د هغوی خواهشات به ډير کم شي، هغوی به له دنيا سره بې مينې شي او د قيامت په را نږدې کيدو به يې يقين شي: او له دې امله چې په دې وخت کې به د خلکو روزي ډيره فراخه شي او د معاش فکر به د هغوی لپاره د عبادت په لياره کې کوم خنډ نه وي.

﴿ولتترکن القلاص، فلا يسعى عليها﴾ (القلاص) هغو ځوانو اوښانو ته ويل کيږي کوم چې ډير غوره او قيمتي وي، د عربو په نزد دا تر ټولو غوره مال دی، په دې زمانه کې به خلک دا قيمتي څناور هم پريږدي، له هغوی څخه به بې پروا شي، هيڅوک به د هغوی په پالنه، څرولو او ساتلو کې کوشش نکوي او نه به يې په اخيستلو او خرڅولو کې دلچسپي لري.

حضرت جابر رضي الله عنه بيان کوي چې رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمايلي:

﴿فينزل عيسى بن مريم فيقول أميرهم تعال صل بنا فيقول لا إن بعضكم على بعض أمراء تكرمة الله هذه الأمة﴾ ([1]).

ژباړه: عيسى ابن مريم عليهما السلام به را نازل شي او د مسلمانانو امير به هغه ته وايي: راشه مونږ ته لمونځ راکړه، مګر عيسى عليه السلام به ووايي: نه! تاسو په خپله د يوه بل لپاره امام ياست. الله تعالى دغه امت ته دا عزت ورکړی.

حضرت ابو سعيد خدري رضي الله عنه بيان کوي چې رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمايلي:

﴿منا الذي يصلي عيسى ابن مرين خلفه﴾ ([2]).

---

[1] - صحيح مسلم، لايمان، حديث: ۱۵۲.

[2] - سلسلة الاحاديث الصحيحة: ۵/ ۳۷۱، حديث: ۲۲۹۳.

ژباړه: عیسی ابن مریم علیهما السلام چې په چا پسې تر شا لمونځ وکړي هغه له ما څخه دی.

## د حضرت عیسی علیه السلام د نزول حدیثونه متواتر دي

د حضرت عیسی علیه السلام د نزول په باره کې مونږ ته چې له نبي کریم صلی الله علیه وسلم څخه کوم حدیثونه رسیدلي هغه مواتر دي او د هغوی د تواتر په ذکر کوونکو کې امام احمد بن خنبل [۱] امام ابوالحسن اشعري [۲] امام طبري [۳] علامه ابن کثیر [۴] علامه سفاریني [۵] شامل دي، امام شوکاني رحمه الله هم په خپل کتاب (التوضیح في ما جاء في المنتظر والدجال والمسیح) کې دې حدیثونو ته متواتر ویلي دي.

امام ابن کثیر رحمه الله د نزول عیسی په باره کې د واردو حدیثونو په باره ویلي:

د رسول الله صلی الله علیه وسلم دا حدیثونه متواتر دي، په هغوی کې د عیسی علیه السلام د نزول کیفیت او د نزول د ځای وضاحت هم موجود دی، د هغه نزول به په شام کې د دمشق مشرقي مینار سره په خوا کې وي او دا به په هغه وخت کې وي چې د لمانځه لپاره به اقامت ویل شوی وي، هغه به راشي خنزیر به قتل کړي، صلیب به مات کړي او جزیه به ختمه کړي، هغه به له اسلام پرته بل هیڅ دین نه مني لکه چې په صحیحینو کې دا خبره بیان شوی او دا خبرې ټولې له رسول الله صلی الله علیه وسلم څخه منقولې دي، د اهل کتابو ټول اعتراضونه او شبهات به ختم شي او هغوی به له یوه مخه د عیسی علیه السلام تابعداري وکړي او په اسلام کې به داخل شي، الله تعالی جل جلاله فرمایي:

---

[۱] - طبقات الحنابلة: ۱/ ۲۴۱ – ۲۴۳.

[۲] - مقالات الاسلامیین و اختلاف المصلین: ۱/ ۳۴۵.

[۳] - تفسیر الطبري: ۳/ ۲۹۱.

[۴] - تفسیر ابن کثیر: ۷/ ۲۲۳.

[۵] - لوامع الانوار البهیة: ۱/ ۹۴ – ۹۵.

﴿وَإِنْ مِّنْ أَهْلِ الْكِتَٰبِ إِلَّا لَيُؤْمِنَنَّ بِهِۦ قَبْلَ مَوْتِهِۦ﴾ (١).

ژباړه:

په اهل کتاب کې به یو هم داسې پاتې نشي کوم به چې د عیسی ﷺ له مرګ څخه د مخه په هغه باندې ایمان را نه وړي.

دا آیت کریمه د هغه آیت کریمه په څیر دی په کوم کې چې الله تعالی فرمایي ﴿وَإِنَّهُۥ لَعِلْمٌ لِّلسَّاعَةِ﴾ یعنې عیسی ﷺ د قیامت له نښانو څخه یوه نښانه ده، او په یوه بل روایت کې داسې دي ﴿وَإِنَّهُۥ لَعَلَمٌ لِّلسَّاعَةِ﴾ د عین او لام په زور سره، یعنې د قیامت یوه نښانه ده، دا د قیامت په راتلو او د هغه په نږدیوالي باندې دلالت کوي، دا چې هغه به د مسیح دجال له ظهور وروسته تشریف راوړي نو دجال به د عیسی ﷺ په لاس قتل کړی شي، د عیسی ﷺ په زمانه کې به یاجوج ماجوج را ووځي او د عیسی ﷺ د دعا په برکت به الله تعالی هغوی هلاک کړي.

په امت کې په دې امر اجماع ده چې عیسی ﷺ د قیامت له نښانو څخه یوه نښانه ده، په دې امر کې د اهل علمو هیڅ اختلاف نشته پرته له هغو کمو خلکو د کومو خبره چې د التفات وړ نه ده او د کومو اختلاف چې هیڅ حیثیت نلري.

**یوه پوښتنه**

حضرت عیسی ﷺ چې کله نازل شي نو آیا هغه به د محمدي ﷺ شریعت مطابق حکومت کوي او که کوم نوی شریعت به راوړي؟

---

١ النساء، آیة: ۱۵۹.

## ځواب

## د امام سفاريني قول

امام سفاريني رحمه الله په اخره زمانه کې د حضرت عيسى عليه السلام د نزول په باره کې ليکلي:
يواځې فلسيفانو او بې دينو خلکو د هغه له نزول څخه انکار کړی، مګر د هغوی اختلاف هيڅ اهميت نلري، د امت په دې امر اجماع ده چې هغه به ضرور تشريف راوړي او د شريعت محمدي صلى الله عليه وسلم مطابق به فيصلې کوي، هغه به له آسمان څخه د را نازليدو په وخت کې له ځان سره کوم نوی شريعت نه راوړي.

## نواب صديق حسن خان ويلي

د حضرت عيسى عليه السلام د نزول په باره کې حديثونه ډير زيات دي، امام شوکاني رحمه الله له دې حديثونو څخه ۲۹ ذکر کړي کوم چې يا صحيح دي يا حسن، يا ځينې داسې دي چې ضعف پکې شته مګر د شواهدو په بنا د حسن درجې ته رسيږي، په هغو کې ځينې د مسيح دجال په باره کې دي او ځينې د مهدي منتظر په باره کې دي، له دې پرته له صحابه کرامو څخه هم د هغه متعلق داسې اثار منقول دي کوم چې د مرفوع احاديثو په حکم کې دي ځکه چې داسې خبرې په اجتهاد سره نشي کيدلای. د دې ټولو حديثونو له ذکر کولو وروسته هغه وايي چې د علم په خاوندانو پټه نه ده چې وارد کړی شوي حديثونه د تواتر درجې ته رسيږي (۱).

## شيخ احمد شاکر ليکلي

په اخره زمانه کې د حضرت عيسى عليه السلام نزول د هغو مسايلو له جملې څخه دی په کومو کې چې د مسلمانانو هيڅ اختلاف نشته. ځکه چې په دې باره کې له نبي کريم صلى الله عليه وسلم څخه ډير صحيح احاديث وارد شوي، دا شی د

---

۱ - الاذاعة لما كان وما يكون بين يدى الساعة لصديق حسن خان. ص: ۱۲۰.

دین له بنیادي عقایدو څخه دی او څوک چې له دې انکار وکړي هغه مؤمن نه دی [1].

## شیخ محمد ناصر الدین الباني بیان کوي

په ښې طریقې پوه شئ: د خروج دجال او نزول عیسی په باره کې وارد شوي حدیثونه متواتر دي، په هغو باندې ایمان راوړل واجب دي، تاسو باید د هغو خلکو په خبرو دوکه نشی کوم چې دا دعوه کوي چې دا حدیثونه خبر واحد دي، د داسې خبرو کوونکي په اصل کې په احادیثو نه پوهیږي، په دې خلکو کې یو هم داسې نشته کوم چې د دغو حدیثونو د سند تحقیق وکړي، که چیرته دوی تحقیق وکړي نو به ورته معلومه شي چې دا حدیثونه متواتر دي، لکه څرنګه چې ائمه وو مثلاً: حافظ ابن حجر رحمه الله او نورو ګواهي ورکړې، دا خبره یقینا ډیره د افسوس وړ ده چې یو شمیر خلک د همدې موضوع په باره کې په داسې ځایونو کې د خبرو کولو جرئت کوي کوم چې د همدې خبرو میدان نه وي، دا خبره بیا هغه وخت ډیره افسوسناکه ده کله چې د دې خبرې تعلق له دین او عقیدې سره دی [2].

**پوښتنه**

څنګه حضرت عیسی علیه السلام په امت محمدي صلی الله علیه وسلم کې شمار کیدلای شي؟

## ځواب

حضرت عیسی علیه السلام اولوالعزم رسول دی، د الله تعالی په نزد هغه ته لوړ مقام حاصل دی. هغه ته د رسول الله صلی الله علیه وسلم د صحابي شرف هم حاصل دی. هغه د معراج په شپه په نبي کریم صلی الله علیه وسلم باندې د ایمان لرلو په حالت کې هغه ولید او په همدې ایمان کې به وفات کیږي.

---

[1] تفسیر الطبري. آل عمران: ۳/ ۵۵. تعلیق الشیخ احمد شاکر.

[2] شرح العقیدة الطحاویه. بتحقیق الشیخ الالباني. ص: ۵۲۵.

د معراج په حدیث کې ذکر دي، نبي کریم ﷺ فرمايي: بیا زه پورته وختلم حتی چې دویم آسمان ته ورسیدم، حضرت جبرئیل د آسمان پهره دارانو ته د دروازې خلاصولو خبره وکړه:

هغوی وویل: څوک یې؟

جبریل: زه جبریل یم.

درباریان: له تا سره بل څوک دي؟

جبریل: له ما سره محمد ﷺ دی.

درباریان: آیا هغه را بلل شوی دی؟

جبریل: هو.

درباریان: هغه دې په خیر راشي، هغه څومره ښه تشریف راوړونکی دی! نو دروازه خلاصه کړی شوه، کله چې زه داخل شوم نو له حضرت یحی او حضرت عیسی علیهما السلام سره مې ولیدل، دا دواړه په خپل مینځ کې د خاله زامن دي.

جبریل امین وویل: دا یحی او عیسی دي، دوی ته سلام ور واچوه، ما په هغوی سلام واچاوه او هغوی د سلام ځواب راکړ.

بیا هغوی دواړو وویل: زمونږ د نیک ورور او صالح نبي راتګ دې مبارک وي، هغه دې په خیر راشي [1].

## د عیسی ﷺ د نزول په باره کې د عیسایانو عقیدې

د هغوی عقیده دا ده چې عیسی ﷺ د الله زوی دی، (د الله تعالی ذات له دې خبرې ډیر پورته، ارفع او اعلی دی چې د هغه لپاره کوم زوی شته دی) او هغه یې قتل کړ او زندی یې کړ، بیا یې درې ورځې وروسته هغه آسمان ته پورته کړ. او هغه د خپل پلار (رب) تر څنګ ناست دی، هغه به په آخره زمانه کې را نازل شي.

[1] - صحیح البخاري، احادیث الانبیاء، حدیث: ۳۴۳۰.

مخکې له دې چې د هغه د پورته کيدلو ذکر وشي او دا خبره هم چې هغه نه قتل شوی دی او نه زندۍ شوی دی بلکه يهوديانو محض شبه ليدلې کوم چې هغوی عيسی وباله او قتل يې کړ.

## اهل کتاب د دوو مسيحيانو په اثبات باندې متفق دي

(۱) مسيح هدايت: هغه د حضرت داؤد ﷺ له اولادې څخه عيسی ﷺ دی.
(۲) مسيح ګمراه: په دې باره کې اهل کتابو ويلي چې دا د يوسف ﷺ له اولادې څخه دی [1] او هغه مسيح دجال دی

د عيسی ﷺ په باره کې د عيسايانو عقيده له مسلمانانو څخه په لاندې امورو کې بدله ده.

(۱) د عيسايانو دا عقيده ده چې عيسی ﷺ د الله تعالی زوی دی، د مسلمانانو دا عقيده ده چې هغه بشر دی، د الله تعالی بنده او رسول دی.
(۲) د عيسايانو دا عقيده ده چې عيسی ﷺ يهوديانو قتل کړ او هغه ته يې زندۍ ور واچوله، د مسلمانانو دا عقيده ده چې هغوی نه عيسی ﷺ قتل کړی او نه يې زندۍ ور اچولې، بلکه الله تعالی هغه صحيح سالم ژوندی آسمانو ته پورته کړی.
(۳) د عيسايانو دا عقيده ده چې عيسی ﷺ له زندۍ کيدو درې ورځې وروسته د آسمان لوري ته پورته شو، د مسلمانانو دا عقيده ده چې هغه له قتل او زندۍ کولو پرته د آسمان لوري ته پورته کړی شو.

د عيسايانو دا عقيدې سرا سر باطلې او له حقيقت څخه ليرې دي، حقيقت هغه دی کوم چې په قرآن کريم کې بيان شوی.

## حضرت عيسی ﷺ به په کومو حالاتو کې نازليږي؟

مسلمانان به په دې وخت کې له يوه لوی جنګ څخه را ستنيدونکي وي، هغوی به د قسطنطنيه ښار فتح کړي او د عيسايانو له لاس څخه به يې ازاد

[1] وګورئ د شيخ الاسلام ابن تيميه رحمه الله کتاب (الجواب الصحيح لمن بدل دين المسيح).

کړي او دا خبره خو تیره شوه چې مسلمانان به د قسطنطنیه ښار د تورو په ذریعه نه بلکه د (لا اله الا الله) او تکبیر (الله اکبر) په ذریعه فتح کړي، یو نا څاپه به شیطان د هغوی په مینځ کې اعلان وکړي چې دجال د باندې راووت او راغی، د دې خبرې په اوریدو سره به مسلمانان قسطنطنیه پریږدي او د دمشق لوري ته به مخ کړي، ځکه چې د مسلمانانو مرکز به په دې وخت کې دمشق وي او په دې وخت کې به په ربښتیا مسیح دجال راغلی وي، هغه به په ټوله زمکه وګرځي او غټې فتنې به را بر سیره کړي (١).

په یوه بل مفصل روایت کې دي چې رسول الله ﷺ د دجال په باره کې د خبرو کولو په وخت کې وویل:

دجال به د مدینې ښارې زمکې ته راشي، مدینې ته داخلیدل به هغه حرام کړی شوي دي، مدینه به خپلو اوسیدونکو ته یوه یا دوه جټکې ورکړي، د هغو اثر به دا وي چې ټول منافق سړي او ښځې به له مدینې څخه ووځي او د دجال لوري ته به ورشي، بیا به دجال د شام لوري ته مخه وکړي او د هغه په ځینو غرونو به ودریږي او هغه به محاصره کړي، یو شمیر مسلمانان کوم به چې د غره په لاندې برخه کې موجود وي، دجال به د غره بیخ ته ولاړ شي او هغه به هم محاصره کړي. کله چې دا محاصره اوږده شي نو یو مسلمان به په غصه شي او خپلو ملګرو ته به ووایي: اې د مسلمانانو ټولیه! تاسو به تر څو په دې حالت کې اوسیږي، د الله دښمن دجال دستاسو په زمکه باندې ګیره اچولې، پورته شی د باندې را ووځی، تاسو په دوو خبرو کې یوه ضرور غوره کړی، الله تعالی به تاسو ته شهادت نصیب کړي یا به په هغه باندې غالب شی، هغه به ټول د زړه په اخلاص په مرګ بیعت وکړي، په دې وخت کې به یو

---

١ - د دجال په باره کې په تفصیل سره خبره تیره شوه. وګورئ په علامت کبری کې علامه نمبر (١).

نا څاپه ابن مریم علیها السلام تشریف راوړي، د مؤمنانو له سترګو به د ظلمت پردې لیرې شي، عیسی ﷺ به د هغوی په مینځ کې موجود وي [۱].

خلک به ووایي: د الله بنده ! ته څوک یې؟ عیسی ﷺ به ووایي: زه د الله بنده او د هغه رسول یم، په دې موقع به عیسی ﷺ مؤمنانو ته ووایي: تاسو خلک له دجال څخه د نجات په پیدا کولو کې له دریو صورتونو څخه یو غوره کړی کوم چې تاسو ته ډیر خوښ وي، لومړی دا چې الله تعالی په دجال او د هغه په لښکر له آسمان څخه کوم عذاب را نازل کړي، دویم صورت دا دی چې الله تعالی هغه په زمکه کې ننه باسي او دریم صورت دا دی چې الله تعالی د ستاسو اسلحې په هغوی مسلطې کړي او د هغوی اسلحې له تاسو څخه بندې کړي، هغوی به ووایي: اې د الله نبي ! دا دریم صورت زمونږ لپاره تر ټولو ډیر اطمناني دی، رسول الله ﷺ خپلې جاري وساتلې او وې فرمایل: په دغه ورځ به تاسو ووینی چې یو قوي الجثه، ډیر څښونکی او خوړونکی یهودي به په دې حالت سره یو په څلور شي مګر د لړزیدو له امله به یې لاس تورې نه رسیږي، د ایمان خاوندان به د دجال په لوري ور شي او په هغه به فتح ترلاسه کړي، کله چې هغه ابن مریم ووینی نو د سیسې په څیر به ویلې کېدل شروع کړي، تر دې چې عیسی ﷺ به هغه را ګیر کړي او قتل به یې کړي [۲].

د عیسی ﷺ په لاس د دجال وژلو قیصه په تفصیل سره په مخکنیو صفحو کې تیره شوه [۳].

---

[۱] مطلب دا دی چې کله مسلمانان په دې خبره متفق شي چې دوی به د سهار له لمانځه وروسته له دجال سره د جهاد کولو لپاره ووځي، نو د لمانځه لپاره به اقامت وویل شي. امام به د لمانځه د امامت لپاره وړاندې ولاړ وي چې عیسی ابن مریم به را نازل شي.

[۲] المصنف لعبد الرزاق: ۱۱/ ۳۹۷.

[۳] وګورئ په علامات کبری کې علامه نمبر (۱).

## عیسی ﷺ به څنګه او چیرته نازلیږي؟

د هغه نزول به د دمشق په مشرق کې د یوه سپین مینار سره نږدې وي، د هغه په بدن به د ورس [1] او زغفرانو دوه رنګې دوه جامې وي او هغه به د دوو فرښتو په وزرو باندې له خپلې اسلحې سره تشریف راوړي.

علامه ابن کثیر رحمه الله ویلي دي چې مشهوره خبر دا ده چې هغه به په دمشق کې په سپین مشرقي مینار باندې را نازلیږي، په دې وخت کې به د لمانځه لپاره اقامت ویل شوی وي، د مسلمانانو امام به له هغه وغواړي: اې روح الله! راشه لمونځ ورکړه، مګر هغه به ووایي: ته په خپله امامت ورکړه ځکه دا اقامت د ستا لپاره ویل شوی دی.

او په یوه روایت کې دي چې په تاسو کې ځینې په ځینو باندې امیران یاست، دا د الله تعالی له لوري د دغه امت اعزاز دی.

د علامه ابن کثیر رحمه الله بیان دی چې د دغه مینار تعمیر زما په زمانه کې په سنه (۷۴۱ هجري) په سپینو تیږو (ډبرو) له نوي سره شوی، د دغه مینار تعمیر د هغو عیسایانو په مال شوی کومو چې په دې ځای باندې موجود پخوانی مینار وسوځاوه، غالباً دا هم شاید د نبي کریم ﷺ د نبوت له واضحو دلایلو څخه یو دلیل وي چې د دغه مینار تعمیر به د عیسایانو په مال سره کیږي، په کوم به چې عیسی ﷺ را نازل شي، خنزیر به ووژني، صلیب به مات کړي او له هغوی څخه به جزیه نه قبلوي [2].

ما (مؤلف) په سنه (۱۴۱۲ هجري) کې په خپله د دمشق په مشرقي علاقه کې دغه سپین مینار ولید د کوم په باره کې چې د هغه ځای په خلکو کې دا مشهوره وه چې عیسی ﷺ به په دې مینار باندې را نازلیږي، ما د هغه عکس هم اخیستی، دا مینار په جومات کې نه دی بلکه د یوه بازار په مینځ

---

[1] - تل کی مانند ایک قسم کی گھاس جس سی کپڑا رنگنی کا کام لیا جاتا هی (سیف).
[2] - النهایة فی الفتن و الملاحم: ۱/ ۱۹۲.

کې دروول شوی، په کومه محله کې چې دا مینار دی د هغې اکثر اوسیدونکي عیسایان دي، ما په خپل کتاب کې دا عکس لګولی، اوس نو دا خبره الله تعالی ته معلومه ده چې عیسی علیه السلام به په دې مینار باندې را نازلیږي او که په کوم بل مینار به تشریف راوړي.

دا هم ویل شوي دي چې د عیسی علیه السلام نزول به د دمشق د جامع مسجد (اموی) په منارونو کې په کوم یوه مینار باندې وي، زه په دې باره کې په پوره وثوق سره کومه خبر نشم کولای (والله اعلم).

نبي کریم صلی الله علیه وسلم د عیسی علیه السلام ټول صفتونه د امت مخته وړاندې کړي او د هغو حالاتو تعین یې هم کړی په کومو کې به چې هغه تشریف راوړي تر څو چې د یوه مسلمان په معلوماتو کې کوم شک او شبه پاتې نشي.

نبي کریم صلی الله علیه وسلم فرمایي: هغه به یو داسې سړی وي!

- درمیانه قد به یې وي، یعنې نه به ډیر اوږد وي او نه لنډ.
- د هغه د مخ رنګ به سپین سوروالي ته به مایل وي.
- هغه به د پراخې سینې درلودونکی وي.
- د هغه ویښتان به سم وي، یعنې تاو شوي به نه وي، ګویا چې د هغه له سر څخه به د اوبو څاڅکي تویږي مګر ویښتان به یې نمجن نه وي.

په خلکو کې به د عروه بن مسعود ثقفي رضي الله عنه په شکل له هغه سره تر ټولو زیات ملاقي کیږي.

حضرت ابو هریرة رضي الله عنه بیان کوي چې رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمایلي:

کله چې ما اسمانونو ته تګ کاوه، زه له موسی علیه السلام سره ملاقي شوم او له عیسی علیه السلام سره مې هم ملاقات وشو، بیا نبي کریم صلی الله علیه وسلم د هغه د حلیه بیانولو په وخت کې وفرمایل: د هغه درمیانه قد او سور بخون رنګ یې دی، ګویا که چې هغه له حمام څخه راوتلی را روان دی [۱].

[۱] - صحیح البخاري، احادیث الانبیاء، حدیث: ۳۴۳۷، وصحیح مسلم، الایمان، حدیث: ۱۲۸.

حضرت ابو هریرة رضي الله عنه بیان کوي چې رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمایلي:
زه په حطیم کې ووم او قریشو له ما څخه زما د معراج سفر په باره کې پوښتنې کولې، هغوی له ما څخه د بیت المقدس متعلق د ځینو داسې شیانو پوښتنې وکړې د کومو متعلق چې ما ته په وثوق سره څه یاد نه وو، له هغوی څخه زه دومره تنګ شوم د کوم چې مثال نشته، نبي کریم صلی الله علیه وسلم فرمایي: چې بیا الله تعالی بیت المقدس زما مخته داسې کړ لکه چې زه د هغه لوري ته ګورم او قریش چې له ما څخه د هغه په باره کومې پوښتنې کوي زه د هغوی په باره کې ځواب ورکوم، ما د معراج په شپه د انبیاؤ ټولی ولید. موسی علیه السلام ولاړ وو لمونځ یې کاوه، یو نا څاپه یو سړی زما مخته راغی ما چې کله ورته وکتل نو هغه عیسی علیه السلام وو کوم چې د لمانځه په حالت کې ولاړ وو. له هغه سره ډیر مشابهت لرونکی عروه بن مسعود رضي الله عنه دی، یو نا څاپه مې په حضرت ابرهیم علیه السلام نظر پریوت هغه هم د لمانځه په حالت کې ولاړ وو. له هغه سره ډیر مشابهت لرونکی دستاسو دغه ملګری دی. یعنې په خپله نبي کریم صلی الله علیه وسلم. د لمانځه وخت شو نو ما د هغوی ټولو امامت وکړ. کله چې زه له لمانځه څخه فارغ شوم نو یوه ویونکي وویل: اې محمد! دا د جهنم داروغه مالک دی. دې ته سلام وکړه. زه چې د هغه لوري ته متوجه شوم نو هغه په سلام کې له ما څخه مخته شو (۱).

نبي کریم صلی الله علیه وسلم دا هم فرمایلي:
ما په خوب کې په خپله کعبه له نږدې ولیدله، یو نا څاپه زما نظر په یوه غنم رنګي باندې ولګید. هغه غنم رنګی یو ښایسته سړی وو. د هغه اوږده اوږده ویښتان وو چې د اوږو اوګو ته رسیدل. د هغه ویښتان نه بیخي تاو شوي او نه بالکل سم وو. بلکه د دواړو په مینځ کې وو. د هغه له سر څخه د اوبو څاڅکي څڅیدل. هغه د دوو سړیو په اوګو باندې خپل دواړه لاسونه ایښي وو

---

(۱) صحیح مسلم. الایمان. حدیث: ۱۷۹.

او د بیت الله طواف یې کاوه، ما پوښتنه وکړه: دا څوک دی؟ راته وویل شول: دا مسیح ابن مریم علیهما السلام دی.

د هغه شا ته مې یو بل کس تلونکی ولید د کوم چې سخت تاو شوي ویښتان وو او په چپه سترګه ړوند وو، ما چې څومره خلک لیدلي په هغوی کې یې ډیر ورته والی له (عبد العزی بن قطن بن عمرو خزاعی) سره درلود، هغه هم د دوو سړیو په اوګو لاسونه ایښي وو او د بیت الله طواف یې کاوه، ما وپوښتل: دا څوک دی؟ راته وویل شول: دا مسیح دجال دی[۱].

## یو اشکال

ځینو خلکو ته په دې خبره باندې په پوهیدلو کې سختي وي چې د حضرت عیسی ابن مریم علیهما السلام او دجال له یوه ځای څخه را پورته کیدل څنګه ممکن دي، ځکه دجال چې کله عیسی ﷺ ویني نو تښتي به؟ او بیا د دجال د کعبې خوا ته تلل څنګه ممکن دي، کله چې په ده باندې مکې ته داخلیدل هم حرام دي؟

## ځواب

دا یو خوب دی کوم چې نبي کریم ﷺ لیدلی، په امر واقع کې داسې نه دی، خو پوښتنه دا ده چې آیا د انبیاء کرامو خوب وحې نه ده؟ حافظ ابن حجر رحمه الله د دې ځواب داسې کړی چې د انبیاء کرامو علیهم السلام خوب اګر چې وحې ده، لیکن په هغو کې ځینې خوبونه داسې دي د کومو چې تعبیر ښه دی او د ځینو نه، ځینو دا ځواب هم کړی چې دجال به مکې او مدینې ته داخل شي، مګر کله چې هغه د دجال او غتې فتنې په ډول را ښکاره شي نو په دې وخت کې به هغه بیا مکې او مدینې ته نشي داخلیدلای، لهذا په دې کې اشکال نشته.

---

[۱] صحیح البخاري، احادیث الانبیاء، حدیث: ۳۴۴۰، وصحیح مسلم، الایمان، حدیث: ۱۲۹.

## د حضرت عیسی ﷷ کار او د هغه د دور واقعات

حضرت عیسی ﷷ به له خپل نزول او د دجال له وژلو وروسته کله چې د مؤمنانو امور او معاملات سم کړي نو لاندني کارونه به تر سره کړي:

✿ د اسلامي حکومت قیام، خلک د شریعت تابع کول او د منحرفو مذاهبو له منځه وړل.

حضرت ابو هریرة رضي الله عنه بیان کوي چې رسول الله ﷺ فرمایلي:

﴿وَالَّذِي نَفْسِي بِيَدِهِ لَيُوشِكَنَّ أَنْ يَنْزِلَ فِيكُمْ ابْنُ مَرْيَمَ حَكَمًا عَدْلًا فَيَكْسِرَ الصَّلِيبَ وَيَقْتُلَ الْخِنْزِيرَ وَيَضَعَ الْجِزْيَةَ﴾ ([1]).

ژباړه:

په هغه ذات قسم د کوم په قبضه کې چې زما روح دی، نږدې ده چې دستاسو په مینځ کې عیسی ابن مریم علیها السلام عادل واکمن جوړ شي او نزول وکړي، هغه به صلیب مات کړي، خنزیر به قتل کړي او جزیه به ختمه کړي (هغه به له هیڅ کافر څخه نه غوښتل کیږي).

✿ د الله تعالی د کلمې پورته کول، د یهودو او نصاری ؤ دغوت باطلول او د جزیې ختمول.

✿ د مسیح دجال وژل.

✿ د خلکو په مینځ کې حکومت کول، د عدل او سلامتي خپرول.

حضرت ابو هریرة رضي الله عنه بیان کوي چې رسول الله ﷺ فرمایلي:

ټول انبیاء د علاتي (پلار شریک) وروڼو په څیر دي، د هغوی میندې جلا جلا دي مګر د ټولو دین یو دی، زه عیسی ابن مریم علیها السلام ته تر ټولو ور نږدې یم، ځکه چې زما او د هغه په مینځ کې کوم نبي نشته، هغه به له شک پرته را نازلیږي، چې هغه وګورئ نو پوهیږئ به چې د درمیانه قد لرونکی، سپین سور والي ته مایل رنګ لرونکی دی، په هغه به له پاسه دوه

[1] صحیح البخاري، احادیث الانبیاء، حدیث: ۳۴۴۸، وصحیح مسلم، الایمان، حدیث: ۱۵۵

رنګې جامې وي، د هغه له سر څخه به اوبه څڅیدونکې معلومیږي مګر د هغه ویښتان به نمجن نه وي، هغه به صلیب ټوټې ټوټې کړي، خنزیر به قتل کړي، جزیه به ختمه کړي او خلک به د اسلام لوري ته را دعوتوي، الله تعالی به د هغه په دور کې له اسلام پرته نور ټول مذاهب ختم کړي، د هغه په وخت کې به الله تعالی مسیح دجال هلاک کړي او پر زمکه به د امن او امان دوره وي تر دې چې زمری به له اوښانو سره، لیوه به له میګو سره یو ځای څري،ماشومان به له مار سره مستي کوي مګر هغه به دوی ته هیڅ نقصان نه رسوي، د هغه حکومت به تر څلویښتو (۴۰) کلونو پورې وي، بیا به هغه وفات شي او مسلمانان به د هغه د جنازې لمونځ وکړي [۱].

✿ د خوشحالي او امن عام کیدل.

✿ د قریشو د واکمني ختمول.

حضرت ابو امامه باهلي رضی الله عنه بیان کوي چې رسول الله ﷺ فرمایلي:

عیسی ابن مریم علیهما السلام به زما په امت کې د عادل واکمن او انصاف کوونکي په څیر تشریف راوړي، هغه به صلیب ټوټې ټوټې کړي، خنزیر به ووژني، جزیه به ختمه کړي او صدقه به پریږدي [۲].

د میګو او اوښانو زکاة به نه اخیستل کیږي، په خپل مینځ کې به دښمني او بغض پورته کړل شي، له هر زهر لرونکي ځناور څخه به زهر لیرې کړل شي [۳] تر دې چې یو ماشوم به د مار په خوله کې لاس ورکړي خو هغه به هیڅ نقصان نشي ورته رسولای، واړه ماشومان به له زمریانو سره لوبې کوئ مګر هیڅ نقصان به نشي ورته رسولای، لیوه به له میګو سره داسې اوسیږي

---

[۱] مسند احمد : ۲/ ۴۰۲، المستدرک للحتکم:۲/ ۵۹۵، وقال: صحیح الاسناد ولم یخرجاه ووافقه الذهبي.

[۲] - مطلب دا دی چې مال به په دومره کثرت سره وي چې هیڅوک به صدقه نه قبلوي، له دې امله چې هر څوک به غني وي.

[۳] - یعنې زهر لرونکي ځناوران لکه مار وغیره، مار او وغیره به زهر نلري.

لکه چې د هغوی یو ساتونکی سپی وي، زمکه به له امن او سلامتۍ څخه داسې ډکه شي لکه چې یو لوښې له اوبو څخه ډک وي، ټول خلک به په یوه کلمه باندې متفق وي او له الله تعالی پرته به د بل هیڅ شي او هیچا عبادت نه کیږي. جنګ او جدال به ختم شي، د قریشو حکومت به ختم شي، زمکه به د سپینو د یوه لوښي په څیر شي، هغه به خپل پیدا وار داسې ورکوي لکه څنګه یې چې د حضرت آدم ﷺ په وخت کې ورکاوه تر دې چې یو شمیر خلک به د انګور په یوه وښکالي سره را یو ځای شي او دا یو وښکالی به د هغوی ټولو خیټې ډکې کړي، همدا شان ډیر خلک به په یوه انار سره را یو ځای شي او دا یو انار به هغه ټول ماړه کړي، د میښ قیمت به ډیر کم وي او آس به په څو درهمو پیدا کیږي (۱)

✿ دستاسو بغض به ختم کړل شي، حسد او کینه به له زړونو لیرې کړل شي.

حضرت ابو هریرة ﷺ بیان کوي چې رسول الله ﷺ فرمایلي:

د مسیح ﷺ له راتګ وروسته ژوند کوونکو ته دې مبارک وي، آسمان ته به د باران ورولو او زمکې ته به د نباتاتو را زغونولو عامه اجازه وکړی شي تر دې که تاسو په کومه صفا ستره ډبره (تیږه) باندې هم کوم تخم واچوی نو هغه به را زرغون شي، یو انسان به له زمري سره په خوا کې تیریږي هغه ته به هیڅ نقصان نشي رسولای، که په کوم مار پښه کیښودل شي نو هغه به هم کوم نقصان نشي رسولای، په دې وخت کې به په تاسو کې نه دښمني وي نه حسد او نه بغض (۲).

✿ د جنګونو او قتل ورکول.

له حضرت ابو هریرة ﷺ څخه روایت دی چې رسول الله ﷺ فرمایلي:

---

۱ - سنن ابن ماجه، الفتن، حدیث: ۴۰۷۷.

۲ - مسند الفردوس للدیلمي: ۲/ ۴۵۰، وسلسلة الاحادیث الصحیحة: ۴ / ۵۵۹.

عیسی ﷺ به عادل امام او انصاف کوونکی واکمن به را نازل شي، هغه به صلیب ټوټې ټوټې کړي، خنزیر به قتل کړي، امن او سلامتي به راولي او له تورو څخه به درانتي [۱] (لرونه) جوړ کړي.

له هر زهرجن ځناور څخه به زهر لیرې کړل شي، آسمان به خپل رزق نازل کړي، زمکه به خپل برکات د باندې را وباسي، تر دې چې یو ماشوم به له مار سره لوبې کوي، لیوه به میګې څروي او هغوی ته به هیڅ نقصان نه رسوي. زمری به غواوې څروي او هغوی ته به هیڅ نقصان نه رسوي [۲].

## د حضرت عیسی ﷺ د ملګریو مقام

حضرت ثوبان ﷺ بیان کوي چې رسول الله ﷺ فرمایلي:

﴿عصابتان من امتي احرزهما الله من النار، عصابة تغزوالهند، وعصابة تکون مع عیسی ابن مریم علیهما السلام﴾

ژباړه:

زما په امت کې دوه ډلې داسې دي کومې چې الله تعالی له جهنم څخه بچ کړې دي، یوه هغه ډله ده کومه به چې په هند باندې حمله وکړي او دویمه ډله هغه ده کومه به چې له عیسی ﷺ سره وي [۳].

## په ټولو انبیاؤ علیهم السلام کې یواځې د عیسی ﷺ په نازلیدو کې حکمت

شاید تاسو ته په ذهن کې دا پوښتنه پیدا شوې وي چې په اخره زمانه کې د نزول لپاره په ټولو انبیاء کرامو علیهم السلام کې د حضرت عیسی ﷺ انتخاب څنګه وشو؟

---

[۱] درانتي: هغه اله ده په کومې سره چې د فصلونو لو کیږي لکه زمونږ په وخت کې مثلا (لور. لرې وغیره) (ژباړن) مطلب دا دی چې د کفر خاتمه. د جنګونو ورکول. هر لورې ته امن او خوشحالي او د زړونو د سلامتي له امله به خلک تورو ته هیڅ ضرورت نلري او هغوی به له تورو څخه د لرونو کار اخلي او په هغه به فصلونه ریبي.

[۲] مسند احمد: ۴۸۲/۲. وقال الهیثمي في مجمع الزوائد: ورجاله رجال الصحیحین.

[۳] سنن نسائي. الجهاد. حدیث: ۳۱۷۵.

د حضرت عیسی علیه السلام په نزول کې حکمت څه دی؟ په دې باره کې د علم خاوندانو څو خبرې کړې دي چې په لاندې ډول ذکر کیږي:

✿ د یهودیانو د دې دعوې رد مقصود دی چې مونږ عیسی علیه السلام وژلی، الله تعالی د دوی دا دروغ ښکاره کوي، یهودو هغه نه دی وژلی، بلکه هغه به یهود او د هغوی رئیس دجال وژني، د حافظ ابن حجر رحمه الله په نزد دا قول له نورو څخه راجح دی (۱).

✿ حضرت عیسی علیه السلام په انجیل کې د امت محمدي صلی الله علیه وسلم په باره کې ویلي لکه چې الله تعالی جل جلاله فرمایي:

﴿وَ مَثَلُهُمْ فِي الْاِنْجِيْلِ ۚ كَزَرْعٍ اَخْرَجَ شَطْئَهٗ فَاٰزَرَهٗ فَاسْتَغْلَظَ فَاسْتَوٰى عَلٰى سُوْقِهٖ﴾ (۲).

ژباړه:

دا اوصاف هغه اوصاف دي چې مثالونه یې په تورات کې بیان شوي دي او دا هغه اوصاف دي چې مثالونه یې په انجیل کې بیان شوي دي لکه هغه کښت چې را وباسي ځانګې خپلې بیا یې ملا خپله ټینګه کړي؛ بیا کلکه او پریړه شي دغه ځانګه او ودریږي دغه کښت پس له ضعیفي او نرمي نه په پنډیو او بیخونو خپلو باندې.

هغه له الله تعالی څخه دعا غوښتې چې هغه د دې امت یو فرد جوړ شي، الله تعالی د هغه دا دعا قبوله کړې او هغه یې پاتې کړی تر څو چې په آخره زمانه کې د حضرت محمد صلی الله علیه وسلم دین (اسلام) د شعائرو مجدد جوړ شي او تشریف راوړي.

✿ د حضرت عیسی علیه السلام زمکې ته را نازلیدل د هغه د مرګ د نږدیوالي باعث دی تر څو چې هغه په زمکه کې دفن کړای شي، ځکه چې له خاورې

---

۱- فتح الباري، شرح صحیح البخاري، الجهاد، حدیث: ۳۴۴۹.
۲- الفتح، یة: ۲۹.

څخه پيدا شوي هر مخلوق لپاره دا لايقه ده چې په زمکه کې وفات شي او په هغې کې دفن کړای شي، د هغه نزول به د دجال په زمانه کې وي او هغه به دجال وژني.

✿ هغه به د عيسايانو د تکذيب لپاره را نازليږي، د هغه په راتګ سره به د نصارئ ؤ دا دعوه دروغ ثابته شي چې هغه د الله زوی دی، الله تعالی به د هغه په زمانه کې له اسلام پرته نور ټول دينونه ختم کړي، هغه به صليب مات کړي، خنزير به قتل کړي او جزيه به ختمه کړي.

✿ د حضرت محمد ﷺ او حضرت عيسی عليه السلام په مينځ کې يو خاص قسم ربط دی:

د الله تعالی رسول ﷺ فرمايي:

﴿انا اول الناس بعيسى ابن مريم ليس بيني وبينه نبي﴾ ([1]).

ژباړه: زه عيسی عليه السلام ته تر ټولو ډير نږدې يم، ځکه چې زما او د هغه په مينځ کې هيڅ نبي نشته.

رسول الله ﷺ په ټولو خلکو کې له حضرت عيسی عليه السلام سره يو خاص قسم ربط لرونکی او له هغوی څخه نږدې دی، حضرت عيسی عليه السلام خلکو ته د حضرت محمد ﷺ د راتلو خوشخبري ورکړې وه چې هغه به له ده څخه وروسته راشي، هغه خلکو ته د حضرت محمد ﷺ د تصديق او په هغه ﷺ باندې د ايمان راوړو دعوت ورکړی وو لکه چې الله تعالی جل جلاله فرمايي:

﴿ وَإِذْ قَالَ عِيسَى ابْنُ مَرْيَمَ يَٰبَنِيٓ إِسْرَٰٓءِيلَ إِنِّي رَسُولُ اللَّهِ إِلَيْكُم مُّصَدِّقًا لِّمَا بَيْنَ يَدَيَّ مِنَ التَّوْرَىٰةِ وَمُبَشِّرًۢا بِرَسُولٍ يَأْتِي مِنۢ بَعْدِي اسْمُهُۥٓ أَحْمَدُ ۖ فَلَمَّا جَآءَهُم بِالْبَيِّنَٰتِ قَالُوا هَٰذَا سِحْرٌ مُّبِينٌ ﴾ ([2]).

---

[1] مسند احمد: ۲/ ۴۲۳. قال المناوي: اسناده حسن.

[2] الصف، آية: ۶.

ژباړه : یاد کړه اې محمده ! هغه وخت چې وویل عیسی زوی د مریمې داسې چې اې بني اسرائیلو (اولاده د یعقوب) بیشکه زه رسول لیږلی شوی د الله یم تاسې ته (حال دا چې تصدیق کونکی یم) د هغه کتاب چې وړاندې ځما دی له توریت څخه او زیری کونکی یم په هغه رسول سره چې را به شي وروسته له ما څخه چې نوم د هغه احمد دی بیا (وائي الله) کله چې راغی هغه رسول دویته په ښکاره ؤ معجزو سره وویل (بني اسرائیلو) دا (قران) سحر کوډې دي ښکاره.

په یوه حدیث کې راغلي چې صحابه کرامو رضی الله عنهم عرض وکړ: اې د الله رسوله ! مونږ ته د ځان په باره کې ووایه نو نبي کریم ﷺ ورته وویل: هو ! زه د خپل پلار ابراهیم علیه السلام دعا او د خپل ورور عیسی علیه السلام زیری یم ([1]).

## زمونږ نبي حضرت محمد ﷺ مونږ ته حکم کړی چې مونږ عیسی علیه السلام ته د هغه ﷺ سلام ورسوو

حضرت ابو هریرة رضي الله عنه بیان کوي چې رسول الله ﷺ فرمایلي:

﴿یوشك المسیح عیسی بن مریم أن ینزل حکما قسطا وإماما عدلا فیقتل الخنزیر ویکسر الصلیب وتکون الدعوة واحدة فأقرئوه أو أقرئه السلام من رسول الله صلی الله علیه و سلم وأحدثه فیصدقني﴾ ([2]).

ژباړه : نږدې ده چې عیسی علیه السلام به انصاف کوونکی واکمن او عادل امام به تشریف راوړي، هغه به خنزیر قتل کړي، صلیب به ټوټې ټوټې کړي او په دې وخت کې به دعوت یواځې یو وي، تاسو د رسول الله ﷺ له لوري په هغه سلام ووایی، زه چې څه بیانوم هغه به د هغه تصدیق کوي.

په یوه بل روایت کې دي:

[1] - مسند احمد : ۵/ ۲۶۲.

[2] - مسند احمد : ۲/ ۳۹۴ (حسن).

﴿انى لأرجو ان طال بي عمر أن ألقى عيسى بن مريم عليه السلام فإن عجل بي موت فمن لقيه منكم فليقرئه مني السلام﴾ ([1]).

ژباړه:

زما امید دی که زما عمر اوږد شو نو زه به له عیسی ﷺ سرهووینم او که زه زر وفات شم نو په تاسو کې چې کوم یو هم له عیسی ابن مریم علیهما السلام سره ملاقي شی هغه دې زما له لوري په هغه باندې سلام ووایي.

## له را نازلیدو وروسته به عیسي ﷺ خومره موده په زمکه کې وي

عیسی ﷺ به په زمکه کې تر څلویښت (۴۰) کلونو پورې ژوند کوي، د هغه په زمانه کې به خلک له خوشحالي، سلامتي او عدل سره اوسیږي، په دې باندې د حضرت ابو هریرة رضي الله عنه هغه حدیث دلالت کوي کوم مو چې تر دې وړاندې بیان کړ چې نبي کریم ﷺ فرمایلي:

﴿الأنبياء إخوة لعلات أمهاتهم شتى ودينهم واحد وأنا أولى الناس بعيسى بن مريم لأنه لم يكن بيني وبينه نبي الى ان قال: فيمكث أربعين سنة ثم يتوفى ويصلي عليه المسلمون﴾ ([2]).

ژباړه: ټول انبیاء کرام علیهم السلام د علاتي (پلار شریک) ورونه دي، د هغوی میندې جلا جلا دي مګر دین د ټولو یو دی، زه له خلکو ښخه ډیر حضرت عیسی ﷺ ته ور نږدې یم، ځکه چې د هغه او زما تر مینځ کوم نبي نشته.

تر دې چې نبي کریم ﷺ وفرمایل: هغه به په زمکه کې تر څلویښت (۴۰) کلونو اوسیږي، بیا به وفات شي او مسلمانان به د هغه د جنازې لمونځ وکړي.

حضرت ابوهریرة رضي الله عنه د دې آیت کریمه ﴿وَإِنَّهُ لَعَلْمٌ لِّلسَّاعَةِ﴾ په تفسیر کې فرمایي:

---

[1] مسند احمد: ۲/ ۲۹۸. (اسناده صحیح).

[2] - مسند احمد: ۲/ ۴۰۲ (صحیح).

له دې ځخه مراد د عیسی ﷺ خروج دی، هغه به په زمکه کې تر څلويښت (۴۰) کلونو پورې اوسيږي، دا څلويښت کلونه به د څلورو کلونو په څير وي، هغه به حج او عمره هم کوي ([1]).

## حضرت عیسی ﷺ به حج کوي

حضرت ابو هريرة ﷺ بیان کوي چې رسول الله ﷺ فرمایلي:

﴿والذی نفسي بیده ! لیهلن ابن مریم بفج الروحاء حاجا او معتمرا او لیثنینهما﴾ ([2]).

ژباړه:

په هغه ذات قسم د کوم په لاس کې چې زما روح دی ! عیسی ابن مریم علیهما السلام به ضرور له (فج روحاء) ځخه د حج یا عمرې احرام وتړي یا به دا دواړه یو ځای اداء کړي.

مطلب دا دی چې عیسی ﷺ به د (فج روحاء) له مقام ځخه تلبیه شروع کړي، دا ځای د مکې مکرمې او مدینې منورې په درمیاني لارې باندې واقع دی، د هغه احرام به د حج تمتع لپاره وي، یعنې اول به عمره وکړي احرام به خلاص کړي او بیا به د حج لپاره په دویم ځل احرام وتړي، یا بیا به حج قران وکړي، یعنې په یوه احرام سره به عمره او حج اداء کړي.

---

[1] - مسند عبد بن حمید. دا د اثر مرفوع حدیث په حکم کې دی. ځکه دا رنګه خبرې صحابي له ځپلې رایه ځخه نشي کولای.
[2] - صحیح مسلم. الحج. حدیث: ۱۲۵۲.

# د یاجوج ماجوج را وتل

## ضروري خبره

یاجوج ماجوج [1] د بني آدم دوه غټې شریرې قبیلې یا قومونه دي لکه د نبي کریم ﷺ په یوه حدیث سره چې ثابت شوي

د آدم په اولاده کې دي او انسانان دي، دا خلک د ذوالقرنین په زمانه کې د یوه فساد خپره وونکي قوم په څیر مخته راغلل، د هغوی ګاونډیانو له ذوالقرنین څخه وغوښتل چې د دوی او د یاجوج ماجوج تر مینځ دې دیوال جوړ کړي تر څو چې دوی د هغوی له شر او ضرر څخه خلاص شي. او ذوالقرنین همدا دیوال جوړ کړ.

نبي کریم ﷺ خبر ورکړی چې په آخره زمانه کې به د حضرت عیسی علیه السلام له نزول وروسته یاجوج ماجوج د خلکو لوري ته راووزي او په زمکه کې به خپاره (تیت) شي، هغوی به حضرت عیسی علیه السلام او د هغه مؤمن ملګري د

---

[1] کومه خبره چې د یاجوج ماجوج په باره کې مشهوره ده او ځینو غیر معتمدو کتابونو هم د هغې ذکر کړی چې په هغوی کې ځیني ډیر واړه او ځیني ډیر لوی دي تر دې چې په هغوی کې به یو کس خپل غوږ ځانته پر زمکه وغوړوي او بل غوږ به له خپل ټول بدن څخه را تاو کړي. دا او د بېته ورته نورې خبرې ټولې یې کوم اصل نلري.

بیت المقدس په غره کې محاصره کړي او مؤمنان به له سختو مشکلاتو سره مخ کړي!

په دې وخت کې به الله تعالی په یاجوج ماجوج باندې یو چینجی مسلط شي کوم به چې د هغوی غاړې خوري، په همدې سره به هغوی ټول یو ځای هلاک کړی شي او الله تعالی به عیسی ﷺ او د هغه ملګري د یاجوج ماجوج له شر څخه بچ وساتي، لاندې د هغوی واقعات په تفصیل سره بیانیږي:

## په یاجوج ماجوج باندې د جوړ شوي دیوال قیصه

الله تعالی په خپل مقدس کتاب قرآن مجید کې د یوه نیک بادشاه ذوالقرنین قیصه بیان کړې او فرمایي:

﴿ثُمَّ أَتْبَعَ سَبَبًا ﴿٩٢﴾ حَتَّىٰ إِذَا بَلَغَ بَيْنَ السَّدَّيْنِ وَجَدَ مِن دُونِهِمَا قَوْمًا لَّا يَكَادُونَ يَفْقَهُونَ قَوْلًا ﴿٩٣﴾ قَالُوا يَا ذَا الْقَرْنَيْنِ إِنَّ يَأْجُوجَ وَمَأْجُوجَ مُفْسِدُونَ فِي الْأَرْضِ فَهَلْ نَجْعَلُ لَكَ خَرْجًا عَلَىٰ أَن تَجْعَلَ بَيْنَنَا وَبَيْنَهُمْ سَدًّا ﴿٩٤﴾ قَالَ مَا مَكَّنِّي فِيهِ رَبِّي خَيْرٌ فَأَعِينُونِي بِقُوَّةٍ أَجْعَلْ بَيْنَكُمْ وَبَيْنَهُمْ رَدْمًا ﴿٩٥﴾ آتُونِي زُبَرَ الْحَدِيدِ ۖ حَتَّىٰ إِذَا سَاوَىٰ بَيْنَ الصَّدَفَيْنِ قَالَ انفُخُوا ۖ حَتَّىٰ إِذَا جَعَلَهُ نَارًا قَالَ آتُونِي أُفْرِغْ عَلَيْهِ قِطْرًا ﴿٩٦﴾ فَمَا اسْطَاعُوا أَن يَظْهَرُوهُ وَمَا اسْتَطَاعُوا لَهُ نَقْبًا ﴿٩٧﴾﴾ (١).

ژباړه:

بیا ونیوله ده بله لیاره او تیار یې کړ نور اسباب تر هغې پورې چې ورسید مینځ د دوو غرونو ته نو وې موند را وړاندې د دغو دواړو (غرونو) داسې قوم چې نه ؤ نږدې (اکثر د دوی) چې وپوهیږي په خبره (د ذوالقرنین)

---

١ - الکهف، آية: ٩٢ - الی ٩٧.

باندې ؛ وويل دغو (ترجمانانو) اې ذوالقرنينه ! بيشکه چې ياجوج ماجوج فساد کونکي دي په زمکه کې پس آيا حکم کوې ته چې مقرر کړو تا ته څه خرج محصول په دې شرط چې جوړ کړې ته په مينځ زمونږ او په مينځ د دوی کې يو ديوال ؛ وويل ذوالقرنين هغه چې اقتدار راکړی دی ما ته په هغه شي کې رب زما خير ډير غوره دی (له ورکړې د ستاسې نه چې محصول دی) پس مرسته وکړی تاسې له ما سره په زيار زما کې ټول په انساني قوت او عمل نه په مال سره چې جوړ کړم په مينځ د ستاسې او په مينځ د دوی کې يو پلن او محکم ديوال ؛ راوړی تاسې ما ته تختې د اوسپنې؛ تر هغه پورې يې اينبودلې چې برابرې شوې دا تختې په مينځ د دوو څوکو د غرونو نو وويل (ذوالقرنين) چې پوکړئ !؛ (په دغو سکرو چې اچول شوي دي په مينځ د تختو د اوسپنې نو پو يې کړل) تر څو چې يې وګرځوله دغه (اوسپنه) اور وويل (ذوالقرنين) راوړئ ما ته چې توی يې کړم په دې ديوال ويلې شوي مس ؛ پس ونه کړای شول دوی چې وخيږي په هغه (او ښکاره شي پرې له جهته د لوړ والي او ښويوالي) او ونه کړای شول دوی دغه (غره) لره سوری کول (له جهته د سختوالي او پلنوالي).

ذ اهل علمو د يوه راجح قول مطابق هغه يو نيک بادشاه وو، نبي نه وو. هغه ته ذوالقرنين له دې امله ويل کيږي چې هغه د مشرق او مغرب سفر کړی او هغو ځايونو ته رسيدلی چيرته چې د شيطان د ښکرونو په مينځ کې د لمر را ختل (طلوع) او لويدل (غروب) کيږي. ذوالقرنين (سکندر مقدوني) نه دی بلکه له هغه پرته بل څوک دی. ځکه چې سکندر کافر وو او د هغه زمانه له ذوالقرنين څخه له دوه زره کلونو يو څه زياته وروسته وه (والله اعلم)

الله تعالی د هغه قيصه په قرآن کريم کې بيان کړې او فرمايلي يې دي چې هغه په ټوله زمکه باندې سفر کړی. مونږ دلته يواځې د هغو آياتونو مطلب ذکر کوو د کومو تعلق چې د ذوالقرنين او ياجوج ماجوج له قيصې سره دی.

﴿ثُمَّ اَتۡبَعَ سَبَبًا﴾ بیا وښودله ده (بله) لیاره او تیار یې کړ نور اسباب، یعنې هغه د مشرق او مغرب په یوه بله لار ولاړ کومه چې د دغو لوړو غرونو په شمالي لوري کې ده.

﴿حَتّٰٓى اِذَا بَلَغَ بَيۡنَ السَّدَّيۡنِ﴾ تر دې چې هغه یوه داسې ځای ته ورسید کوم چې د ترکو په زمکه کې د آرمینیا او ازربائجان له سرحد سره نږدې واقع دی.

(السدان) معنا یې ده دوه غرونه، د هغوی په مینځ کې خالي ځای دی، له کوم ځخه چې یاجوج ماجوج را وځي، هغوی د ترکو په علاقه کې فساد کوي، فصلونه او نسلونه تباه کوي (١).

کله چې ترکو له ذوالقرنین سره قوت ولید نو دوی ته اندازه وشوه چې دا بادشاه صاحب د اختیار او صلاحیت دی، هغوی ور ځخه وغوښتل چې د دوی او د یاجوج او ماجوج تر مینځ د لارې بندولو لپاره یو دیوال ودروي تر څو چې یاجوج ماجوج پر دوی حمله ونکړي، د دغه کار لپاره ترکو بادشاه ته د مالي عوض خبره هم وکړه، لیکن دغه نیک بادشاه پرته له کومې معاوضې یواځې د خیر په بنیاد او له الله تعالی ځخه د اجر او ثواب لپاره د دغه دیوال د جوړولو فیصله وکړه او هغه دې نتیجې ته ورسید چې د دې مسئلې آسان حل دا دی چې د دواړو غرونو په مینځ کې تیریدونکې لار په یوه مضبوط (کلک) دیوال سره بنده کړی شي او ترکو ته یې وویل چې د افرادو په قوت له ده سره مرسته وکړي:

﴿فَاَعِيۡنُوۡنِىۡ بِقُوَّةٍ اَجۡعَلۡ بَيۡنَكُمۡ وَبَيۡنَهُمۡ رَدۡمًا﴾ پس مرسته وکړئ تاسې له ما سره په زیار زما کې ټول (په انساني قوت او عمل سره نه په مال) سره چې جوړ کړم په مینځ دستاسې او په مینځ د دوی کې یو پلن او محکم دیوال.

---

١- تفسیر ابن کثیر. الکهف ۱۸: ۹۲ـ ۹۳.

پادشاه د اوسپنې غټې ټوټې د دواړو غرونو په مینځ کې په ترتیب سره کېښودې او بیا یې ووېل ﴿انْفُخُوْا﴾ پو کړئ (په دغو سکرو چې اچول شوي دي په مینځ د تختو د اوسپنې نو پو یې کړل) ﴿حَتّٰٓى اِذَا جَعَلَهٗ نَارًا﴾ تر څو چې یې وګرځوله دغه اوسپنه اور ﴿قَالَ اٰتُوْنِيْٓ اُفْرِغْ عَلَيْهِ قِطْرًا﴾ ووېل (ذوالقرنین) راوړئ ما ته چې تو یې کړم په دې دیوال ویلې شوي مس، په دې سره د اوسپنې ټوټې په ډېر مضبوط شکل کې له یوې بلې سره پیوند شوې او د یوه سخت غره په څېر جوړې شوې.

د دغه دیوال د لوړ والي له امله د یاجوج ماجوج لپاره په هغه باندې پورته ختل ممکن نه دي، د دیوال د مضبوطوالي او پلنوالي له امله په هغه کې سوری کول هم هغوی ته ممکن نه دي، د دغه مضبوط او محکم دیوال په ذریعه ذوالقرنین د یاجوج ماجوج لار بنده کړه.

## یاجوج ماجوج څوک دي؟

یاجوج ماجوج د طالوت او جالوت په څېر یو عجمي نوم دی، دا د آدم ﷺ له اولادې څخه دي او له بشري نوع سره تعلق لري، حافظ ابن حجر رحمه الله دې خبرې ته ترجیح ورکړې چې هغوی د یافث بن نوح له اولادې څخه دوه قبیلې دي (۱).

د حضرت عمران بن حصین رضي الله عنه له حدیث څخه هم د دې تایید کېږي. هغه روایت کړی چې:

نبي کریم ﷺ یو ځل په سفر کې وو چې د صحابه و او د ده په مینځ کې یو څه فاصله پیدا شوه، نبي کریم ﷺ دا دوه آیتونه په اوچت آواز سره تلاوت کړل:

(۱)- فتح الباري. شرح صحیح البخاري. احادیث الانبیاء. حدیث: ۳۳۴۶، ۳۳۴۸- ۱۳/ ۱۰۶

﴿يَأَيُّهَا النَّاسُ اتَّقُوا رَبَّكُمْ ۚ إِنَّ زَلْزَلَةَ السَّاعَةِ شَيْءٌ عَظِيمٌ ۝ يَوْمَ تَرَوْنَهَا تَذْهَلُ كُلُّ مُرْضِعَةٍ عَمَّا أَرْضَعَتْ وَ تَضَعُ كُلُّ ذَاتِ حَمْلٍ حَمْلَهَا وَ تَرَى النَّاسَ سُكْرَى وَمَا هُمْ بِسُكْرَى وَلَكِنَّ عَذَابَ اللهِ شَدِيدٌ ۝﴾(١).

ژباړه:

اې خلکو ځان وساتئ (ووېرېږئ) تاسې له عذاب د رب خپل؛ بیشکه زلزله د قیامت یو شی دی ډېر لوی ؛ په هغه ورځ چې ووینی تاسې هغه چې غافله به شي هره تی ورکونکې (د دې ورځې له هیبت څخه) له هغه وړوکي چې تی ورکوي هغه ته او وبه غورځوي هره میرمن حامله (امید واره) حمل (بچی) خپل او وبه وینې ته خلق بې سده (له هیبت نه) حال دا چې نه به وي په واقع سره دوی بې سده ولیکن عذاب د الله دی ډېر سخت (نو د قیامت ورځې له ویرې به بې سده وي).

صحابه کرامو رضی الله عنهم چې آواز واورید نو خپلو سپرلیو ته یې حرکت ورکړ او پوه شول چې د الله رسول ﷺ هلته دی له کوم ځای څخه چې دا آواز راغی، کله چې هغوی له نبي کریم ﷺ څخه را جمع شول نو نبي کریم ﷺ وفرمایل: اې خلکو! تاسو پوهیږی چې هغه ورځ به څنګه وي؟ په دغه ورځ به ادم ﷺ ته آواز وشي او د هغه رب به هغه ته ووایي: اې آدم! یوه ډله د اور لوري ته روانه کړه. هغه به پوښتنه وکړي: اې زما رب ﷻ! جهنم ته رسیدونکې ډله کومه ده؟ الله تعالی به وفرمایي: په هرو زرو کې نه سوه نه نوي (۹۹۹) به جهنم ته ځي او یو به جنت ته ځي، حضرت عمران ﷺ فرمایي: چې د ویرې او حیرانتیا له امله د صحابه کرامو ژبې ګونګې شوې او له هغوی څخه خندا ورکه شوه، کله چې نبي ﷺ د هغوی دا پریشاني ولیده نو وې فرمایل: عمل کوی او خوشحاله اوسی، په هغه

---

(١) الحج آیه ١ ٢.

ذات مې دې قسم وي د کوم په لاس کې چې د محمد ﷺ روح دی، تاسو خلک له دوو داسې مخلوق سره یې چې کله هم هغوی د کوم شي په مقابله کې شي نو په کثرت سره به په هغوی غالب راځي، یو یاجوج ماجوج او بل د بنوآدم او بنو ابلیس لخوا هلاک شوي، عمران رضي الله عنه وایي: په دې سره د صحابه کرامو پریشاني او ویره لیرې شوه، نبي کریم ﷺ وفرمایل: عمل کوی او خوشحاله اوسی، په هغه ذات قسم د کوم په لاس کې چې د محمد ﷺ روح دی، تاسو د خلکو په مینځ کې داسې یاست لکه د اوښ په مخ کې توره نښه (نښان) یا د کوم څناور په بازو کې یوه وړه دائره (۱).

## د هغوی جسماني کیفیت

حضرت خالد بن عبد الله بن حرمله له خپل خاله څخه روایت کوي چې رسول الله ﷺ یو ځل په داسې حال کې خطبه ورکوله او نبي کریم ﷺ خپل سر مبارک په تړوته تړلی وو، نبي کریم ﷺ وفرمایل:

﴿انکم تقولون، لا عدو، وانکم لن تزالوا تقاتلون عدوا حتی یاتی یاجوج وماجوج عراض الوجوه، صغار العیون، صهب الشعاف، من کل حدب ینسلون، کان وجوههم المجان المطرقة﴾ (۲).

ژباړه: تاسو وایئ چې هیڅ دښمن نشته، حالانکه تاسو به همیشه جنګیږئ تر دې چې یاجوج ماجوج راشي، د پراخو تندو والا، د وړو وړو سترګو واله او سوروالي ته مایل د تورو ویښتانو والا، هغوی به له هر لوړ ځای څخه په منډه منډه راځي، مخونه د هغوی به داسې وي لکه ګرد ډالونه.

(صهب الشعاف) یعنې د هغوی د ویښتانو رنګ به تور وي په کومو کې به چې سوروالی هم وي.

---

۱ مسند احمد ۴/ ۴۳۵، جامع الترمذي، تفسیر القرآن، حدیث: ۳۱۲۹، وقال: حدیث حسن صحیح.

۲ مجمع الزوائد ۸/ ۱۳، ومسند احمد ۵/ ۲۷۱، والطبراني ورجاله رجال الصحیح.

(كان وجوههم المجان المطرفة) (المجن) ډال ته ويل کيږي، د هغوی د څيرو تشبيه يې له ډال سره له دې وجهې وركړه څكه چې هغه به پراخ او ګرد وي او (المطرفة) له دې امله ورته ويل کيږي چې هغه به له غوښې ډک وي (من حدب ينسلون) يعني له هر لوري ځای څخه به هغه په تيزي سره راووزي او په زمكه کې به خپاره (تيت) شي.

## هغوی ديوال څنګه سوری کوي؟

دا خبره مخکې تيره شوه چې ياجوج ماجوج دوه قبيلې دي، هغوی په زمكه کې په انواعو او اقسامو سره فسادونه او فتنې برپا کول چې ذوالقرنين د هغوی د بندولو لپاره ديوال جوړ کړ، دا ديوال د دوی او د عامو خلكو په مينځ کې حائل دی، د هغوی د ژوندګي او ژوند کولو يوه ځانګړې طريقه ده، ياجوج ماجوج تل د دغه ديوال د ړنګولو په كوښښ کې مشغول دي او په هغه کې د سوري كولو كوشش جاري ساتي.

حضرت ابو هريرة ﷺ بيان کوي چې رسول الله ﷺ د دغه غار په باره کې فرمايلي:

ياجوج ماجوج هره ورځ هغه سوری کوي، کله چې په هغه کې سوري كولو ته نږدې شي نو د هغوی سردار (مشر) ووايي: راځئ صبا به د دې په ماتولو کې کامياب شو، کله چې هغوی بيا راشي نو الله تعالى هغه له پخوا څخه هم ډير مضبوط كړی وي، مګر کله چې د هغوی موده پوره شي او الله تعالى د خلكو لور ته د هغوی د راليږلو اراده وكړي نو په دغه ورځ به د هغوی سردار ووايي: راځئ: انشاء الله تاسو به صبا ورځ په دې کې سوری وکړئ [1] د هغوی سردار به له همدې ويلو سره انشاء الله هم ووايي، نبي کريم ﷺ فرمايلي: دوی به په دې ورځ هم بيرته راشي.

---

[1] يعني کله چې هغوی انشاء الله ووايي او خپل تصرف او خپلې فيصلې د خ... په ځای الله تعالى ته وسپاري نو هغوی تول به کامياب شي

صبا ورځ چې کله دوی راشي نو دیوال به د پخوا په څیر وي (۱) نو هغوی به دیوال مات کړي او را وبه ووځي او په خلکو باندې به حملې شروع کړي، هغوی به د خلکو تړولې اوبه وڅښي، خلک به هغوی ویني او تښتي به. هغوی به خپل غیشي د آسمان لور ته وار کړي او د هغوی غیشي به په وینو لړلی بیرته واپس راشي (۲).

## له دې حدیث څخه دری خبرې ثابتیږي

۞ الله تعالی هغوی شپه او ورځ له کار کولو څخه منع کړي، که چیرته هغوی داسې وکړي نو ممکن ده چې هغوی سوری وکړي.

۞ الله تعالی هغوی ته دا توفیق هم نه دی ورکړی چې هغوی د کومې قوي آلې په ذریعه په دیوال باندې د کار کولو کوشش وکړي، الله تعالی د هغوی په خیال کې دا خبره نه ده ور اچولې او نه یې هغوی ته دا ور ښودلې ده. ممکن ده چې هغوی د داسې کولو په کوشش کې وي، مګر د دیوال د لوړ والي او پلنوالي له امله دوی له داسې کولو څخه عاجز دي.

۞ الله تعالی هغوی ته تر ټاکلي وخت او تر قرب قیامت پورې د انشاء الله ویلو توفیق نه دی ورکړی.

له حدیث پاک څخه دا هم معلومیږي چې په هغوی کې کاریګر، واکمن او بادشایان هم شته دي او د هغوی رعیت د یوه نظام او کنترول ماتحت کار کوي، دا هم معلومیږي چې په هغوی کې ځینې داسې هم دي کوم چې د الله تعالی ذات پیژني او د هغه په قدرت او مشیت باندې اعتراف کوي.

---

۱ - یعني څومره چې دوی ژور کړی وي، الله تعالی به بیرته نه وي مضبوط کړی او په هغه حال به پاتې وي.

۲ - مسند احمد :۲/ ۵۱۰، وجامع الترمذي، تفسیر القرآن، حدیث : ۳۱۵۳، والمستدرک للحاکم:۴/ ۴۸۸، وقال: صحیح علی شرط الشیخین، ووافقه الذهبي.

د دې امر هم امکان شته چې د هغوی د واکمن په ژبه به د (انشاء الله) کلمه د هغې په معنا له پوهیدلو پرته راشي او د هغې په برکت به دوی مقصد تر لاسه کړي [1].

## د یاجوج ماجوج په باره کې قراني ایاتونه

﴿ وَ يَسْـَٔلُوْنَكَ عَنْ ذِی الْقَرْنَيْنِ ؕ قُلْ سَاَتْلُوْا عَلَيْكُمْ مِّنْهُ ذِكْرًا ؕ اِنَّا مَكَّنَّا لَهٗ فِی الْاَرْضِ وَ اٰتَيْنٰهُ مِنْ كُلِّ شَیْءٍ سَبَبًا ۙ فَاَتْبَعَ سَبَبًا حَتّٰۤی اِذَا بَلَغَ مَغْرِبَ الشَّمْسِ وَجَدَهَا تَغْرُبُ فِیْ عَیْنٍ حَمِئَةٍ وَّ وَجَدَ عِنْدَهَا قَوْمًا ؕ۬ قُلْنَا یٰذَا الْقَرْنَیْنِ اِمَّاۤ اَنْ تُعَذِّبَ وَ اِمَّاۤ اَنْ تَتَّخِذَ فِیْهِمْ حُسْنًا قَالَ اَمَّا مَنْ ظَلَمَ فَسَوْفَ نُعَذِّبُهٗ ثُمَّ یُرَدُّ اِلٰی رَبِّهٖ فَیُعَذِّبُهٗ عَذَابًا نُّكْرًا وَ اَمَّا مَنْ اٰمَنَ وَ عَمِلَ صَالِحًا فَلَهٗ جَزَآءَ ِالْحُسْنٰی ۚ وَ سَنَقُوْلُ لَهٗ مِنْ اَمْرِنَا یُسْرًا ؕ ثُمَّ اَتْبَعَ سَبَبًا حَتّٰۤی اِذَا بَلَغَ مَطْلِعَ الشَّمْسِ وَجَدَهَا تَطْلُعُ عَلٰی قَوْمٍ لَّمْ نَجْعَلْ لَّهُمْ مِّنْ دُوْنِهَا سِتْرًا ۙ كَذٰلِكَ ؕ وَ قَدْ اَحَطْنَا بِمَا لَدَیْهِ خُبْرًا ثُمَّ اَتْبَعَ سَبَبًا حَتّٰۤی اِذَا بَلَغَ بَیْنَ السَّدَّیْنِ وَجَدَ مِنْ دُوْنِهِمَا قَوْمًا ۙ لَّا یَكَادُوْنَ یَفْقَهُوْنَ قَوْلًا قَالُوْا یٰذَاالْقَرْنَیْنِ اِنَّ یَاْجُوْجَ وَ مَاْجُوْجَ مُفْسِدُوْنَ فِی الْاَرْضِ فَهَلْ نَجْعَلُ لَكَ خَرْجًا عَلٰۤی اَنْ تَجْعَلَ بَیْنَنَا وَ بَیْنَهُمْ سَدًّا قَالَ مَا مَكَّنِّیْ فِیْهِ رَبِّیْ خَیْرٌ فَاَعِیْنُوْنِیْ بِقُوَّةٍ اَجْعَلْ بَیْنَكُمْ وَ بَیْنَهُمْ رَدْمًا ۙ اٰتُوْنِیْ زُبَرَ الْحَدِیْدِ ؕ حَتّٰۤی اِذَا سَاوٰی بَیْنَ الصَّدَفَیْنِ قَالَ

[1] - فتح الباري. شرح صحیح البخاري. الفتن. حدیث: ۷۱۳۵.

انْفُخُوْا ؕ حَتّٰۤى اِذَا جَعَلَهٗ نَارًا ۙ قَالَ اٰتُوْنِیْۤ اُفْرِغْ عَلَیْهِ قِطْرًا ؕ فَمَا اسْطَاعُوْۤا اَنْ یَّظْهَرُوْهُ وَ مَا اسْتَطَاعُوْا لَهٗ نَقْبًا ﴾ (١).

ژباړه:

پوښتنه کوي يهودان په مشوره د مشركانو له تا نه له قيصې د (ذوالقرنين) (ووايه اې محمده ! دوى ته) اوس به زه ولولم په تاسې له هغه څه احوال ؛ بيشكه چې مونږ قدرت وركړى ؤ هغه ته په زمكه كې او وركړى ؤ مونږ هغه ته له هر (ضروري) شي څخه سامان (مقصد ته رسونكى)؛ بيا ونيوله ده بله لياره او تيار يې كړ نور اسباب تر هغې پورې چې ورسيد مينځ د دوو غرونو ته نو وې موند را وړاندې د دغو دواړو (غرونو) داسې قوم چې نه ؤ نږدې (اكثر د دوى) چې وپوهيږي په خبره (د ذوالقرنين) باندې ؛ ووېل دغو (ترجمانانو) اې ذوالقرنينه ! بيشكه چې ياجوج ماجوج فساد كونكي دي په زمكه كې پس آيا حكم كوې ته چې مقرر كړو تا ته څه خرج محصول په دې شرط چې جوړ كړې ته په مينځ زمونږ او په مينځ د دوى كې يو ديوال ؛ ووېل ذوالقرنين هغه چې اقتدار راكړى دى ما ته په هغه شي كې رب زما خير ډير غوره دى (له وركړې د ستاسې نه چې محصول دى) پس مرسته وكړى تاسې له ما سره په زيار زما كې ټول په انساني قوت او عمل نه په مال سره چې جوړ كړم په مينځ د ستاسې او په مينځ د دوى كې يو پلن او محكم ديوال ؛ راوړى تاسې ما ته تختې د اوسپنې؛ تر هغه پورې يې اينبودلې چې برابرې شوې دا تختې په مينځ د دوو څوكو د غرونو نو ووېل (ذوالقرنين) چې پوكړئ !: (په دغو سكرو چې اچول شوي دي په مينځ د تختو د اوسپنې نو پو يې كړل) تر څو چې يې وګرځوله دغه (اوسپنه) اور ووېل (ذوالقرنين) راوړئ ما ته چې توى

١ - الكهف. آية ٨٣ - الى ٩٧.

يې کړم په دې ديوال ويلي شوي مس ؛ پس ونه کړای شول دوی چې وخيژي په هغه (او ښکاره شي پرې له جهته د لوړ والي او ښويوالي) او ونه کړای شول ږوی دغه (غره) لره سوری کول (له جهته د سختوالي او پلنوالي).

د الله تعالی د فرمان ﴿ لَّا يَكَادُوْنَ يَفْقَهُوْنَ قَوْلًا ﴾ معنا دا ده چې هغه خلک کوموته چې خطاب کيده په خبره باندې په ډير مشکل او وروسته پوهيدل.

الله تعالی فرمايي: ﴿حَتَّىٰٓ إِذَا فُتِحَتْ يَأْجُوجُ وَمَأْجُوجُ وَهُم مِّن كُلِّ حَدَبٍ يَنسِلُونَ﴾

ژباړه:

تر هغه پورې کله چې پرانستلی شي ياجوج او ماجوج (او ديوال يې له منځه ليرې شي) او دوی به له هرې لوړې څخه تيز (ګړندي) را کوزيږي.

د الهي فرمان ﴿مِّن كُلِّ حَدَبٍ يَنسِلُونَ﴾ معنا دا ده چې هغه به له هر لوړ ځای څخه په تيزي سره را کوز شي او په زمکه کې به خپاره (تيت) شي.

## احاديث مبارکه

✿ ام المؤمنين سيده زينب بنت جحش رضی الله عنها فرمايي چې نبي کريم ﷺ د هغو ډار شويو لور ته راغی او وې فرمايل:

﴿لَا إِلَهَ إِلَّا اللَّهُ وَيْلٌ لِلْعَرَبِ مِنْ شَرٍّ قَدْ اقْتَرَبَ فُتِحَ الْيَوْمَ مِنْ رَدْمِ يَأْجُوجَ وَمَأْجُوجَ مِثْلُ هَذِهِ وَحَلَّقَ بِإِصْبَعِهِ الْإِبْهَامِ وَالَّتِي تَلِيهَا قَالَتْ زَيْنَبُ بِنْتُ جَحْشٍ فَقُلْتُ يَا رَسُولَ اللَّهِ أَنَهْلِكُ وَفِينَا الصَّالِحُونَ قَالَ نَعَمْ إِذَا كَثُرَ الْخَبَثُ﴾ ([1]).

ژباړه:

له الله جل جلاله پرته هيڅ بر حق معبود نشته، د عربو لپاره تباهي ده، له هغه شر څخه کوم چې نږدې راتلونکی دی، نن ياجوج ماجوج په ديوال کې دومره سوری

---

[1] - صحيح البخاري، احاديث الانبياء، حديث: ٣٣٤٦. وصحيح مسلم، الفتن واشراط الساعة، حديث: ٢٨٨٠.

په یوه سپین حیوان کې تور ویښته یا لکه د تور حیوان په بدن کې چې سپین ویښته وي (۱).

✿ حضرت عمران بن حصین ﷛ فرمایي: چې یو ځل رسول الله ﷺ په یوه سفر کې وو چې د صحابه کرامو رضی الله عنهم او د رسول الله ﷺ تر مینځ څه فاصله پیدا شوه، نبي کریم ﷺ په لوړ آواز سره دا دوه آیاتونه وویل:

﴿يَآأَيُّهَا النَّاسُ اتَّقُوا رَبَّكُمْ ۚ إِنَّ زَلْزَلَةَ السَّاعَةِ شَيْءٌ عَظِيمٌ ۝ يَوْمَ تَرَوْنَهَا تَذْهَلُ كُلُّ مُرْضِعَةٍ عَمَّآ أَرْضَعَتْ وَ تَضَعُ كُلُّ ذَاتِ حَمْلٍ حَمْلَهَا وَ تَرَى النَّاسَ سُكَٰرَىٰ وَمَا هُم بِسُكَٰرَىٰ وَلَٰكِنَّ عَذَابَ اللَّهِ شَدِيدٌ ۝﴾ (۲).

ژباړه:

اې خلکو ځان وساتئ (ووېرېږئ) تاسې له عذاب د رب خپل؛ بیشکه زلزله د قیامت یو شی دی ډیر لوی؛ په هغه ورځ چې وویني تاسې هغه چې غافله به شي هره تی ورکونکې (د دې ورځې له هیبت څخه) له هغه ماشوم چې تی ورکوي هغه ته او وبه غورځوي هره میرمن حامله (امید واره) حمل (بچی) خپل او وبه وینې ته خلق بې سده (له هیبت نه) حال دا چې نه به وي په واقع سره دوی بې سده ولیکن عذاب د الله دی ډیر سخت (نو د قیامت ورځې له ویرې به بې سده وي).

صحابه کرامو چې کله آواز واورید نو خپلو سپرلیو ته یې حرکت ورکړ او پوه شول چې د الله رسول ﷺ په هغه ځای کې دی له کوم ځای څخه چې دا آواز راغی، کله چې هغوی د نبي کریم ﷺ شاو خوا سره را جمع شول نو نبي کریم ﷺ وفرمایل:

---

۱- صحیح البخاري، احادیث الایمان، حدیث: ۳۳۴۸، وصحیح مسلم، الایمان، حدیث: ۲۲۲.

۲- الحج، آیة: ۱-۲

اې خلکو ! تاسو پوهېږئ چې هغه ورځ به څنګه وي؟ په دغه ورځ به ادم عليه السلام ته آواز وشي او د هغه رب به هغه ته ووايي: اې آدم ! يوه ډله د اور لوري ته روانه کړه، هغه به پوښتنه وکړي : اې زما رب جل جلاله ! جهنم ته رسيدونکې ډله کومه ده؟ الله تعالی به وفرمايي : په هرو زرو کې نه سوه نه نوي (٩٩٩) به جهنم ته ځي او يو به جنت ته ځي، حضرت عمران رضي الله عنه فرمايي: چې د ويرې او حيرانتيا له امله د صحابه کرامو ژبې ګونګې شوې او له هغوی څخه خندا ورکه شوه، کله چې نبي عليه السلام د هغوی دا پريشاني وليده نو وې فرمايل : عمل کوی او خوشحاله اوسی، په هغه ذات مې دې قسم وي د کوم په لاس کې چې د محمد صلی الله عليه وسلم روح دی، تاسو خلک له دوو داسې مخلوق سره يې چې کله هم هغوی د کوم شي په مقابله کې شي نو په کثرت سره به په هغوی غالب راځي، يو ياجوج ماجوج او بل د بنوآدم او بنو ابليس لخوا هلاک شوي، عمران رضي الله عنه وايي: په دې سره د صحابه کرامو پريشاني او ويره ليرې شوه، نبي کريم صلی الله عليه وسلم وفرمايل : عمل کوی او خوشحاله اوسی، په هغه ذات قسم د کوم په لاس کې چې د محمد صلی الله عليه وسلم روح دی، تاسو د خلکو په مينځ کې داسې ياست لکه د اوښ په مخ کې توره نښه (نښان) يا لکه د کوم حيوان په بازو کې چې يوه وړه دائره وي ([1]).

✿ نبي کريم صلی الله عليه وسلم د قيامت نښانو او د عيسی عليه السلام د نازليدو او د حکومت کولو په باره کې خبرې کولې او وې فرمايل:

﴿فبينما هو كذلك اذ اوحى الله الى عيسى انى قد اخرجت عبادا لى، لا يدان لاحد بقتالهم فحرز عبادى الى الطور﴾ ([2]).

---

[1] مسند احمد : ۴ / ۴۳۵ . وجامع الترمذي. حديث: ۳۱۲۹ . وقال: حديث حسن صحيح.
[2] - صحيح مسلم. الفتن واشراط الساعة. حديث: ۲۹۳۷.

ژباړه: دا به په هغه حال کې وي چې الله تعالی عیسی ﷺ ته وحې وکړي چې زه خپل یو شمیر داسې خلک را باسم له کومو سره به چې په جنګ کولو کې د هیچا طاقت نه وي، ته زما بنده ګان در سره کړه او د کوه طور لوري ته ولاړ شه.

✿ له حضرت نواس بن سمعان ﷺ څخه روایت دی چې رسول الله ﷺ فرمایلي

﴿ویبعث الله یأجوج ومأجوج وهم من کل حدب ینسلون فیمر أوائلهم علی بحیرة طبریة فیشربون ما فیها ویمر آخرهم فیقولون لقد کان بهذه مرة ماء﴾ ([1]).

ژباړه: الله تعالی به یاجوج ماجوج را ولیږي، هغه به له هر لوړ ځای څخه په منډه راځي، د هغوی لومړۍ ډله چې کله له جیل طبریه تیره شي نو هغه به ټولې اوبه وڅښي، کله چې د هغوی آخیرنۍ ډله دې ځای ته را ورسیږي نو وبه وایي: کله هم په دې ځای اوبه وې؟

(جیل طبریه) ته بحیره جلیل هم ویل کیږي، دا د مقبوضه فلسطین په شمال کې واقع ده، د هغه حجم څه په دا ډول دی، د بحریه طبریه اوږد والی (٢٣) کلومیتره او تر ټولو ډیر کموالی یې (١٣) کلومیتره دی، د هغه ژور والی هم له (۴۴) میترو زیات نه دی، دا د سمندر له سطحې (٢١٠) میتره لاندې واقع دی.

له دې وروسته نبي کریم ﷺ وویل:

بیا به یاجوج ماجوج ځي ځي (جبل خمر) ته به ورسیږي ([2]).

اوس هغه وایي: مونږ به په زمکه کې اوسیدونکي قتل کړو، راځئ مونږ په آسمانو کې اوسیدونکي ووژنو، هغه به خپل غیشی د آسمان لوري ته وولي او الله تعالی به د هغوی غیشی په وینو سور بیرته واپس کړي، د الله

---

[1] صحیح مسلم. الفتن واشراط الساعة. حدیث: ٢٩٣٧.

[2] (خمر) خمر د (خ) او (م) په زور سره ګهنی ونې ته ویل کیږي. دا په اصل کې د بیت المقدس غر دی او په فلسطین کې واقع دی.

تعالی عیسی ﷺ به له خپلو ملګريو سره ماصره کړي حتی چې د غوایي سر به هم د هغوی لپاره ډېر قیمتي وي [١] لکه نن ورځ چې په تاسو کې چا ته سل دیناره ورکړی شي.

بیا به عیسی ﷺ او د هغه ملګري د الله تعالی لوري ته متوجه شي او الله تعالی به د یاجوج ماجوج په غاړو یو چینجی مسلط کړي [٢] د کوم له امله به چې هغوی ټول په آن واحد کې مړه شي، بیا به د الله تعالی نبي عیسی ﷺ او د هغه ملګري له غره څخه زمکې ته را کوز شي نو په زمکه کې به یو بالشت ځای هم داسې نه وي کوم به چې د هغوی په چربي او بد بویي متعفن نه وي، حضرت عیسی ﷺ او د هغه ملګري به د الله تعالی لوري ته متوجه شي او الله تعالی به داسې مرغان را ولیږي د کومو غاړې به چې د اوښانو د غاړو په څیر وي، هغوی به دا جسدونه پورته کړي او هلته به یې وغورځوي چیرته چې د الله تعالی خوښه وي، بیا به الله تعالی یو داسې باران وو ورو ي په کوم سره به چې د خټو، اونو او ویښتانو سره جوړ شوي ټول کورونه به تباه شي، هغه باران به ټوله زمکه ومینځي او صفا به یې کړي، بیا به زمکې ته وویل شي: خپله میوه را وباسه او خپل برکت بیرته را واپس کړه، په دې وخت کې به داسې برکت وي چې یو انار به د پوره ډلې لپاره کافي وي، انار به دومره غټ وي چې هغه ډله به یې تر سیوري لاندې ناسته وي، په شیدو کې به داسې برکت وي چې پی ورکونکی اوښه به د یوه غټې ډلې لپاره کافي وي، پی ورکونکې غوا به د یوې بشپړې قبیلې لپاره کافي وي، پی ورکونکې بزه به د

---

[١] یعني هغوی ته به دومره سختي، حاجت او لوږه پیدا شي که چیرته په هغوی کې یو چا ته د غوایه سر پیدا شي نو هغه به دومره ورته خوشحاله شي لکه نن ورځ چې څومره خوشحالي کوم صحابي ته د سلو دینارو په ورکړه تر لاسه کیږي.

[٢] - (نغفه) په اصل کې یو چینجی دی کوم چې د اوښانو (بزو) او میګو په غاړو کې پیدا کیږي او هغوی وژني. الله تعالی به د یاجوج ماجوج په غاړو هم همدا چینجی مسلط کړي.

يوه کور لپاره کافي وي، په دې حال کې به الله تعالی يوه پاکه هوا را وليږي، هغه به دوی د بغلونو له بيخ څخه ونيسي او د هر مؤمن او مسلمان روح به قبض کړي، په زمکه به په دې وخت کې يواځې شرير خلک باقي پاتې شي کوم به چې دمردار خو مارغه په څير په ښکاره د خلکو په وړاندې بدکاري کوي، په همدې خلکو به قيامت قايم شي [١].

په يوه بل روايت کې راغلي چې بيا به عيسی ﷺ او د هغه ملګري د الله تعالی لوري ته متوجه شي او الله تعالی به هغوی ته داسې مرغان را وليږي د کومو غاړي به چې د اوښانو د غاړې په څير وي، هغوی به د ياجوج ماجوج جسدونه پورته کړي او په يوه ژور ځای کې به يې واچوي، مسلمانان به له هغوی څخه په پاتې شونيو باندې تر اوو کلنو پورې اور بلوي [٢].

له حضرت عبد الله بن مسعود ﷺ څخه روايت دی:

په کومه شپه چې رسول الله ﷺ معراج کاوه او هغه ﷺ له ابراهيم، موسی او عيسی عليهم السلام سره وليدل نو هغوی د قيامت ذکر وکړ او ټولو دا خبره د حضرت عيسی ﷺ لوري ته را وګرځوله، هغه به دجال قتل کړي او بيا يې وويل: چې خلک به د خپلو ښارونو او کورونو په لور را وګرځي چې له ياجوج ماجوج سره به مخ شي [٣].

هغوی به له هر ځای څخه په منډه منډه راځي: له کومو اوبو سره چې تيريږي هغه به څښي او خلاصه وي به يې، کوم شی چې ويني هغه به تباه کوي. خلک به له ما څخه د دعا غوښتنه وکړي. زه به له الله تعالی څخه دعا وغواړم نو الله تعالی به هغوی ټول هلاک کړي، د هغوی جسدونه به په

---

[١] صحيح مسلم، الفتن و اشراط الساعة، حديث: ٢٩٣٧.

[٢] جامع الترمذي، الفتن، حديث: ٢٢٤٠. وهو حديث صحيح.

[٣] يعني کله چې هغوی له دجال څخه وتښتي او په غرونو کې پټ شي او حضرت عيسی ﷺ دجال قتل کړي او دا خبر دوی ته ورسيږي نو خلک به بيرته د خپلو ښارونو او کورونو په لور راځي مګر د راتلو په وخت کې به دوی له ياجوج ماجوج سره مخامخ کړی شي

زمکه باندې تعفن خپور کړي، مسلمانان به بيا له ما څخه د دعا غوښتنه وکړي، زه به له الله تعالی څخه دعا وغواړم نو الله تعالی به له اسمان څخه باران وو وروي، باران به د هغوی جسدونه پورته کړي او په سمندر کې به يې وغورځوي [1].

✿ له حضرت ابو هريرة رضي الله عنه څخه روايت دی چې رسول الله ﷺ د ياجوج ماجوج په باره کې د خبرو کولو په وخت کې وفرمايل:

هغوی به په خلکو باندې راووزي او د هغوی ټولې اوبه به وڅښي، خلک به له هغوی څخه وورېږي او وبه تښتي، ياجوج ماجوج به خپل غيشی د آسمان لوري ته وولي نو هغه به په وينو رنګ واپس بيرته راشي، هغوی به ووايي: مونږ په زمکه کې په اوسيدونکو هم برلاسي شوو او په آسمان کې په اوسيدونکو هم د خپل قوت او عظمت له امله غالب راغلو، الله تعالی به د هغوی په غاړو باندې يو چينجی مسلط کړي په کوم سره به چې هغوی ټول هلاک کړی شي، په هغه ذات قسم د کوم په قبضه کې چې د محمد ﷺ روح دی! د زمکې ځناوران به د هغوی د غوښو په خوړلو ماړه شي، مزي او تازه به شي [2].

## د ياجوج ماجوج په باره کې وارد يو ضعيف حديث

د ياجوج ماجوج په باره کې ډير آياتونه او حديثونه موجود دي، ليکن د هغوی په باره کې ډير ضعيف احاديث هم مشهور دي، په هغوی کې يو حديث ډير زيات ضعيف دی.

حضرت خذيفه بن يمان رضي الله عنه ويلي: ما له نبي کريم ﷺ څخه د ياجوج ماجوج په باره کې پوښتنه وکړه؟ نبي کريم ﷺ وفرمايل:

---

[1] - المستدرک للحاکم :۴/ ۴۸۸ - ۴۸۹ . وقال : صحيح الاسناد ولم يخرجاه. ووافقه الذهبي في تلخيصه واخرجه الامام في المسند :۴/ ۱۸۲.

[2] - جامعالترمذي تفسير القران. حديث: ۳۱۵۳ . وحسنه. وسنن ابن ماجه. الفتن. حديث: ۴۰۸۰ . والمستدرک للحاکم:۴/ ۴۸۸ . وصححه الالباني. ووافقه الذهبي في التلخيص.

یاجوج یو امت دی او ماجوج یو امت دی، په هغوی کې د هر امت لپاره څلور لکه امتونه دي، په هغوی کې به هیڅ یو سړی تر هغه وخته پورې مړ نشي تر څو چې هغه په خپل اولاد کې زر نفره په مسلح شکل کې او نهویني، ما عرض وکړ: اې د الله رسوله ﷺ! مونږ ته د هغوی په باره کې څه ووایه؟ نبي کریم ﷺ وویل: د هغوی درې ډولونه دي، یو ډول یې د (ازر) په څیر دي،ما وویل: ازر څه دي؟ هغه ﷺ وویل: دا په شام کې یوه ونه ده د کومې لوړ والی چې د اسمان لوري ته یو سل او شل لاسونه دي، نبي کریم ﷺ وویل: دا هغه خلک دي د کومو په وړاندې چې هیڅ تدبیر یا چل کار نه ورکوي، د هغوی دویم ډول داسې دي کوم چې خپل یو غوږ پر زمکه باندې وغوړوي او دویم غوږ له خپل بدن څخه را تاو کړي، دوی چې د چا خوا ته تیر شي هغه خوري، خواه هغه فیل وي، وحشي ځناور وي، اوبښ وي او که خنزیر وي، په یاجوج ماجوج کې چې کوم یو مړ شي دوی هغه هم خوري، د هغوی د لښکر یوه برخه به په شام کې وي او بله برخه به یې په خراسان کې وي، هغوی به د مشرق د ټولو دریابونو او د (بحریه طبریه) اوبه وڅښي ([1]).

## د یاجوج ماجوج هلاکت

د یاجوج ماجوج سړي. ښځې او ماشومان به په زمکه کې قتل او فساد کوي، د خلکو عزت به پایمالوي تر دې چې هغوی به په آسمان باندې د غیشو ویشتل شروع کړي لکه څنګه یې چې په زمکه باندې قبضه وي همدا ډول به یې په آسمان باندې هم وي، د زمکې په اوسیدونکو کې به هغه خلک د دوی له لاس څخه بچ پاتې وي کوم چې قلعه بند وي یا چیرته پټ شوي وي، په دې قلعه بندو خلکو کې به حضرت عیسی ﷺ او د هغه

[1] - مجمع الزوائد للهیثمي:٨/ ١٣.

مؤمن ملګري هم وي او له سختي لوږې، حاجت او د سختو مشکلاتو ښکار به وي.

په دې وخت کې به عیسی ﷺ او د هغه ملګري الله تعالی ته دعا وکړي لکه په مخکني حدیث کې چې تیر شول، د دعا په نتیجه کې به الله تعالی یو مهلک چینجی د هغوی په غاړو کې پیدا کړي د کوم له امله به چې هغوی ټول مړه شي، الله تعالی به د اوښانو د غړیو لرونکو مرغانو په څیر مرغان به را ولیږي کوم به چې د یاجوج ماجوج مړه شوي جسدونه پورته کړي او چیرته چې د الله تعالی خوښه وي هلته به یې وغورځوي، بیا به الله تعالی یو داسې باران وکړي کوم به چې زمکه پاکه، صفا ستره کړي، بیا به زمکې ته وویل شي: خپلې میوې را وباسه او خپل برکتونه را واپس کړه.

له حضرت ابو سعید خدري ﷺ څخه روایت دی چې نبي کریم ﷺ فرمایلي:

یاجوج ماجوج به سوری وکړي، هغوی په به خلکو باندې له هرې خوا څخه راشي لکه چې فرمان باری تعالی دی ﴿مِّن كُلِّ حَدَبٍ يَنسِلُونَ﴾ هغوی به له هر لوړ ځای څخه په منډه منډه راځي، په زمکه کې به فساد کوي، مسلمانان به په خپلو ښارونو او قلعه ګانو کې پناه اخلي او خپلې میګې به هم له ځان سره ساتي. یاجوج ماجوج به د زمکې ټولې اوبه وڅښي تر دې چې د هغوی یو لښکر به له یوه دریاب سره په خوا کې تیریږي نو د هغه ټولې اوبه به وڅښي تر دې هغه وچ شي. کله چې د هغوی دویم لښکر هلته ورسیږي نو وبه وایي: په دې ځای کې کله اوبه وې، بیا نبي کریم ﷺ وفرمایل: د زمکې ټول خلک به په ښارونو او قلعه ګانو کې محصور وي نو په یاجوج ماجوج کې به یو کس ووایي: د زمکې له اوسیدونکو خو فارغ شوو، اوس د آسمان اوسیدونکو وار دی، بیا به یو کس د اسمان لوري ته خپل غیشی وار کړي او هغه به په وینو ککړ واپس بیرته راشي، دا به د الله تعالی له لوري د دوی لپاره یو ازمایښت او امتحان وي، په دې حالت کې به الله تعالی په دوی باندې یو چینجی مسلط کړي، کوم به چې د دوی په

غاړو کې پیدا شي، د هغه په اثر به دوی ټول مړه شي، مسلمانان به ووایي کوم داسې څوک شته چې زمونږ لپاره خپل ځان په خطر کې واچوي او دا معلومه کړي چې زمونږ د دښمن انجام څه شو؟ نبي کریم ﷺ فرمایي: بیا به له مسلمانانو څخه یو سړی مرګ ته تیار شي او پورته به شي، هغه به له خپلې قلعه څخه د باندې وګوري نو هغوی به ټول څټ مخ مړه پراته وي، هغه به له خوشحالي څخه نعره کړي: اې مسلمانانو ! مبارک شه ! الله تعالی د ستاسو دښمن صفا کړ، مسلمانان به له خپلو ښارونو او قلعه ګانو څخه د باندې راووزي، د هغوی مالونه او میګې به آزادې څري، د هغوی د ځناور لپاره به په دې وخت کې د یاجوج ماجوج د غوښو له خوړلو پرته بله هیڅ چاره نه وي، هغه به وخوري او داسې به مزي (غټې) (څاربه) به شي لکه کوم ځناور چې د یوې ښې سبزې په خوړلو غټیږي (١).

ابو سعید خدري رضي الله عنه بیان کوي چې رسول الله ﷺ فرمایلي:

یاجوج ماجوج به په زمکه کې ټول خلک هلاک کړي، یوازې هغه خلک به بچ پاتې شي کومو چې په قلعه ګانو کې پناه اخیستې وي، کله چې یاجوج ماجوج د زمکې د اسیدونکو له وژلو فارغ شي نو په خپل مینځ کې به یوه بل ته ووایي اوس یوازې هغه خلک بچ پاتې دي کوم چې په قلعه ګانو کې پټ شوي یا په آسمان کې اوسیږي، هغوی به خپل غیشی د اسمان لوري ته وار کړي، نو هغه به په وینو ککړ واپس بیرته راشي، هغوی به ووایي چې تاسو ته د آسمان له اوسیدونکو څخه هم راحت تر لاسه شو، اوس یوازې هغه پاتې شول کوم چې په قلعه ګانو کې پټ شوي دي، دوی به هغوی محاصره کړي تر دې چې د هغوی لپاره به محاصره ډیر مشکلات پیدا کړي، په دې وخت کې به هغوی ټول په دې سوچ کوي چې الله تعالی په

---

(١) مسند احمد : ۳ / ۷۷، وسنن ابن ماجه. الفتن. حدیث: ۴۰۷۹، والمستدرک للحاکم: ۴ / ۴۸۹، وقال: حدیث صحیح علی شرط مسلم ولم یخرجاه.

هغوی چینجی مسلط کړي کوم به چې د دوی په غاړو کې پیدا کیږي او د هغوی غاړې به ماتوي او هغوی به په یوه بل باندې ور غورځي او مړه کیږي به، د حضرت عیسی ﷺ له ملګرو څخه به یو کس ووایي: د کعبې رب هغه قتل کړي، ځینې نور به ووایي: نه! نه! دا مونږ دوکه کوي تر څو چې مونږ د هغوی لوري ته ور ووځو او هغوی مونږ هم په هغه رنګه ووژني لکه څنګه یې چې زمونږ نور ورونه ووژل، هغه به ووایي: تاسو ما ته دقلعه دروازه خلاصه کړي تر څو چې زه د باندې ووځم او د هغوی خبر راوړم، هغوی به ووایي: مونږ یې نشو خلاصولای، هغه به ووایي: ما ته کومه رسۍ راکړی، هغه به د رسۍ په ذریعه لاندې کوز شي او هغوی به ټول مړه پیدا کړي ([1]).

## له یاجوج ماجوج وروسته به هیڅ کوم جنګ نه وي

کله چې الله تعالی یاجوج ماجوج هلاک کړي نو په زمکه کې به پرته له مؤمنانو بل هیڅوک بچ پاتې نشي، برکتونه او خیراتونه به هر لوري ته خپاره شي، د هغوی زړونه به په خپلو مینځونو کې صفا وي او هیڅ رنګه قتال، جنګونه او شور به نه وي.

حضرت سلمه بن نفیل رضي الله عنه بیان کوي چې یو ځل له رسول الله ﷺ سره ناست وو چې یو کس راغی او عرض یې وکړ: اې د الله رسوله! آسونه به پریښودل شي، اسلحې به کیښودل شي، د خلکو خیال دا دی چې نور نو جنګونه نشته او جنګ ختمیدونکی دی، نبي ﷺ وفرمایل:

هغوی غلط ویلي: جنګونه خو به وي، زما په امت کې به یوه ډله داسې وي کومه به چې همیشه د حق لپاره د (خدای په لار) کې جنګیږي، دا ډله به د قیامت تر راتلو پورې جنګیږي، جنګ د یاجوج ماجوج تر راوتلو پورې نه دی موقوف ([2]).

---

[1] المطالب العالیة بزوائد المسانید الثمانیة: ۱۸/ ۴۴۳. حدیث: ۴۵۲۳.

[2] السنن الکبری للنسائي ک۵/ ۲۱۸. وسلسلة الاحادیث الصحیحة: ۴/ ۵۷۱. حدیث: ۱۹۳۵.

## له ياجوج ماجوج وروسته به حج باقي وي

له حضرت ابو سعيد خدري رضي الله عنه څخه روايت دی چې رسول الله ﷺ فرمايلي:

﴿لَيُحَجَّنَّ الْبَيْتُ وَلَيُعْتَمَرَنَّ بَعْدَ خُرُوجِ يَأْجُوجَ وَمَأْجُوجَ﴾ ([1]).

ژباړه: د ياجوج ماجوج له خروج وروسته به هم د بيت الله حج او عمره کيږي.

## د ياجوج ماجوج لپاره د ذوالقرنين لخوا جوړ شوی ديوال څوک ليدلای شي؟ يا يې د چا لپاره ليدل ممکن دي؟

په صحابه کرامو رضی الله عنهم کې يوه کس هغه ليدلای، امام بخاري رحمه الله په خپل صحيح کې داسې تعليقا صيغه له جزم سره ذکر کړې چې يوه کس رسول الله ﷺ ته وويل: ما دغه ديوال ليدلای، هغه د خط لرونکي څادر په څير دی، نبي کريم ﷺ د هغه د خبرې تصديق وکړ او وې فرمايل: په رښتيا چې تا هغه ليدلای.

حافظ ابن حجر رحمه الله فرمايي:

دا حديث ابن ابی عمر د مدينې والو له يوه کس څخه موصولاً روايت کړی چې هغه د نبي کريم ﷺ په خدمت کې عرض وکړ: يا رسول الله ﷺ! ما د ياجوج ماجوج ديوال ليدلای، نبي کريم ﷺ ترينه وپوښتل: هغه څنګه وو؟ هغه وويل: د خط لرونکي څادر په څير، يو خط يې سور او يو خط يې تور دی، نبي کريم ﷺ د هغه تصديق وکړ او وې فرمايل: په رښتيا چې تا هغه ليدلای ([2]).

علامه ابن کثير رحمه الله د ديوال او د ځينو بادشاهانو هغه ته د رسيدلو د کوشش قيصه ذکر کړې او وايي:

---

[1] - صحيح البخاري، الحج، حديث: ۱۵۹۳.

[2] فتح الباري شرح صحيح البخاري، احاديث الانبياء، حديث: ۳۳۴۸.

خلیفه واثق باالله [1] د خپل حکومت په دوران کې خپل یو شمیر امراء تیار کړل او له هغوی سره یې یو لښکر هم روان کړ تر څو چې دوی له دې د دیوال څخه کتنه وکړي، هغه وګوري او په بیرته راتګ باندې خلیفه ته د هغه په هکله راپور ورکړي، دې لښکر له یوه ښار څخه بل ښار ته او له یوه هیواد څخه بل هیواد ته سفر کاوه تر دې چې دیوال ته ورسیدل، هغوی ولیدل چې دیوال له اوسپنې او مس څخه جوړ شوی، په راپور کې یې دا هم ولیکل چې په هغه کې یوه دروازه هم شته کومې ته چې دوه غټ غټ قلفونه اچول شوي وو، همدا شان یې ولیدل چې هلته د خاورو او ډبرو (تیږو) یو برج هم جوړ شوی، په هغه له پاسه د ګاونډیو هیوادونو د بادشاهانو له لوري یو شمیر پهره داران هم شته، دا دیوال ډیر لوړ او لوی دی، په هغه هیڅ شی نشي ختلای او نه د هغه په شاو خوا غرونو باندې ختلای شي، دا خلک تقریباً تر دوو کلونو پورې په دې کار کې مشغول وو او د بیرته راتګ تر وخته یې عجیب او غریب شیان ولیدل [2].

علامه ابن کثیر رحمه الله دا قیصه په کوم سند سره نه ده بیان کړې او نه یې د صحت او ضعف په اعتبار سره په هغې کومه تبصره کړې (والله اعلم).

---

[1] خلیفه واثق باالله د عباسي دور په (۲۲۷ تا ۲۳۲ هجري مطابق ۸۴۲ تا ۸۴۷ عیسوي) کې حکومت کړی. په عباسي خلیفه ګانو کې په ترتیب سره دی په نهم نمبر کې دی.

[2] - البدایة والنهایة: ۷/ ۱۲۲.

## ايا د سد ذوالقرنين د چين (1) له ديوال سره څه تعلق شته؟

د سد ذوالقرنين او د چين په ديوال کې په څو اعتبارونو سره فرق شته:

(۱) ذوالقرنين دا ديوال د ياجوج ماجوج حملو د منع کولو لپاره جوړ کړی وو او د چين ديوال د هغه وخت واکمنانو د خپل هيواد د ساتلو لپاره جوړ کړی دی.

(۲) سد ذوالقرنين له اوسپنې او مسو څخه جوړ شوی او د چين ديوال له ډبرو او خښتو څخه جوړ شوی.

(۳) د ياجوج ماجوج ديوال د دوو غرونو په مينځ کې د هغوی د لارې بندولو لپاره جوړ شوی او د چين ديوال د مختلفو غرونو په څنډو څنډو کې جوړ شوی او له مشرقي چين څخه تر مغربي چين پورې په زرګونو ميله فاصلې باندې ولاړ دی.

(۴) د ياجوج ماجوج ديوال به په اخره زمانه کې چې کله د الله خوښه شي نو مات به شي او د چين ديوال په ماضي کې له کوم لوري ماتيدلای شي.

---

[1] - د چين دغه لوی ديوال په انساني تاريخ کې داوږدو تعميرونو يوه نادره نمونه ده. د هغه اوږوالی (۲۴۰۰) کلوميتره دی. په هغه باندې له مسيح څخه (۴) کاله د مخه کار شروع شو او تر (۱۷) عيسوي پورې شروع وو. دا ديوال چينايانو د شمال له لوري له حمله کوونکو څخه د ځان ساتنې لپاره جوړ کړی. دا ديوال د چين له شمال مشرقي ساحل څخه شروع دی او د چين تر وسط تللی. د مياشتو او کلونو په تيريدا د هغه څه برخې نړېږي. خو په وروسته کې هغه بيا جوړيږي. د هغه د بنيادي برخې اوږوالی (۳۴۲۰) کلوميتره دی. د ديوال لوړوالی (۵,۷) ميتره دی او تر غټوالي د بنياده (۵,۷) ميترو کله چې پورته ځي نو دا (۴,۲) تللی. په ټول ديوال کې د هر (۱۸۰) ميترو په فاصله کې يو د څارنې برج جوړ شوی. په تيرو ... کې د دې ديوال يو شمير برخې نړيدلې وې کومې چې چينايانو په (۱۹۴۹) عيسوي کې بيا دوباره جوړې کړې.

## مصنوعي سپوږمکۍ یاجوج ماجوج ولې نشي لیدلای؟

د ځمکې د ټولو برخو پیژندل او هلته په موجود ټول مخلوق باندې احاطه کول یواځې د الله تعالی په اختیار کې دي او الله تعالي هر شی د خپل علم په احاطه کې راوستلي دي، که چیرته مونږ ته د یاجوج ماجوج دیوال، یا د دجال ځای یا نور مخلوقات معلوم نه دي نو د دې مطلب هیڅ کله دا نه دی چې هغه موجود نه دي، کیدای شي چې الله تعالی له خپل مخلوق څخه د یاجوج ماجوج دیوال پټ ساتلی وي، دا هم ممکنه ده چې الله تعالی د خلکو او د هغه په مینځ کې یو داسې شی حائل کړی وي د کوم له امله چې مخلوق هغه نشي لیدلای لکه له بني اسرائلو سره کله چې الله تعالی هغوی په میدان تیه [1] کې د ورکیدا لپاره پریښودل نو هغه په ځمکه کې په څو کلومیتره

---

[1] یعني کله چې بني اسرایل په میدان تیه کې ورک شول، نه هغوی ته لاره معلومیده او نه ورته اطمنان حاصلیده، د بني اسرایلو په ځمکه کې د ورکیدا قیصه داسې ده چې کله الله تعالی حضرت موسی عليه السلام او د هغه قوم له (آل فرعون) څخه نجات پیدا کړ نو موسی عليه السلام هغوی ته وویل (ادْخُلُوا الأَرْضَ المُقَدَّسَةَ الَّتِي كَتَبَ اللَّهُ لَكُمْ﴾ ننوځئ تاسې ځمکې پاکې کړی شوې د (بیت المقدس، یا د شام، یا د ایلیا، یا د اریحا ته) هغه ځمکه چې مقرره کړې ده الله تعالی تاسې ته (په لوح محفوظ کې په شرط د ایمان ستاسې) دا ځمکه د بیت المقدس وه مگر هغوی هلته له ورتلو انکار وکړ او وې ویل (إِنَّ فِيهَا قَوْمًا جَبَّارِينَ وَإِنَّا لَن نَّدْخُلَهَا حَتَّىَ يَخْرُجُواْ مِنْهَا فَإِن يَخْرُجُواْ مِنْهَا فَإِنَّا دَاخِلُونَ) په دې ځمکه کې یو قوم دی ډیر زورور (چې مونږ یې د مقابلې طاقت نلرو) یعنې ډیر قوي هیکل، میړني، بیا وړي او له رعبه ډک او ویروونکي دي او بیشکه مونږ له سره نه ننوځو په دغې ځمکې کې تر هغې پورې چې ووځي دوی له دې ځمکې نه، نو که ووځي دوی له دې ځایه (بې له جنګه) نو بیشکه مونږ ننوتونکي یو، کله چې هغوی دې مقدسې خاورې ته له ننوتو انکار وکړ نو الله تعالی د هغوی په باره کې داسې فیصله وکړه لکه چې الله تعالی ﷻ فرمایي (فَإِنَّهَا مُحَرَّمَةٌ عَلَيْهِمْ أَرْبَعِينَ سَنَةً يَتِيهُونَ فِي الأَرْضِ) پس بیشکه دغه (مقدسه ځمکه) حرامه کړی شوې ده پر دوی باندې (ننوتل هغې ته) څلویښت کاله چې حیران سرګردان به ګرځي دوی په همدې ځمکه کې، دوی په یوه ځای کې وو، ټوله ورځ به ګرځیدل مګر کله به چې شپه شوه نو دوی به بیا په هغه ځای باندې وو چیرته به یې چې پرونی شپه تیره کړې وه، هغوی ته هیڅ نه معلومیده

سیمه کې تر څلویښتو کلونو ورک اوسیدل او خلکو ته د هغوی هیڅ معلومات نه وو تر دې چې هغه موده ختمه شوه، الله تعالی په هر شي باندې قدرت لرونکی دی، هغه د هر شي لپاره یو معین وخت او موده مقرر کړې دي، الله تعالی ﷻ فرمایي:

﴿ وَكَذَّبَ بِهِ قَوْمُكَ وَهُوَ الْحَقُّ ۚ قُلْ لَسْتُ عَلَيْكُمْ بِوَكِيلٍ ﴿٦٦﴾ لِكُلِّ نَبَإٍ مُسْتَقَرٌّ ۚ وَسَوْفَ تَعْلَمُونَ ﴿٦٧﴾ ﴾ ([1]).

ژباړه:

دروغ وباله دا (قران یا دغه عذاب) قوم ستا (یعني قریشو) حال دا چې دغه (قران یا عذاب) حق دی ؛ ووایه اې محمده ! دوی ته نه یم زه په تاسې وکیل (ساتونکی) هرې خبرې ته یو وخت مقرر دی او ژر به پرې وپوهیږئ تاسې.

د کوم شي له معلومولو څخه چې خلک پخوا بې وسه دي له دې وروسته هم هغه نشي معلومولای، ځکه چې د الله تعالی په نزد د هر شي لپاره خپل وخت مقرر دی ([2])

آخیري خبره دا چې قاضي عیاض رحمه الله وایي:

---

چې چیرته روان دي. ټوله ورځ به د خپلو سپرلیو په قدمونو باندې تلل مګر بیا به یې هم هیڅ مسافه نشوای طی کولای. بلکه په همدې وحشت ناکه صحرا کې تر څلویښتو کلونو پورې ورک وو. الله تعالی په هغوی باندې دا سزا له دې امله مقرره کړه چې هغوی په دې وخت کې د سرکشي مظاهره کړې وه. کله چې هغوی ته مقدسې خاورې ته د داخلیدو حکم شوی وو. د حکم منلو په ځای هغوی تر دې حده وویل (فَاذْهَبْ أَنتَ وَرَبُّكَ فَقَاتِلَا إِنَّا هَاهُنَا قَاعِدُونَ) پس ځه ته او خپل رب ستا (یا ته او مشر ورور او مربي ستا چې هارون دی) نو جنګ وکړئ تاسې دواړه بیشکه مونږ دلته ناست یو له جنګه (په انتظار د بری ستا).

[1] الانعام. اية: ٦٦ – ٦٧.

[2] د دجال په باره کې مخکې په تفصیل سره خبره تیره شوه چې (برمودا مثلث) تر اوسه پورې یوه معما ده د کومې د حقیقت په معلومولو کې چې سائنسي ترقي او نوي وسایل تر دا مهاله پاتې راغلي او پوهان د حیرانتیا او پریشانۍ ښکار دي.

د یاجوج ماجوج په باره کې دا وارد حدیثونه په حقیقت بنا دي، په هغو ایمان لرل واجب دي، ځکه چې د یاجوج ماجوج خروج د قیامت له نښانو څخه دي، د هغوی په باره کې له واردو حدیثونو څخه دا ویل کیدای شي چې د هغوی د ډیر والي له امله به له هیچا سره د هغوی په مقابل کې د جنګ کولو طاقت نه وي، هغوی به د الله تعالی نبي عیسی ﷺ او له دجال څخه نجات غوښتونکي د هغه ملګري به محاصره کړي، عیسی ﷺ به د یاجوج ماجوج په خلاف الله تعالی ته سوال وکړي نو الله تعالی به د هغوی په غاړو کې یو چینجی پیدا کړي د کوم له اثر څخه به چې هغوی ټول هلاک کړی شي. له هلاکت وروسته به د هغوی د جسدونو له تعفن څخه خلک ډیر په تنګ شي، عیسی ﷺ او د هغه ملګري به بیا الله تعالی ته سوال وکړي نو الله تعالی به داسې مرغان را ولیږي کوم به چې د هغوی جسدونه پورته کړي او په هغه ځای کې به یې وغورځوي چیرته چې د الله تعالی خوښه وي (۱).

## اخیري خبر

## ایا په مسلمانانو باندې د یاجوج ماجوج په مقابل کې جنګ فرض دی؟

**ځواب**

په هر چا باندې د هغوی په خلاف جنګ کول فرض نه دي لکه چې د حضرت عیسی ﷺ په قیصه کې تیر شول چې الله تعالی به عیسی ﷺ ته وفرمایي: ما خپل یو شمیر داسې بنده ګان را لیږلي له کومو سره چې د جنګ کولو همت په چا کې نشته، لهذا ته زما مؤمن بنده ګان در سره کړه او کوه طور ته ولاړ شه (۲).

---

۱ د قاضي عیاض رحمه الله دا خبره ملا علي قاري د (مرقاة المفاتیح شرح مشکاة المصابیح) په: ۱۲/ ۲ کې ذکر کړې.

۲ صحیح مسلم. الفتن واشراط الساعة. حدیث: ۲۹۳۷.



د چین دغه لوی دیوال په انساني تاریخ کې داوږدو تعمیرونو یوه نادره نمونه ده

# خسف

## په زمکه کې د ننوتلو درې پيښې

د قيامت له لويو نښانو څخه په دريو ځايونو کې (خسف) يعنې په زمکه کې ننوتل هم دي د کومو په باره کې چې نبي کريم ﷺ خبر ورکړی. خلک به د دې پيښو له امله ډير په ويره کې شي او د دې پيښو اثرات به ډير درد ناک وي.

د خسف معنا: د خسف معنا ده د زمکې چاودل او په هغې چې له پاسه څه وي د هغوی په زمکه کې لاندې ورکيدل.

په تيره او اوسنی زمانه کې ډيرې پيښې منځته راغلې دي کومې چې د قوت او حجم په لحاظ له يوې بلې جلا دي، د کومو ذکر چې په حديثونو کې راغلی د هغوی يو خاص حيثيت دی او د هغوی خبر او شور به هر لوري ته خپور شي.

په دريو ځايونو کې هغه (خسف) د کومو ذکر چې په حديثونو کې راغلی دا په اخره زمانه کې واقع کيدونکې دي. د قرآن او احاديثو ډير نصوص په هغوی باندې دلالت کوي.

## د خسف په باره کې وارد احاديث

له حضرت حذيفه ابن اسيد غفاري رضي الله عنه څخه روايت دی چې رسول الله ﷺ زمونږ خوا ته تشريف راوړ کله چې مونږ د قيامت ذکر کاوه، رسول الله ﷺ وفرمايل: تاسو د کوم شي ذکر کوی؟ مونږ عرض وکړ: مونږ د قيامت ذکر کاوه، رسول الله ﷺ وفرمايل:

﴿إنها لن تقوم حتى ترون قبلها عشر آيات فذكر الدخان والدجال والدابة وطلوع الشمس من مغربها ونزول عيسى ابن مريم صلى الله عليه وسلم ويأجوج ومأجوج وثلاثة خسوف خسف بالمشرق وخسف بالمغرب وخسف بجزيرة العرب وآخر ذلك نار تخرج من اليمن تطرد الناس إلى محشرهم﴾ ([1]).

ژباړه:

يقينا هغه قيامت تر هغه وخته پورې نه قايميږي تر څو چې له هغه د مخه لس نښانې ونه ليدل شي، بيا نبي کريم ﷺ د هغوی ذکر وکړ: (۱) دود (۲) د دجال خروج (۳) د دابه خروج (۴) د لمر له مغرب څخه راختل (۵) د عيسی ابن مريم عليهما السلام نزول (۶) د ياجوج ماجوج خروج (۷) په مشرق، مغرب او جزيره نمائي عرب کې د زمکې چاودل او له ټولو وروسته چې کومه نښانه ښکاره کيږي، هغه له يمن څخه د يوه داسې اور راوتل دي کوم به چې خلک د محشر (شام) لوري ته بوځي.

## داسې حديثونه په کومو کې چې په زمکه کې د ننوتو د واقعاتو ذکر راغلی کوم چې د ګناهونو د سزا په ډول دي

✿ له حضرت ابو امامه باهلي رضي الله عنه څخه روايت دی چې رسول الله ﷺ فرمايلي:

زما په امت کې به يو شمير خلک په خوړو، څښلو او په لهو لعب کې شپه تيره کړي، کله چې صبا شي نو ټول به خنزيران شوي وي، د دغه امت ځينې قبايل به له خپلو کورونو سره په زمکه کې ننوځي، کله چې صبا شي نو خلک به وايي چې نن شپه بنو فلان په زمکه کې ننوتلي دي، نن شپه د فلانی قبيلې کورونه په زمکه کې ننوتلي دي، په هغوی به ډبرې (تيږې) او

---

[1] صحيح مسلم، الفتن واشراط الساعة، حديث: ۲۹۰۱.

وریږي او پر هغوی به بدې (منخوسې) هوا ګانې وچلیږي کومې به چې هغوی داسې زره زره کړي لکه څنګه چې پخواني قومونه د شرابو څښلو، سود کولو، سړیو ته د وریښمو اغوستلو، د سندرو ویونکو ښځو اختیارولو او د صله رحمي قطع کولو له امله بیخ او بنیاد ویستل شوی، ابو امامه رضي الله عنه وايي چې نبي کريم صلی الله علیه وسلم د دې هلاکیدونکو یو خوی هم بیان کړ مګر له ما څخه هغه هیر شو [1].

۞ له حضرت عبد الله بن عمر رضی الله عنهما څخه روایت دی چې رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمایلي:

﴿في امتي خسف ومسخ وقذف﴾ [2].

ژباړه:

زما په امت کې به خسف، مسخ او د ډبرو (تیږو) باران وي.

۞ له حضرت عبد الله بن عمر رضی الله عنهما څخه روایت دی چې رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمایلي:

﴿بَيْنَمَا رَجُلٌ يَجُرُّ إِزَارَهُ مِنَ الْخُيَلَاءِ خُسِفَ بِهِ فَهُوَ يَتَجَلْجَلُ فِي الْأَرْضِ إِلَى يَوْمِ الْقِيَامَةِ﴾ [3].

ژباړه: یو کس به په تکبرانه انداز کې خپل څادر په زمکه اچولی روان وي، دی به په زمکه کې ننه باسل شي او تر قیامته پورې به زمکه کې روان وي.

د (یتجلجل) معنا ده له آواز سره حرکت کول.

۞ له انس رضي الله عنه څخه روایت دی چې رسول الله صلی الله علیه وسلم هغه ته وفرمایل:

اې انس! خلکو په مختلفو ښارونو کې اوسیدل غوره کړي، په هغوی کې د یوه نام (بصره) یا (بصیره) ده، که چیرته ته په دې ځای تیریدلې یا اتفاقي

---

[1] المستدرک للحاکم: ۴/ ۵۱۵. وقال: صحیح علی شرط مسلم؟

[2] اجرجه الحاکم: ۴/ ۴۹۲. وقال: ان کان ابو الزبیر سمع من عبد الله بن عمر فانه صحیح علی شرط مسلم ولم یخرجاه

[3] صحیح البخاري. احادیث الانبیاء. حدیث: ۳۴۸۵.

هلته ور داخل شوې نو د هغه له ښاړو زمکو څخه، د هغه له زراعتي زمکو څخه، د هغه له بازارونو څخه او د هغه د امراؤ له دروازو څخه ځان ساته، ته د هغه په اطرافي سیمو کې اوسه، ځکه چې د دې ښار اوسیدونکي به په زمکه کې ننباسل شي، په هغوی به د ډبرو (تیږو) باران وشي او هلته به زلزلې راشي، یو شمیر خلک به هلته شپه تیروي مګر له صبا کیدو د مخه به بیزوګان او خنزیران شوي وي (۱).

نبي کریم ﷺ په دې حدیث کې خبر ورکړی چې خلک به په مختلفو ښارونو کې اوسیدل غوره کړي، په هغوی کې د یوه نام (بصره) هم ده، نبي کریم ﷺ حضرت انس رضي الله عنه خبر دار کړ چې هغه د دې ځای له ښاړې زمکې ځان وساتي، هغه د دې ځای له نباتاتو او بازارونو څخه هم ځان وساتي او چیرته چې خلک سره را جمع وي خرید او فروخت کوي له هغه هم، نبي کریم ﷺ هغه د دې ځای د ظالمو واکمنو له دروازو څخه هم وویراوه، ځکه چې په ښار کې د زمکې چاودل، د ډبرو (تیږو) وریدل، د زلزلو راتلل او د شکلونو د بدلیدو واقعات پېښیږي.

نبي کریم ﷺ هغه ته د (بصره) په اطرافي سیمو کې د اوسیدا خبر وکړه تر څو چې له هلاکت څخه وساتل شي.

✿ له حضرت نافع رضي الله عنه څخه روایت دی چې یو کس د حضرت ابن عمر رضي الله عنه په خدمت کې حاضر شو او وې ویل: چې فلان تا ته سلام وایي، ابن عمر رضي الله عنه وویل: ما ته معلومه شوه چې هغه کوم بدعت پیدا کړی، که چیرته همداسې وي نو هغه ته زما له لوري سلام مه وایه، ما له نبي کریم ﷺ دا اوریدلي چې فرمایل یې:

---

(۱) سنن ابی داؤد. ملاحم. حدیث: ۴۳۰۷. وصححه الالباني.

زما د امت د قدریه فرقې په خلکو به د شکلونو بدلیدل، په زمکه کې ننوتل او د ډبرو باران وریدل او نور واقعات به مخته راشي [۱].

**خلاصه**

په اخره زمانه کې د واقع کیدونکو دریو لویو خسفونو له جملې څخه د یوه ځای او سبب په مخکني حدیث کې بیان شو، تر کومه ځایه چې د پاتې نورو دوو خسفونو تعلق دی هغه به په اخره زمانه کې واقع کیږي، لیکن ما ته د هغوی په ځای او سبب باندې دلالت کوونکي کوم حدیثونه په لاس را نغلل (والله اعلم).

# د دود پورته کیدل

د قیامت نښانې په مختلف نوعیت کې دي:

د ځینو تعلق له زمکې سره دی: خسف او وچ کالي، ځینې داسې دي د کومو تعلق چې له خلکو سره دی: لکه د ښځو کثرت او د سړیو قلت، د ځینو تعلق له انساني اخلاقو سره دی: لکه د زنا عام کیدل، ځینې هغه دي د کومو تعلق چې له آسمان سره دی، د هغوی له جملې څخه د دود پورته کیدل هم دي.

- له دود څخه څه مراد دي؟
- آیا دا نښانه واقع شوې؟
- په دې کې څه حکمت دی؟

دود د قیامت له نښانو څخه دی دلیل یې لاندې قول د الله تعالی ﷻ دی:

﴿ فَارْتَقِبْ يَوْمَ تَأْتِي السَّمَآءُ بِدُخَانٍ مُّبِينٍ ۝ يَغْشَى النَّاسَ ۖ هٰذَا عَذَابٌ اَلِيْمٌ

---

[۱] سنن ابن ماجه، الفتن، حدیث: ۴۰۲۱، وجامع الترمذي، القدر، حدیث: ۲۱۵۲، وهو حدیث صحیح.

﴿ رَبَّنَا اكۡشِفۡ عَنَّا الۡعَذَابَ اِنَّا مُؤۡمِنُوۡنَ ﴿١٢﴾ اَنّٰى لَهُمُ الذِّكۡرٰى وَ قَدۡ جَآءَهُمۡ رَسُوۡلٌ مُّبِيۡنٌ ﴿١٣﴾ ﴾ (١).

ژباړه:

پس منظر اوسه اې محمده! دوی ته په هغه ورځ چې راشي دا اسمان په لوګي ښکاره سره؛ چې پټ به کړي ټول مخلوق (وبه وايي دوی) دغه عذاب ډېر دردناک دی؛ اې ربه زمونږ لیرې کړه له مونږ دغه عذاب بیشکه مونږ ایمان راوړونکي یو؛ چیرته به نفع ورسوي دوی ته پند اخیستل (پس د عذاب له نزوله) حال دا چې په تحقیق راغلی ؤ دوی ته رسول ښکاره بیانوونکی.

## په ایت کې د ذکر شوي دخان په باره کې د علماؤ دوه قولونه

(١) ځینې د علم خاوندان وایي چې له دې دود څخه هغه دود مراد دی کوم چې قریشو ته د سختې لوږې په حالت کې هغه وخت ورسید کله چې نبي کریم ﷺ د هغوی لپاره د دعوت نه قبلولو له امله بد دعا وکړه، هغوی به خپلې سترګې د اسمان لور ته پورته کړې او ورته کتل به یې نو هغوی ته به د لوږې او قحط له وجهې له دود پرته بل هیڅ په نظر نه ورتلل. حضرت عبد الله بن مسعود رضي الله عنه او د سلف صالحینو یوې ډلې دې قول ته ترجیح ورکړې او ابن جریر طبري رحمه الله هم همدې قول ته ترجیح ورکړې (٢).

له حضرت مسروق بن اجدع څخه روایت دی:

مونږ یو ځل د حضرت عبد الله بن مسعود رضي الله عنه په خدمت کې حاضر وو چې یو کس هلته ته راغی او وې ویل: اې ابو عبد الرحمن! یوه قیصه کوونکي قیصه بیانوله او داسې یې ویل: د اور ښنانه چې کله ښکاره شي نو د کفارو

---

(١) الدخان، آیة: ١٠-١٣.

(٢) اضواء البیان للشنقیني. النحل ١٢/ ١١٢.

ساګاني به بندې شي او په مؤمنانو به يواځې د زکام قدرې تکليف راشي، حضرت عبد الله بن مسعود ﵁ سم شو او کيناست او د غصې په حالت کې يې وويل: خلکو! له الله څخه ووېرېږئ، په تاسو کې چې يو چا ته په کوم شي علم وي نو يواځې هغه دې د خپل علم مطابق بيان کړي او د کوم شي چې علم نه وي نو هغه دې (الله اعلم) ووايي، دا تاسو ته د دې تعليم درکوي چې کله يو څوک په څه علم نلري نو د هغه په باره کې دې (الله اعلم) وايي ﴿قُلْ مَآ أَسْـَٔلُكُمْ عَلَيْهِ مِنْ أَجْرٍ وَمَآ أَنَا۠ مِنَ ٱلْمُتَكَلِّفِينَ ۝﴾ ([1]).

ژباړه: ووايه اې محمده! دوی ته نه غواړم زه له تاسې په دې (قران يا تبليغ) ځانته هيڅ اجر او نه يم زه له تکليف کونکيو نه (په جوړولو د قران کې له ځانه).

رسول الله ﷺ چې کله وليدل چې خلک د هغه خبرې نه قبلوي نو له الله تعالی څخه يې د هغوی په باره بد دعا وکړه ﴿اللهم سبعاً کسبع يوسف﴾.

ژباړه:

اې الله! په هغوی باندې اوه کاله قحط راوله لکه څنګه دې چې د يوسف ﵇ په قوم باندې راوستلی وو ([2]).

ابن مسعود ﵁ وايي: په هغوی داسې قحط سالي راغله کومې چې هر شی ختم کړل، تر دې چې د لوږې او افلاس له امله هغوی د څرمنو او مردارو خوړو ته مجبور شول، په هغوی کې به چې کوم کس پورته د آسمان لور ته کتل نو د لوږې له امله به دود دود په نظر ورته ([3]).

---

[1] ص، آية: ۸۲.

[2] يعنې نبي کريم ﷺ هغوی ته بد دعا وکړه چې هغوی هماغسې په مصيبت کې واچاوه لکه څنګه دې چې د مصر خلک پکې اچولي وو. هغوی اوه کاله په خشک سالي او قحط کې تير کړل.

[3] - صحيح البخاري. الاستسقاء. حديث: ۱۰۰۷. وصحيح مسلم. صفة القيامة والجنة والنار. حديث: ۲۷۹۸.

د حضرت ابن مسعود رضي الله عنه قول دا هم دی چې پنځه شیان تیر شول:
(اللزام) ([1]) (الروم) ([2]) (البطشة) ([3]) (القمر) ([4]) (الدخان) ([5]).

✿ ډیر علماء په دې لوري کې دي چې (الدخان) د قیامت له هغو نښانو څخه دی کومې ته چې دا مهال انتظار کیږي، تر دا مهاله ښکاره شوې نه ده او هغه د قربَ قیامت په وخت کې واقع کیږي، دا قول د حضرت علي بن ابی طالب، عبد الله بن عباس او د ابو سعید دی.

حافظ ابن کثیر رحمه الله د دې ایت کریمه سره متعلق مخکې له دې په بیان شویو حدیثونو سره استدلال کړی او د دوی قول ته یې ترجیح ورکړې.

ځینو نورو د علم خاوندانو د دوی قولونو ته د تطبیق ورکولو په کوشش کې دي، د هغوی موقف دا دی چې (دخان) دوه دي، یو د رسول الله صلی الله علیه وسلم په زمانه کې ظاهر شوی او بل به د قرب قیامت په وخت کې ظاهر شي

حضرت عبد الله بن مسعود رضي الله عنه ویلي: (دخان) دوه دي! یو هغه ده کوم چې تیر شو ([6]) او دویم هغه ده کوم به چې د زمکې او آسمان خلا ډکه کړي،

---

[1] - له (اللزام) څخه هغه عذاب مراد دی کوم چې په دې آیت کریمه کې ذکر شوی (فَقَدْ كَذَّبْتُمْ فَسَوْفَ يَكُونُ لِزَامًا) (الفرقان. آية: ۷۷).

[2] - اشاره ده دې آیت کریمه ته (الم ۱ غُلِبَتِ الرُّومُ ۲ فِي أَدْنَى الْأَرْضِ وَهُم مِّن بَعْدِ غَلَبِهِمْ سَيَغْلِبُونَ) (الروم. آية: ۱-۳).

[3] - اشاره ده دې قول د الله تعالی ته (يَوْمَ نَبْطِشُ الْبَطْشَةَ الْكُبْرَى إِنَّا مُنتَقِمُونَ) (الدخان. آية: ۱۶) او له (البطشة الکبری) څخه مراد د بدر غزا ده.

[4] - اشاره ده دې قول د الله تعالی ته (اقْتَرَبَتِ السَّاعَةُ وَانشَقَّ الْقَمَرُ) (القمر. آية: ۱) د پوړمې د دوه ټوټې کیدو خبره په علامه نمبر (۳) کې تیره شوه.

[5] - صحیح البخاري. التفسیر. حدیث: ۴۸۲۵. وصحیح مسلم. صفات المنافقین احکامهم. حدیث: ۲۷۹۸.

[6] یعنې کوم دود چې قریشو لیدلی.

په مؤمن باندې به د هغه اثر د زکام په څیر وي مګر د کافرو پوزې به له هغه څخه ډکې وي ([1]).

راجح قول دا دی کوم (دخان) چې دلته ذکر دی هغه تر دا مهاله نه دی ظاهر شوی، هغه به د قرب قیامت په وخت کې ظاهر شي، د قرآن کریم آیت هم د دې تایید کوي:

﴿فَارْتَقِبْ يَوْمَ تَأْتِي السَّمَآءُ بِدُخَانٍ مُّبِينٍ﴾ ([2]).

ژباړه:

پس منظر اوسه اې محمده! دوی ته په هغه ورځ چې راشي دا اسمان په لوګي ښکاره سره.

مطلب دا دی چې آسمان به یو داسې ښکاره او واضح دود ښکاره کړي کوم به چې هر څوک ویني.

## د دخان (دود) په باره کې وارد احادیث

✿ حضرت خذیفة رضي الله عنه بیان کوي چې یو ځل نبي کریم ﷺ زمونږ خوا ته تشریف راوړ کله چې مونږ په خپل مینځ کې د قیامت ذکر کاوه نو نبي کریم ﷺ وفرمایل: تاسو څه خبرې کوي؟ مونږ عرض وکړ: د قیامت ذکر کوو، نبي کریم ﷺ وفرمایل:

﴿انها لن تقوم حتی تروا قبلها عشر آیات، فذکر الدخان، والدجال ......الحدیث﴾ ([3]).

ژباړه:

بلا شبه هغه قیامت هیڅ کله نه قایمیږي تر څو چې تاسو له هغه څخه د مخه لس نښانې ووینی او هغه ﷺ دخان او دجال ذکر کړ ......الحدیث.

---

[1] - التذکرة للقرطبي: ٢٥٥.

[2] الدخان. آیة: ١٠.

[3] صحیح مسلم. الفتن و اشراط الساعة. حدیث: ٢٩٠١.

﴿بادروا بالاعمال ستا، طلوع الشمس من مغربها، اوالدخان، اوالدجال، اوالدابة، او خاصة احدكم او امر العامة﴾ ([1]).

ژباړه:

د شپږو شیانو له واقع کیدو مخته مخته د نیکو اعمالو په کولو کې تلوار وکړی، د لمر له مغرب څخه راختل، یا د دود ظاهریدل، یا د دجال ظاهریدل، یا خروج د دابه، یا تاسو ته په کوم خاص وخت کې د مرګ راتلل، یا د ټولو لپاره واقع کیدونکې معامله (د قیامت قایمیدل).

✿ حضرت عبد الله بن ابی ملیکه وایي:

یوه ورځ زه حضرت ابن عباس رضی الله عنه ته ورغلم نو هغه وویل: ما ټوله شپه خوب ونکړ تر دې چې صبا شو، ما وویل: ولې؟ هغه وویل: خلکو ویل چې لکۍ دار ستوری را ختلی، ما ته ویره پیدا شوه چې دود نه وي را پورته شوی، د همدې خیال له امله مې ټوله شپه خوب ونکړ.

په دې اثر کې اشاره دیته ده چې حضرت ابن عباس رضی الله عنه له دخان څخه له دې امله وورید چې هغه د قیامت له نښانو څخه دی.

[1] - صحیح مسلم. الفتن واشراط الساعة. حدیث: ۲۹۴۷.

# خروج دابه

**(د عجیب الخلقت ځناور را وتل)**

په اخره زمانه کې به د فساد خپریدو، د بدو کارونو د ښکاره کیدو او د خلکو له هغوی سره د عادي کیدو له امله به ښه او بد خلک ګډ وډ شي تر دې چې د مؤمن، منافق، مسلمان او کافر پیژندل به مشکل شي، په دې حالت کې به الله تعالی یو ځناور ظاهر کړي.

- دابه څه شی دی؟
- هغه چیرته او کله ظاهریږي؟
- د هغې په ذمه به څه کار وي؟

## د دابه ذکر په قران مجید کې

الله تعالی جَلَّ جَلَالُهُ فرمايي: ﴿ وَ اِذَا وَقَعَ الْقَوْلُ عَلَيْهِمْ اَخْرَجْنَا لَهُمْ دَآبَّةً مِّنَ الْاَرْضِ تُكَلِّمُهُمْ اَنَّ النَّاسَ كَانُوْا بِاٰيٰتِنَا لَا يُوْقِنُوْنَ ﴿۸۲﴾ ﴾ ([1]).

ژباړه: او کله چې واقع ثابت شي خبر د عذاب په دغو بني آدمانو او نږدې شي قیامت په دوی نو را وبه باسو مونږ دوی ته یوه دابه (ژوندی خوځیدونکې تلونکې) له زمکې چې خبرې کوي دغه (دابه) له دوی سره چې بیشکه دا خلک وو چې په دلائلو (د قدرت، الوهیت) زمونږ به یې یقین نه کاوه.

د (تُكَلِّمُهُمْ) یوه معنا دا هم بیان شوې چې هغه به دوی ته مخاطب شي او دویمه معنا یې دا ده چې هغه به دوی زخمي کړي، سعید بن جبیر، عاصم

[1] النمل، آية: ۸۲.

جحدري او ابو رجاء عطاردی رحمه الله د قرئت (تُكَلِّمُهُمْ) معنا ده تجرحمهم. يعنې هغه به دوی زخمي کړي، د دې دابه د اوصافو په باره کې کوم صحيح حديث ثابت نه دی، علامه ماوردي او ثعلبي د دې د اوصافو په باره کې داسې عجيبه او غريبې خبرې کړې د کومو لپاره چې هيڅ دليل نشته. هغه دا چې د هغې سر د غوايي د سر په څير دی او د هغه غوږ د فيل د غوږ په څير دی وغيره.

## ليکن مونږ چې د هغې کوم صفات پيژنو هغه دا دي

- هغه په حقيقت کې يو ځناور دی.
- هغه به له خلکو سره خبرې کوي.
- هغه به له زمکې راووزي

## هغه به له کوم ځای څخه راووځي؟

د هغې د راوتلو د ځای په باره کې کوم صحيح حديث ثابت نه دی. مونږ په دې خبره ايمان لرو چې هغه به په داسې طريقې راووزي څنګه چې الله تعالی خبر ورکړی، ليکن مونږ په دې نه پوهيږو چې هغه به له کوم ځای څخه راووزي.

## دابه به څه کوي؟

دا ځناور به خلکو ته وايي: خلک د الله تعالی په آيتونو ايمان نه راوړي. دا خبره د خدای تعالی په دې فرمان کې بيان شوې ﴿وَإِذَا وَقَعَ الْقَوْلُ عَلَيْهِمْ أَخْرَجْنَا لَهُمْ دَابَّةً مِّنَ الْأَرْضِ تُكَلِّمُهُمْ أَنَّ النَّاسَ كَانُوا بِآيَاتِنَا لَا يُوقِنُونَ﴾ ([1]).

ژباړه: او کله چې واقع ثابت شي خبر د عذاب په دغو بني آدمانو او نږدې شي قيامت په دوی نو را وبه باسو مونږ دوی ته يوه دابه (ژوندی خوځيدونکې

---

[1] النمل، آية: ۸۲.

تلونکې) له زمکې چې خبرې کوي دغه (دابه) له دوی سره چې بیشکه دا خلک وو چې په دلائلو (د قدرت، الوهیت) زمونږ به یې یقین نه کاوه.

## هغه به خلک په اور سره داغي

له حضرت ابو امامه ﷺ څخه روایت دی چې رسول الله ﷺ فرمایلي:

هغه ځناور به راووزي او د خلکو پوزو ته به داغ ورکوي، بیا به هغه له تاسو ټولو سره پیدا کړي تر دې چې یو سړی به اوښ واخلي او څوک به له هغه څخه پوښتنه وکړي دا اوښ تا له چا څخه واخیست؟ هغه به ووایي: له یوه داسې سړي څخه د کوم پوزې ته چې په اور سره داغ ورکړی شوی وو.[1]

✿ د هغې د داغلو کیفیت به څه وي او دا صورتحال به تر څه وخته پورې جاري وي؟

✿ آیا په راتلونکو نسلونو کې به هم د دې نښه باقي پاتې وي؟

✿ کله چې دابه خلک داغي نو حق به د باطل په مقابله کې واضح شي او مؤمن به له کافر څخه ممتاز شي، له دې وروسته به څه کیږي؟

خلک به تر یو څه مودې پورې په همدې حال کې اوسي، څه موده وروسته به خلک یوه بل ته داسې نعرې وهي: اې مؤمن، یا اې کافر.

کله چې الله تعالی د قیامت قایمول وغواړي نو یوه پاکه هوا به راولیږي کومه به چې د مؤمنانو روحونه قبض کړي، ځکه چې قیامت یواځې په شریرو خلکو قایمیږي.

له حضرت عبد الله بن عمر رضی الله عنهما څخه روایت دی چې رسول الله ﷺ فرمایلي: دجال به زما په امت کې ظاهر شي او د څلويښتو موده به پوره کړي، زه نه پوهیږم چې دا څلويښت ورځې دي، څلويښت میاشتې دي او که څلويښت کلونه دي، بیا به الله تعالی حضرت عیسی ؑ را ولیږي، د هغه شکل به له عروه بن مسعود ثقفي ﷺ سره ورته والی لري، حضرت عیسی

---

[1] - مجمع الزوائد للهیثمي: ۸/ ۱۴. ومسند احمد: ۵/ ۲۶۸.

ﷺ به دجال ووژني، بيا به خلک اوه کاله داسې تير کړي چې د دوو کسانو په مينځ کې به هيڅ رنګه دښمني نه وي، بيا به الله تعالى د شام له لوري تازه هوا را وليږي کومه به چې د هر هغه سړي روح قبض کړي د کوم په زړه کې چې د زرې برابر ايمان يا خير موجود وي، که په تاسو کې يو څوک په غره کې کوم غار ته هم داخل شي نو دا هوا به هغه ته ورسيږي او روح به يې قبض کړي، له دې وروسته به په زمکه کې يواځې هغه خلک اوسيږي کوم به چې د شر په خپرولو کې د مرغيو په څير تيز وي، هغوى به نه نيکي پيژني نه بدي، هغوى ته به شيطان د انسان په شکل کې راشي او ورته وبه وايي: آيا تاسو زما خبره نه منئ؟ هغوى به ورته ووايي: ته څه وايې. شيطان به هغوى ته د بتانو لور ته د دعوت خبره وکړي، هغوى به د شيطان خبره ومني، له هغوى سره به د رزق پراخي وي، زندګي به په ډيرو مزو کې تيره وي، چې يو ناڅاپه به شپيلۍ پوکړل شي، چا ته هم چې دا آواز ورسيږي، هغه به غاړه يوې خوا ته کوي او د آواز د اوريدو کوشش به کوي، هغه به په آوريدو سره بې هوش شي او را وبه غورځيږي او نور خلک به هم بې هوشه شي ([1]).

له حضرت ابو هريرة رضي الله عنه څخه په روايت شوي يوه بل حديث کې دي چې رسول الله ﷺ فرمايلي: ﴿ان الله يبعث ريحا من اليمن الين من الحرير، فلا تدع احد في قلبه مثقال حبة، او قال مثقال ذرة، من ايمان الا قبضته﴾ ([2]).

ژباړه: الله تعالى به د يمن له لوري يوه هوا را وليږي کومه به چې له وريښمو هم نرمه وي، د چا په زړه کې چې د دانې برابر. يا نبي کريم ﷺ وويل د يوې ذرې برابر ايمان وي، دا به د هغه روح قبض کړي.

د دې هوا له چليدو وروسته به نيک خلک ختم شي. په زمکه به يواځې شرير خلک اوسيږي او په هغوى به قيامت قايم شي.

---

[1] - صحيح مسلم. الفتن واشراط الساعة. حديث: ۲۹۴۰.

[2] - صحيح مسلم. الايمان. حديث: ۱۱۷.

# له مغرب څخه د لمر راختل

خلک به یو سهار د مشرق له لوري د لمر راختلو ته انتظار کوي، کله چې الله تعالی لمر پیدا کړی نو هغه تل (همیشه) د مشرق له لوري را پورته کیږي، مګر په دې ورځ به یو ناڅاپه لمر د مغرب له لوري را پورته شي او چې کله داسې وشي نو د توبې دروازه به بنده کړی شي.

## د لمر له مغرب څخه د راختو ذکر په قران کې

﴿هَلْ يَنْظُرُوْنَ اِلَّآ اَنْ تَاْتِيَهُمُ الْمَلٰٓىِٕكَةُ اَوْ يَاْتِيَ رَبُّكَ اَوْ يَاْتِيَ بَعْضُ اٰيٰتِ رَبِّكَ ؕ يَوْمَ يَاْتِيْ بَعْضُ اٰيٰتِ رَبِّكَ لَا يَنْفَعُ نَفْسًا اِيْمَانُهَا لَمْ تَكُنْ اٰمَنَتْ مِنْ قَبْلُ اَوْ كَسَبَتْ فِيْٓ اِيْمَانِهَا خَيْرًا ؕ قُلِ انْتَظِرُوْٓا اِنَّا مُنْتَظِرُوْنَ ۝١٥٨﴾ ([1]).

ژباړه: نه کوي انتظار دوی د هیڅ شي مګر د دې چې راشي دوی ته ملائکې (فرښتې د مرګ یا د عذاب) یا راشي عذاب د رب ستا یا راشي ځینې دلائل د قدرت د رب ستا (چې علامې د قیامت دي) په هغه ورځ کې چې راشي ځینې دلائل (د قدرت) درب ستا نه به رسوي فایده (نفع) هیڅ نفس ته ایمان راوړل د ده چې نه وي دا نفس چې ایمان یې راوړی وي پخوا له دې نه؛ یا نه وي چې کسب یې کړی وي په ایمان خپل کې څه خیر

[1] - الانعام، آیة: ۱۵۸.

(نیکي) ؛ ووایه اې محمده ! دوی ته چې انتظار کوی تاسې بیشکه مونږ هم انتظار کونکي یو.

## د لمر له مغرب څخه د راختو په باره کې احادیث

له حضرت ابو هریرة رضي الله عنه څخه روایت دی چې رسول الله ﷺ فرمایلي:

﴿ثلاث إذا خرجن لا ينفع نفسا إيمانها لم تكن آمنت من قبل أو كسبت في إيمانها خيرا طلوع الشمس من مغربها والدجال ودابة الأرض﴾ ([1]).

ژباړه : کله چې دری نښانې ښکاره شي نو هیڅ هغه کس ته د هغه ایمان فایده نه رسوي کوم چې له پخوا څخه ایمان نه وي راوړی یا یې په خپل ایمان کې کوم د خیر کار نه وي کړی، (۱) د لمر له مغرب څخه راختل (۲) د دجال ظاهریدل (۳) له زمکې د یوه ځناور راوتل.

په دې موقع د توبې د دروازې په بندیدو کې حکمت دا دی چې د ایمان ډیره برخه له ایمان بالغیب سره تعلق لري، مګر کله چې لمر له مغرب څخه را پورته شي نو بیا دا ایمان بالغیب نه دی، بلکه دا د فرعون د هغه ایمان په څیر دی کله چې د هغه په غرقیدلو یقین پیدا شو نو بیا یې ایمان راوړلو.

❁ له حضرت ابو هریرة رضي الله عنه څخه روایت دی چې رسول الله ﷺ فرمایلي:

تر هغه وخته قیامت نه قایمیږي تر څو چې لمر له مغرب څخه را پورته نشي، کله چې هغه له مغرب څخه را پورته شي او ټول خلک یې ووینې نو ټول به ایمان راوړي، مګر په دې وخت کې هیڅ هغه کس ته ایمان فایده نشي رسولای کوم چې له پخوا څخه ایمان نه وي راوړی، یا هغه په خپل ایمان کې کوم د خیر کار نه وي کړی، قیامت به په هغه حال کې قایم شي چې دوو سړیو خپلې جامې غوړولې وي، هغوی به خرید او فروخت نه وي کړي او نه به یې خپلې جامې راټولې کړې وي چې قیامت به برپا شي، یوه

---

[1] صحیح مسلم، الایمان، حدیث: ۱۵۸.

سړي به له خپل څناور څخه شيدې را لوشلې وي او هغه به يې استعمال کړې نه وي چې قيامت به راشي، يوه سړي به خپل حوض ډک کړی وي، هغه به په دې کې خپلو څناورانو ته اوبه ور نکړي چې قيامت به راشي او يوه سړي به د ډوډۍ ګوله د خولې لور ته پورته کړې وي، هغه به ونه خوري چې قيامت به راشي [1].

✿ له حضرت ابو ذر ﷺ څخه روايت دی چې رسول الله ﷺ فرمايلي آيا تاسو پوهيږی چې دا لمر به چيرته ځي؟ هغوی وويل: الله تعالی او د هغه رسول ﷺ ته ډير علم دی، نبي کريم ﷺ وفرمايل: دا لمر ځي تر دې چې د عرش لاندې خپل ځای ته ورسيږي، بيا دی په سجده پريوځي او په همدې حال کې وي چې ورته وويل شي: پورته شه! له کوم ځای څخه چې ته راغلی يې هلته بيرته ولاړ شه، هغه بيرته ولاړ شي او د خپل معمول مطابق طلوع کوي، بيا د ورځې او شپې په تلو تلو کې د عرش لاندې خپل ځای ته ورسيږي او د سجدې په حالت کې پريوځي، دی په همدې حالت کې وي چې ورته وويل شي: پورته شه او له کوم ځای څخه چې ته راغلی يې هلته بيرته ولاړ شه، هغه ولاړ شي او د خپل معمول مطابق طلوع کوي، يوه ورځ به هغه ولاړ شي، خلک به په ده کې هيڅ نوی شی وو نه ويني تر دې چې هغه به د عرش لاندې خپل ځای ته ورسيږي او هغه ته به وويل شي: پورته شه نن له مغرب څخه طلوع وکړه، نو هغه به د صبا په وخت کې له مغرب څخه طلوع وکړي، نبي کريم ﷺ وويل: تاسو پوهيږی دا به کله وي؟ دا به په هغه وخت کې وي چې هيڅ داسې کس ته به ايمان فايده نه رسوي کوم چې له پخوا څخه ايمان نه وي راوړی، يا يې د خپل ايمان په حالت کې کوم نيک عمل نه وي کړی [2].

[1] - صحيح البخاري، الرقاق، حديث: ۶۵۰۲.

[2] - صحيح مسلم، الايمان، حديث: ۱۵۹.

✿ له حضرت عبد الله بن عمر ﷠ څخه روایت دی چې رسول الله ﷺ فرمایلي:

﴿إن أول الآيات خروجا طلوع الشمس من مغربها وخروج الدابة على الناس ضحى وأيهما ما كانت قبل صاحبتها فالأخرى على أثرها قريبا﴾ ([1]).

ژباړه: تر ټولو د مخه چې کومې نښانې ښکاره کیږي هغه د لمر له مغرب څخه را پورته کیدل دي او د څاښت په وخت کې د خلکو لپاره د دابه راوتل دي، کله هم چې په دوی کې کومه یوه ښکاره شي نو هغه بله فوراً له هغې وروسته ښکاره کیږي.

## یو اشکال او د هغه ازاله

ځینو خلکو دا اشکال پیدا کړی چې په دې حدیث کې نبي کریم ﷺ فرمایلي چې تر ټولو د مخه چې کومې نښانې ښکاره کیږي هغه د لمر له مغرب څخه را پورته کیدل او د څاښت په وخت کې د دابه راوتل دي: او په نورو روایاتو کې د دجال ظهور او د امام مهدي ظهور د قیامت له لومړنیو نښانو څخه شمارل شوې دي، نو د دې دواړو حدیثونو په مینځ کې تطبیق څه دی؟

حافظ ابن حجر ﵀ فرمایي:

کومه خبره چې د ټولو روایتونو په رڼایي کې تر سترګو کیږي دا ده: چې هغه دوه ډلې نښانې کومې چې په زمکه کې د اوسیدونکو احوال بدلوي په هغوی کې تر ټولو لومړی نښانه د دجال خروج دی او دا نښانه د حضرت عیسی ﵇ له وفات سره ختمیږي، هغه نښانې د کومو تعلق چې د پورته نظام له بدلیدو سره دي: په هغو کې تر ټولو لومړی نښانه د لمر له مغرب څخه راختل دي، د دې نښانې اختتام د قیامت په قایمیدو سره کیږي،

---

[1] - صحیح مسلم، الفتن و اشراط الساعة، حدیث: ۲۹۴۱.

غالباً د دابه خروج به هم په همدې ورځ وي په کومه ورځ چې لمر له مغرب څخه را پورته شي.

امام مسلم رحمه الله په خپل صحيح کې د حضرت عبد الله بن عمر رضي الله عنه دا روايت بيان کړی چې رسول الله صلی الله عليه وسلم فرمايلي:

﴿ان اول الايات خروجا، طلوع الشمس من مغربها، وخروج الدابة على الناس ضحى، وايهما ما كانت قبل صاحبتها فالاخرى على اثرها قريبا﴾ ([1]).

ژباړه:

تر ټولو د مخه چې کومې نښانې ظاهريږي، هغه د لمر له مغرب څخه راختل او د څاښت په وخت کې د خلکو لپاره د دابه راوتل دي، په دوی کې چې کومه هم مخکې ښکاره شي نو دويمه فوراً له هغې وروسته ښکاره کيږي.

## د قيامت له نښانو مخکې د نيکو اعمالو کولو حکم

له حضرت ابو هريرة رضي الله عنه څخه روايت دی چې رسول الله صلی الله عليه وسلم فرمايلي:

﴿بادروا بالأعمال ستا الدجال والدخان ودابة الأرض وطلوع الشمس من مغربها وأمر العامة وخويصة أحدكم﴾ ([2]).

ژباړه: د شپږو شيانو له واقع کيدو مخکې مخکې د نيکو اعمالو په کولو کې تلوار وکړئ (۱) د لمر له مغرب څخه راپورته کيدل (۲) د دود ظاهريدل (۳) يا د دجال ظاهريدل (۴) يا تاسو ته په کوم خاص وخت کې د مرګ راتلل (۵) خروج دابه (۶) يا د ستاسو ټولو لپاره واقع کيدونکې معامله (د قيامت قايميدل).

---

[1] - فتح الباري شرح صحيح البخاري، الرقاق، حديث: ۶۵۰۲، ۱۱/ ۴۲۹.

[2] - صحيح مسلم، الفتن واشراط الساعة، حديث: ۲۹۴۷.



یوه ورځ به ورته وویل شي ! پورته شه نن له مغرب څخه طلوع وکړه

# اور
# کوم به چې خلک د میدان حشر لوري ته بیایي

د قیامت تر ټولو اخیري نښانه دا ده چې د یمن له لوري به یو اور راووزي کوم به چې خلک ارض محشر (شام) لوري ته ور وړي او دوی به هلته سره جمع کوي.

- دا اور به څنګه وي؟
- دا به څنګه راووزي؟
- له کوم ځای څخه به راووزي؟
- او له هغه وروسته به څه واقعات وي؟

## د دغه اور په باره کې وارد احادیث

له حضرت حذیفه بن اسید غفاري ﷺ څخه روایت دی چې یو ځل نبي کریم ﷺ زمونږ خوا ته تشریف راوړ، کله چې مونږ د قیامت ذکر کاوه. نبي کریم ﷺ وویل: تاسو د کوم شي ذکر کوی؟ مونږ عرض وکړ: مونږ د قیامت ذکر کاوه، نبي کریم ﷺ وویل:

﴿إنها لن تقوم حتى ترون قبلها عشر آيات فذكر الدخان والدجال والدابة وطلوع الشمس من مغربها ونزول عيسى ابن مريم صلى الله عليه و سلم ويأجوج ومأجوج وثلاثة خسوف خسف بالمشرق وخسف بالمغرب وخسف بجزيرة العرب وآخر ذلك نار تخرج من اليمن تطرد الناس إلى محشرهم﴾ ([1]).

---

[1] - صحیح مسلم، الفتن واشراط الساعة، حدیث: ۲۹۰۱

ژباړه: بلا شبه قیامت نه قایمیږي تر څو چې تاسو له هغه څخه د مخه لس نښانې ووینی، نبي کریم ﷺ ذکر کړی (١) دود (٢) دجال (٣) خروج دابه (٤) د لمر له مغرب څخه را پورته کیدل (٥) د حضرت عیسی علیه السلام نزول (٦) د یاجوج ماجوج خروج (٧) دری ځایه د زمکې چاودلو واقعات، یعنې په مشرق کې د زمکې چاودل، په مغرب کې د زمکې چاودل او په جزیرة العرب کې د زمکې چاودل، له ټولو په اخیر کې چې کومه نښانه ظاهریږي هغه د یمن له لوري راوتونکی اور دی کوم به چې خلک د میدان محشر لوري ته بیا یې.

او په یوه بل روایت کې داسې دي:

﴿نار تخرج من قعرة عدن ترحل الناس﴾ ([1]).

ژباړه: یو اور به د عدن له لیرې علاقې څخه را ووزي کوم به چې خلک روان کړي.

له حضرت عبد الله بن عمر رضي الله عنه څخه روایت دی چې رسول الله ﷺ فرمایلي:

﴿ستخرج نار قبل یوم القیامة من بحر حضرموت أو من حضرموت تحشر الناس قالوا فبم تأمرنا یا رسول الله قال علیکم بالشام﴾ ([2]).

ژباړه:

د قیامت له ورځې د مخه به له بحیره حضرموت څخه یا له حضرموت څخه یو اور راووزي کوم به چې خلک پورته کړي، صحابه کرامو رضی الله عنهم عرض وکړ: په دې حالاتو کې ته مونږ ته د کومې خبرې حکم کوې؟ رسول الله ﷺ ورته وویل: تاسو په شام کې اوسیدل غوره کړی.

له حضرت انس رضي الله عنه څخه روایت دی چې عبد الله بن سلام رضي الله عنه چې کله د نبي کریم ﷺ مدینې ته په تشریف راوړو خبر شو نو هغه د نبي کریم ﷺ په

[1] - صحیح مسلم. الفتن واشراط الساعة. حدیث: ٢٩٠١.

[2] مسند احمد: ٢/ ٥٣. وهو حدیث صحیح.

خدمت کې حاضر شو او عرض يې وکړ : زه له تا څخه د دريو شيانو په باره کې پوښتنه کول غواړم ! په کومو چې له نبي پرته بل څوک نه پوهيږي : د قيامت لومړۍ نښانه څه ده؟ د جنتيانو تر ټولو لومړۍ خوراک څه دی؟ د دې سبب څه دی چې ماشوم له پلار يا له مور سره مشابه کيږي؟ رسول الله ﷺ وفرمايل : اوس ما ته جبريل عليه السلام د دې شيانو په باره کې وويل ! عبد الله بن سلام رضي الله عنه وويل: دا فرښته د يهودو دښمنه ده (١) نبي کريم ﷺ وفرمايل : د قيامت لومړۍ نښانه يو اور دی کوم به چې خلک له مشرق څخه د مغرب لوري ته بيايي، د جنتيانو لومړۍ خوراک د ماهي د ځيګر ځنډه ده، تر کومه ځايه چې د ماشوم د مشابهت خبره ده نو کله چې سړی او ښځه کور والی کوي او د سړي اوبه د ښځې په اوبو باندې سبقت وکړي نو ماشوم پلار ته ورته کيږي او که د ښځې اوبه د سړي په اوبو سبقت وکړي نو ماشوم مور ته ورته کيږي، عبد الله بن سلام رضي الله عنه وويل: زه ګواهي ورکوم چې ته د الله رسول يې.

## يو اشکال او د هغه ازاله

حضرت عبد الله بن عمر رضي الله عنه بيان کوي چې رسول الله ﷺ فرمايلي:

﴿إن أول الآيات خروجا طلوع الشمس من مغربها، وخروج الدابة على الناس ضحى، فأيهما خرجت قبل الاخرى فالاخرى منها قريب﴾ (٢).

---

١ - يو ځل يهودو رسول الله ﷺ ته وويل : هر نبي ته يوه فرښته له اسمان څخه خبرې راوړي، مونږ ته ووايه تا ته څوک راځي؟ رسول الله ﷺ وويل: جبريل. هغوی وويل: هغه جبريل کوم چې عذاب او جنګونه له ځان سره راوړي، هغه خو زمونږ دښمنه ده، که چيرته تا ميکائيل ويلی وای نو دا به ښه وای، ځکه چې هغه رحمت، نباتات او باران له ځان سره راوړي، په دې موقع الله تعالی دا آيت کريمه نازل کړ (قُلْ مَن كَانَ عَدُوًّا لِّجِبْرِيلَ فَإِنَّهُ نَزَّلَهُ عَلَى قَلْبِكَ بِإِذْنِ اللَّهِ مُصَدِّقاً لِّمَا بَيْنَ يَدَيْهِ وَهُدًى وَبُشْرَى لِلْمُؤْمِنِينَ ٩٧ مَن كَانَ عَدُوًّا لِّلَّهِ وَمَلآئِكَتِهِ وَرُسُلِهِ وَجِبْرِيلَ وَمِيكَالَ فَإِنَّ اللَّهَ عَدُوٌّ لِّلْكَافِرِينَ).

٢ - صحيح مسلم، الفتن واشراط الساعة، حديث: ٢٩٤١.

ژباړه : تر ټولو د مخه چې کومه نښانه ښکاره کیږي، هغه د لمر له مغرب څخه را پورته کېدل او د څابنت په وخت کې د خلکو لپاره د دابه را وتل دي، په دوی کې چې هره یوه اول ظاهره شي نو هغه بله هم دیته نږدې ظاهرېږي.

د قیامت د نښانو په سلسله کې چې کوم ترتیب مخکې تیر شو د هغه له دې حدیث سره موافقت څنګه دی؟

له دې حدیث څخه مراد د قیام قیامت نښانې دي او د دې تایید د بخاري د یوه روایت په دې الفاظو سره هم کیږي (ما اول امر الساعة) یعنې قیام قیامت څنګه دی؟

**تنبیه**

دا اور کوم به چې خلک د محشر لوري ته را پورته کړي له هغه اور څخه جلا دی د کوم په باره کې چې ویل شوي چې هغه به د حجاز په زمکه ظاهر شي کوم به چې د بصره د اوښانو غاړې روښانه کړي، هغه اور په اومه هجري صدۍ کې ظاهر شوی او هغه د قیامت له وړو نښانو څخه دی.

## اور به خلک څنګه را پورته کړي

له حضرت ابو هریرة ﵁ څخه روایت دی:

خلک به د میدان حشر لور ته په دریو طریقو سره راځي، یو شمیر به په خوف سره راځي، یو شمیر به په یوه اوښ دوه دوه، دری دری، څلور څلور یا لس لس راځي، پاتې خلک به اور پورته کړي. چیرته چې دوی قیلوله کوي اور به هم هلته له دوی سره دریږي او چیرته چې دوی شپه تیروي اور به هم هلته شپه تیروي، چیرته چې دوی صبا کوي اور به هم هلته صبا کوي او چیرته چې ماښام کوي اور به هم هلته ماښام کوي [1].

---

[1] - دا خ      ه علامه نمبر (۱۳) تیره شوه.

مطلب دا دی چې د دې اور مقصد به د خلکو سوځل نه وي بلکه مقصد به يې محض په شام کې د ارض محشر لوري ته د هغوی بیول وي، کله چې خلک ستړي شي، د قیلولې یا خوب لپاره ودرېږي نو اور به هم ور سره درېږي، لیکن کله چې له قیلولې څخه را بیدار شي نو اور به هغوی مخ پر وړاندې روانه وي تر دې چې هغوی شام ته ورسوي.

له حضرت ابو ذر ﷺ څخه روایت دی چې رسول الله ﷺ فرمایلي:

خلک به د قیامت په ورځ د دریو ډلو په شکل کې را پورته شي، یوه ډله به پر امید جامې اغوستې او په سپرلیو به سپاره وي، دویمه ډله به داسې وي کومه به چې کله روانېږي او کله به درېږي او دریمه ډله به داسې وي د کومو مخته به چې فرښتې روانې وي، په هغوی کې به یو ویونکی ووایي هغه دوه ډلې خو مونږ معلومې کړې، لیکن دا ډله څوک دي کوم چې کله ځي او کله درېږي؟ نو نبي کریم ﷺ وفرمایل: الله تعالی به په سپرلیو داسې آفت را نازل کړي چې هیڅ سپرلی به باقي پاته نشي تر دې که یوه سړي ته د کوم به چې یو ښایسته باغ وي، یو د کجاوې واله په عمر رسیدلی اوښ ورکړی شي نو هغه به په هغه سپور نشي (۱).

---

۱- مسند احمد: ۵/ ۱۲۴، وسنن النسائي: ۲۰۸۸. وهو حديث صحيح.

## خاتمه

زه د الله تعالی حمد او ثناء بیانه وم چې زه یې د دې کتاب د تکمیل لپاره په اسانتیا او اعانت سره سرفراز کړم، زه د الله تعالی په حضور کې لاس په دعا یم چې هغه دا کتاب نافع وګرځوي او د دې کتاب په باره کې زما نیت یواځې د خپل ذات لپاره خالص کړي.

زما کوشش دی چې زه د قیامت نښانې په نوي اسلوب کې وړاندې کړم تر څو ګران قدرمند لوستونکي ترینه ګټه واخلي، امید ده چې زما تمنا پوره شوې وي.

د دې کتاب د لوستونکو لپاره دا ډیره ښکلې خبره ده چې د دې کتاب له مطالعه کولو وروسته خپلې رایې یا ملاحظات یا خپله نقطه نظر ولیکي او ما ته یې د اې میل په ادرس یا د SMS په ذریعه را ولیږي، زه به د هغوی ډیر ممنون او په غائبانه ډول لاس په دعا یم.

زه له الله تعالی ﷻ څخه غواړم چې مونږ ټولو ته توفیق راکړي - آمین!

دکتور محمد بن عبد الرحمن العریفي
استاذ عقیده ومعاصر ادیان ومذاهب شاه سعود یونیورستي، ریاض
رکن سپریم کمیټي برای سلامي ذرائع ابلاغ